د کتاب پیژندنه

د کتاب نوم: ملامحمد عمر، طالبان او افغانستان

لیکوال :عبدالحی مطمئن

خپرندوی: افغان خپرندویه ټولنه – کابل

د چاپ وار: لومړی

د چاپ کال: 1396 هجری لمریز

# لړلیک

عنوان

صفحه

دوهم څپرکی

درېیم څپرکی



څلورم څپرکی

پنځم څپرکی



شپږم څپرکی

## دليکوال يادښت

عمر مي د دريو او څلورو کالو تر مېنځ و، چې کمونيستانو د غوايي د اوومې خونړۍ کودتا وکړه، د "خاد" بريتورو اسلام پالې نيول. يوه ورځ څو بدمخو بريتورو زموږ د جونګړې دروازه هم وډبوله، پلار مې له کوره ور ووت خو بيا کله هم خپل کورته رانه دننه نه شو او نه مو بيا ترننه سترګې پرې ولګېدې! کال وروسته دومره پوهيدم چې يو مهربانه سيوری مې له سره پورته شوی.

په کور دننه غربت، ساړه نغري او زما زړو جامو هم دا ګواهي ويله چې زه نور يتيم يم. ماته نور هر بريتور د پلار قاتل ښکاريده! تره مې موږ د بې سرپرسته ماشامانو په توګه په بل کلي کې د هغه خپل کورته بوتلو، نور موږ کوم جلا کور نه لاره، بلکې د تره په غاړه کې د مشر ورور امانت وو، چې بياکله هم دا امانت د خپل حق دار په برخه نه شو. ځکه هغه نور د بې وسۍ په حالت کې په تړليو لاسونو د يوې کليمې او عقيدې په تور د سټالين سياستونو وژلي و، خو موږ لاهم د هغه د ژوند په تږې تمه ناست وو.

له دې وروسته چې په افغاني کمونيستانو ونشوه، نو د ليلن او سټالين ځای ناستو خپل وژونکي د جنګي الوتکو تر وزرونو لاندي په شوبلو سپاره را واستول. پر هيواد سرو لښکرو سور قيامت جوړ کړ، خو تره مې لا هم په دې خبره ټينګ ولاړ و چې پاکستان ته هجرت نه کوو. موږ يوازې هغه کم بخته ماشومان نه وو، چې د پلار له سيوري محروم وو، بلکې د لوبو او نازونو عمر مو د اور په لمبو، د الوتکو په بمبار او وژنو کې تيريده؛ موږ ته انسانان او د انسان

په لاس جوړه شوې تیکنالوجي د پخوانیو نکلونو تر بلاګانو او د ځنګلونو تر ځیرونکو ځناور ډېره وحشي وه.

د اشرارو! د ټکلولو په نوم به د روسانو یو ډول جنګي قوه کلیو ته راتله چې د شوروي تاریخي غضب به یې افغانانو ته ور ښود، دې قوې ته به کلیوالو سره قوه ویله، د سرې قوې وسله والو به ژوندي ژوي ټول په نښه کول، څاروي، چرګان او د مور په غېږه کې پی، رودونکي ماشومان یې هم نه بښل.

مور په دې وړکتوب کې په وینو لړلي جسدونه او بمبار شوي کورونه هر وخت لیدل، خو د سرې قوې نوم راته ورستی تندر و!

یوه ورځ چې سهار له خوبه پاڅیدم، مخ ته مې اوبه واچولې، د ترخو تورو چایو له ګیلاس سره مې د ډوډۍ ګوله خولې ته یوړه، چې د ټانکونو درانه غرونه مې واوریدل او له دې سره ویرونکې چیغې پیل شوې: چې سره قوه کلي ته په لاره ده؛ ګوله مې خوله کې پاتې شوه، حلق مې وچ شو،کلیوالو ترلي څاروي له مېږ ویوو خلاصول، ترخو وتښتي او له وژلو وژغورل شي.

د کلي په کوڅوکې کلیوالو له خپلو کورونو داسې منډې وهلې لکه د کورونو مېنځ کې چې بلاګانې زیږیدلې وي. تورسرې، سپین سرې، واړه او زاړه ټول به په یو ه لاره په منډو وو؛ په سترو ساوو به یې کله کله شاته کتل، تابه ویل چې ترشا یې ښامار خوله وازه کړې او دوې ترې ځانونه ژغوري!

زه او تر ما دوه کاله مشر ورور مې له کلي پټیو ته ووتو؛ د یوه تنګ او ژور نهر په غاړه مو - چې هلمندکې ورته زابر وایي - منډې وهلې؛ د ټیټ پرواز د چورلکو په ډزو کې نور منډه راته وژونکې ښاره شوه او په یو نیمه وچ لښتي کې پرېوتو چې د"کانو" د بوټو مینځ کې و "کانې" یو ډول ګڼ ستر بوټې دی، په ژمې وچ

وي او ډير ژر اور اخلي- د هلمند خلګ ورته کانې وايي- د چورلکو په بمبار کې د کانو له اوره هم ويريدو؛ له ويرې ټوله ورځ داسې پراته وو، چې نه مو ځانونه خوځول او نه مو خپلوکې خبرې کولې.

مازيګر چې قوه ولاړه، پلرونه اوميندې په پټيو کې په وړو اولادونو او ځارويو پسې په يوه وخت لا لهانده ګرځيدل.

هغه وخت لا زموږ ماشومانه ذهن دا سې جوړ شو، چې وسله لرونکې انسانان به خامخا وژل کوي او موږ خپل وړکتوب له وژولو نشي ژغورلای. زه چې نن د سوريې د بمبارشويو کورونو تر خاورو لاندې ماشومانو تصويرونو ته ګورم نو په ټنډو کې يې خپله ماضي وينم ؛ د يو ويشتمې پيړۍ پرمختللي انسان لا همدومره وحشي دی!

موږ په اور، جګړه او عقده کې را ستر شوو؛ دينې زدکړې مو پيل کړې، خو زموږ دين چې موږ ته څه ډول انسانيت معرفي کاوه، د هغه انسانيت درَک هم په ټولنه کې نه لګيده. چاچې د وطن د دفاع اوجهاد په لاره کې وسله غاړې ته کړې وه، اخيرکې مو له هغوي نه هم داسې څه ونه ليدل چې دا تصور مو نور له ذهنه وباسي، چې انسان معنا ظالم اوقاتل.

موږ پاکستان ته د ديني زدکړو لپاره په تنکۍ ځوانۍ کې لاړو، د افغان جهادي تنظيمونو خپل منځي کشمکش، د ځينې جهادي غازي! مشرانو شاهانه ژوندونه او له خپل ولسه ناخبري مو هم وليده ؛ د خاد د بريتور په څير د پيښور په کوڅوکې د ځينې ړيره ورو غازيانو! په لاسونو د مهاجرو او پرديسو افغان ليکوالو او پوهانو په وينو لړلي مړي مو هم وليدل او د کمونيستي رژيم له نسکوريدو وروسته د غازيانو! د ځينو وسلوالو له خوا په ښارونو، کليو او د لو يو لارو پر سرو وحشتونه مو هم وليدل.

بیا یو وخت دومره پولې ونړیدې چې د پیښور د کوڅو ډېر هغه ړیره ور قاتلان چې د غرب پالنې په تور به یې افغانان وژل! د لندن او جرمني په کوڅو کې خریلي ږیرې او پتلون کړي ګرځېدل. همدا راز مې یوه ورځ په کندهار کې له لیکوال او شاعر عبدالباري جهاني نه واوریدل؛ چې ویل یې په اسلام اباد کې مې د هغې افغان سندر غاړې پر میز - چې یو وخت یې خلقي سرباز ته د یارۍ سندره ویله - د جهادي! حماسې د ړیره ور شاعر ملا اسدالله حنفي را استولي شعرونه ولیدل، چې له دې ډمې یې د خپلو شعرونو د زمزمې عاجزانه هیله کړې وه! خو ښاپیرۍ سندرغاړې موسکۍ وه او د دې شعرونو له زمزمې یې نټه کوله؛ ویل یې د ملایي شډل توري مې په نرۍ ژبه درانه دي!

مور مدرسې ته له تللو وروسته کله هم داسې فکر نه کاوه چې یوه ورځ به مور هم د وحشت پرضد وحشي ټوپک ته اړ کیږو ، بیا همداسې ورځې راغلې چې ماهم په دیني ولوله د طالب پاڅون له کاروان سره یوځای کیدوته ځان اړ وګاڼه، خوکله مې هم فکر نه کاوه چې تر پایه به همدا کار کوم. ماویل دوه کاله وروسته به بیرته مدرسې ته ور ګرځم او پاتې زدکړې به پوره کوم.

په کندهار کې مې د اطلاعاتو کلتور د ودانۍ دروازه داسې وخت وټکوله چې نور مې نه ځان له ټوله تحریکه ویستلای شوای اونه مې په غاړه کې ټوپک اچول خوښیدل. خو دې نرمې ادارې او د شعر او شاعري بزم ته راتګ، زما تقدیرته نور هم پیچیده رنګ ورکړ. رئیس کابل ته لاړ، ملګرو مې زه وړ وګڼلم او د ادارې مشري ته یې ور معرفي کړم. اوله ورځ لکه فرشتو چې په غوږ کې راته وویل، په خپل راتلونکې شکمن شوم! خو وروسته مې بیا ځان ته تسله ورکړه چې نه نه! کال-دوه ورسته به بیرته مدرسې ته هرو مرو ځم.

د ۱۹۹۸م کال د اپریل په ۱۱مه یوې پیښې زما زړه او دماغ دومره ماضي ته واړاوه چې ټوله ورځ مې په خیال کې له خپل پلار سره تیره کړه. په همدې ورځ

د کندها ر ښار په شمال کې د میان کوه د غره ډډه کې د پخواني خاد د یوه زاړه کمونست په اقرار یو ډلیز قبر وموندل شو، زه له څو میلمنو سره دغه لورته په چکر وتلي وم، چې د غره ډډه کې نرم شمال ته څو کسانو یو لوی جر کیندلو او بشري هډوکي یې ترې را ویستل. دا له کمونیستي کودتا وروسته د کندهار او شاوخوا ولایتونو د روحانینو او علماوو یو ستر مدفن و، چې خادیانو په دې ځای کې ژوندي تر خاورو لاندې کړي ول. ما له دې وروسته هم د همدې مدفن د یوه عامل او قاتل کمونیست د خلاصون لټون وکړ! د سلیمان ځیرک له زوی سره مې د هغه د خلاصون هڅې کولې! ځکه ما دغه سپین بریتي او سپین ږیري قاتلان په دې پاخه عمرکې د اسلامې او انساني عاطفې له مخې خپلو زامنو او لمسیو ته ژوندې غوره ګڼل،په همدې نیت مې مې د پلار قاتل بانبه، خو د اګمان مو له سره نه کاوه چې دوي به یوه ورځ بیا سپینو بریتونو ته رنګ ورکړې او له یوه بل یرغل سره به زموږ د مظلومو اسیرانو وژلو ته ملا وتړي !

ما په همدې ورځ د خپل پلار له اروا سره خبرې کولې خو د هغه د جسد هډوکي مې نشوای پیژندلای! ځکه چې ما له پلاره محرومیت ټول عمر لیدلي و، خو د پلار څېره او بدني جوړښت مې تش د یوه سیورې په څېر یاد و.

ماښام چې دفتر ته راغبرګ شوم.پر کاغذ مې د دې پېښې راپور د خپل روح او خیال په نقشه انځور کړ؛ ماښام مې د راډیو پر خبرې سرویس د نطاق پرځای خپله ولوست. چې له سټوډیو راکوز شوم، ستونی مې دومره غریو نیولي و، لکه زه چې لا ماشوم یم او د پلار جسد ته مې د میان کوه غره په سپیره ډډه کې تکې تنها په چیغو چیغو ژړلي وي.

زه لا کیناستی نه وم چې والی حسن رحماني راته زنګ وواهه، وای بي بي سي غواړي د میان کوه د غره د قبر په اړه له ماسره خبرې وکړې، خو زه به ستا د

دفتر د تلفون شمېره  ورکړم؛ څه چې دې په راديوکې ولوستل هغه په خپل غږکې ورته ووايه.

ما تردې دمه له کومې رسنۍ سره خبرې نه وې کړې، د والي په غوښتنه او تاکيد مې دا کار وکړ؛ دوه ورځې وروسته د مشر سکرتر وکيل احمد متوکل صيب د بي بي سي راديو تلفون ته ځواب نه و ورکړی او د بي بي سي د فتر له ما نه د هغه پوښتنه کوله، ما متوکل ته پر مخابره وويل چې د بې بې سي خبريال دي پوښتنه کوي، خو دا وخت متوکل له ملامحمد عمر مجاهد سره نږدې ناست و، زما غږ مشر هم واوريد، د متوکل تر ځواب وړاندي مې د يو بل چا غږ تر غوږ شو، متوکل په ځواب کې له لږ ځنډ وروسته راته وويل چې ملاصيب وايي چې ته ورسره خبرې وکړه. ماته دا خبره نوې وه، انکار مې وکړ، متوکل وويل زه نه وايم  مشر ملاصيب وايي!

زه د موضوع له جزياتو ناخبره وم او د سياسي پيښو په اړه د خبرو کولو تجربه مې هم نلرله، خو له تاکيده وروسته مې د پيښې جزيات ولټول او دغه زما د وياندې رسمي پيل و! چې بيامې د راتلونکو ۴ بحراني کلونو وياندې وکړه او دنړۍ او افغانستان د پيښو په اړه مو د ټول نظام او په خاص ډول ملا محمد عمر مطبوعاتي استازيتوب وکړ. خو موږ لا په ځان پوه نشوو، چې کلونه واوښتل او موږ په نويو خبرو اوشخړو واوښتلو. موږ فکر کاوه چې روسان وحشي و او لويديځه نړې خو بشرپاله دنياده! داسي ورځ راته ناشونې ښکاريده چې همدا بشري نړۍ به زموږ پر کورونو بمونه غورزوي؛ تورسرې او ماشومان به وژني او په نيمو شپو به په خوب ويده ماشومان په سپيو  داړي.

کله چې امريکايي الوتکو پر کندهار ښار خپل لومړي بمونه غورزول، د کندهار ښار پر مدد خان چوک د يوه بې وزله کندهاري د بمبارشوي کنډواله کور په لوټو او خزلو کې د يوې ځوانې انجلۍ يوه پښه په زړو جامو کې پرته وه او نور

بدن یې ورک و! ماته هم هغه ګړۍ دغه پښه د امریکایي یرغل لخوا د افغان غمیزې لومړی تابلو ښکاره شو.

خو بل پلوته د لویدیځو رسنیو افغان ویاندانو او شننونکو د امریکایي وسلو په تعریف غاړې تازه کولې، د یرغلګرو د وسلو زور اوځواک یې ستایه او ځیني زړو غازیانو! د لا سترو بمونو په تمه په زړیرو لاسونه راښکل.

څرنګه چې زما د ویاندي ټوله دوره په نړیواله اوسیمیزه کچه د طالبانو د نظام او افغانستان لپاره ډیره پیچیده اوبحراني وه، نو په راتلونکو پاڼو کې تر ډیره همدغه اسرار، پیښې او معلومات ځای شوي.

ما خپل معلومات د حکایت په توګه د لوستونکو په وړاندي ایښي او له نورو ترلاسه کړي معلومات د هغوي په حواله دي. زما دغه کتاب زما قضاوت او شخصي دریځ نه دي او نه د چا په فرمایش او نه هم چاته کمپاین دي. بلکي د خپلو لیدلیو او اوریدلیو پېښو یو رښتیني حکایت دی. خو دا لیکل چې په کومه بڼه شوي نو ښایي نه به د هغه چا خوښ شي چې د طالبانو په محبت کې ړانده او فنا فی الطالبان دي او نه به یې هغه څوک خوښ کړي چې د طالب د ښمني یې سترګې ړندې کړې وي او هرڅه یې نفي کول غواړي.

خو هیله من یم چې د دې دوو لوریو ترمینځ لوستونکوته یوه غوره معلوماتي پانګه ده البته لوستل یې ټولو ته ګټور ګڼم.

هغه معلومات چې ماته نورو راکړي ممکن ځینې یې ډیر کره نه وي ، چې هلته بیا دغه کمی باید زما ونه ګڼل شي.

خو په هغو برخوکې چې پر خپلو او پردویو معلوماتو مې خپله تبصیره کړې ، ښایی غیر اختیاري تمایلات په کې وي، چې دا به زما د بشري عجز برخه وي،

**همداراز ښايي يو شمېر تر لمر رڼه حقايق وي خو ما د څه جدي مجبوريتونو له امله پرې ايښي وي، چې هيله ده په دې خاموشي مې هم لوستونکې وبښي. ځکه موږ په شرقي نړۍ کې اوسو چې له بده مرغه دلته لا د وينا زغم په مخ کې ډېرې ستونځې لري، که څه هم د بيان د ازادي دعوه لرونکو لويديځوالو هم زموږ د خولو په وړاندي فولادي ډالونه نيولي! نور مو د پاتې کتاب د لوستلو زغم ته رابولم**

په مينه او درنښت

عبدالحی مطمئن

# لومړی څپرکی

**د طالب او طالبان د کلمو ار او ریښه**

**د شلمې پېړۍ په پای کې نړۍ او سیمه له یوه نوي نامه سره اشنا شوه. دا د "طالبان" کلمه وه. "طالبان" کلمه د افغانستان د یوه لوی اطرافي او ځینې ښاري اکثریت په مینځ کې کومه نوې کلمه نه وه.**
**طالب له اره د عربي ژبې کلمه ده چې پوره بڼه یې "طالب العلم" دی. معنا یې زده‌کوونکی ده. د دې کلمې جمع "طلبة"، "طلاب" او "طالبون" راځي. په عربي نړۍ کې د پوهنتونونو او ښوونځیو ټولو شاګردانو ته "طلاب الجامعة" او "طلاب المدارس" وایي. که هغه دیني زده‌کړې کوي یا عصري او مدني.**

**په هند او پاکستان کې هم طلبه او طالبات کلمې د دیني او عصري دواړو زده‌کړو لپاره عامې کارول کیږي، خو په افغانستان کې عصري زده‌کوونکو ته محصلین او متعلمین وایي چې دا هم عربي کلمات دي او یوازې دیني زده‌کوونکي ته طالب ویل کیږي، چې جمع یې د عربي پر ځای په پښتو وزن استعمالیږي. طلاب یا طلبه ورته نه وایي، بلکې د پښتو ژبې د جمع وزن ورته کاریږي او د "یاران"، "دوستان" او "افغانان" د کلمو په څېر "طالبان" کلمه هم په پښتو جمع کیږي.**

په افغانستان کې د عصـري ښوونځيو استادانو ته "معلمين" او ديني استادانو ته "ملا" او "عالم" کلمې کارول شوي. "ملا" کلمه د فارس، خراسان (اوسنی افغانستان) مينځنۍ اسيا او سويلي اسيا په اسلامي هېوادونو کې له پېړيو راهيسې ريښه لري، خو تر اوسه دا اتفاقي خبره نه ده چې دا کلمه په اصل کې له عربي راغلې او که عجمي ده. که عربي شي نو د ميم په پېښ او د لام په شد سره د لوړ او ستر معنا لري چې لوړ او ستر عالم ترې هدف دی.

له تاريخي پلوه د اسلامي نړۍ د نورو برخو په څېر په خراسان او فارس کې هم د عباسي خلافت پر مهال د ديني علم، ادب او اخلاقو درس ورکوونکو ته "معلمين" ويل کېدل او د دې لپاره د "مؤدبينو" کلمه هم کارول شوې، خو ورو-ورو دغو نومونو د وخت په تېرېدو سره تغير کړی. تر دې چې اخر د فارس، خراسان او هند په مسلمانانو کې د "ملا"، "مولوي" او "مولانا" کلمې دود شوې دي.

اوس په افغاني ټولنه کې هغه ملا ته چې مروج ديني علوم يې بشپړ کړي وي، "مولوي" کلمه کارول کيږي (مولوي له مولا نه اخيستل شوی چې څښتن،شريف او پوهه لرونکي سړي ته ويل کيږي او دلته ترې درېيمه معنا هدف ده. د مولا کلمه د نسبت د يا پر زياتولو مولوي ګرځېدلې) او چې علوم يې بشپړ کړي نه وي، نو ملا (د لام له تشديده پرته په خفيفه بڼه) ورته ويل کيږي او په عامه اصطلاح کې ملا هر هغه چا ته هم وايي، چې له ديني زده‌کړو سره تړاو لري. که هغه له دې علومو فارغ وي او که يې لا نه وي تکميل کړي.

"اخوند" فارسي کلمه ده چې معلم يا استاد ته ويل کيږي. دا کلمه په پښتو کې له ملا سره يو ځای کله ناکله کاريږي، لکه "ملا بورجان اخوند".

په یوازې توګه د "اخوند" کلمه زموږ د هېواد شیعه مذهبه وطنوال د خپل مسجد د امام او شیعه ملا لپاره کاروي او خپل ملایان "اخوندان" بولي، خو په پښتو کې د دیني طبقې ترمینځ د "اخوند" کلمه په مجرد ډول یوازې د تحقیر په موخه کارول کیږي، کله چې غواړي کوم ملا نیمګړی ملا معرفي کړي، نو وایي: هغه ملا نه دی، هسې اخوند دی!

په بره پښتونخوا کې د عالم یا ملا زوی ته یو شمېر خلک "اخنزاده" وایي، چې په اصل کې دا توری "اخوندزاده" دی چې معنا یې ده: د ملا یا اخوند زوی، دا لقب اکثره د ستر عالم زوی ته کارول کیږي.

د عالم، صوفي یا متقي خلکو زامنو ته "صاحب‌زاده" کلمه هم کارول کیږي، چې په عامه پښتو لهجه کې په "سابزاده" او "سوزاده" تلفظ کیږي. په لره پښتونخوا کې د استاد یا عالم زوی ته "صاحبِ حق" کلمه هم کارول کیږي، چې په عامه لهجه کې "سابي حق" تلفظ کیږي.

اسلام او خراسان (اوسنی افغانستان)

د اسلام له ظهوره ۴۸کاله وروسته د نبوي هجرت په ۳۵م کال، د اسلام درېیم خلیفه حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت په وروستیو کې اسلامي فاتحان افغانستان ته راغلل او کابل یې په لومړي ځل فتح کړ. له هغه وروسته بغاوتونه وشول، څو کاله وروسته د معاویه رضي الله عنه په دور کې د کابل په وروستۍ فتح کې یو خراسانی زلمی "نافع کابلي" د غنیمت په توګه د عبدالله بن عمر بن خطاب رضی الله عنهما په برخه ورسېد. دېرش کاله یې له ابن عمر سره تېر کړل او نن چې له ابن عمر نه روایت شوي اکثر نبوي حدیثونه وینو، نو نافع رحمه الله رانقل کړي. دغه کابلی تابعي د حدیثو په کتابونو کې د ابن عمر د روایاتو تر ټولو امین او معتمد راوي او ناقل دی. د امام مالک موطا، صحیح البخاري، صحیح مسلم او د حدیثو نورو معتبرو کتابونو کې یې هم روایتونه ډېر تر سترګو کېږي.

په دوهمه هجري پېړۍ کې، د قتيبه بن سعيد بغلاني په څېر شخصيت چې امام بخاري ترې شاوخوا درې سوه حديثونه نقل کړي، همداراز د لرغوني خراسان د بلخ اوسېدونکي مکي بن ابراهيم بلخي په څېر سترمحدث چې تبع تابعي و او له امام ابوحنيفه، جريح او امام مالک څخه يې حديث اورېدلي وو، امام بخاري ورنه په خپل کتاب صحيح البخاري کې له (۲۳) ثلاثياتو نه (هغه حديثونه چې تر رسول الله صلی الله عليه وسلم پورې يوازې درې واسطې په کې وي) ۱۳ يې له همده (مکي بن ابراهيم بلخي) نه روا يت کړي دي. همداراز محمد بن ابان، ابو عثمان سعيد تالقاني او امام ضحاک بلخي په څېر محدثين د خراسان د دوهمي هجري پېړۍ علمي ستوري وو.

په درېيمه هجري پېړۍ کې امام ابو داود سجستاني او د هغه شاګردانو په څېر محدثين، د امام ابو يوسف د شاګرد او د بلخ د قاضي امام ابو حفص په څېر فقهاء تېر شوي دي. همداراز د حديثو او فقهې د علومو ترڅنګ په دغه پېړۍ کې د نحوې، لغت او ادب په برخه کې د اخفشِ اوسط په څېر استادان هم د خراسان په سيمه کې را وټوکېدل.

په څلورمه سليزه کې د هلمند اوسېدونکی ستر محدث ابن حبان بستي، همداراز په هلمند کې زېږېدلی او دفن شوی محدث او فقيه د صحيح البخاري او سنن ابي داود شارح او د حديثو د رجالو د علم ماهر احمد خطابي چې د راشد خليفه عمر فاروق د ورور زيد بن خطاب له اولادې و، همداسي نور بې شميره محدثين او فقهاء د دې خاورې په برخه شول. همداراز د عربي ادب او لغت په برخه کې د هرات په خاوره کې بديع الزمان همداني قدم کېښود، چې له امله يې خراسان د عربي لغت، نحوې او ادب په يوه زړه‌پورې ډګر بدل شو. ورسره د قرآن کريم تفسير ته هم په خراسان کې پاملرنه زياته شوه، چې له امله يې په پنځمه هجري پېړۍ کې د امام بغوي شافعي په څېر مفسرين په

خراسان کې پيدا شول او په شپږمه سليزه کې د تفسير کبير ليکوال امام فخرالدين رازي پيدا شو.

همدا وخت و، چې په تفسير کې د فلسفي بوی هم پيدا شو، چې په وړاندې يې د سالمې عقيدې درس ته پاملرنه زياته شوه او په اتمه سليزه کې د نورو علماوو ترڅنګ ابو حفص عمر غزنوي پر عقيدة الطحاويه شرحه وليکله او په فقه کې يې "الشامل في الفقه" او نور مقبول کتابونه وليکل.

همدا پېړۍ هم په خراسان کې د عقيدې، فقهې او نورو علومو ترڅنګ د نحوې، معاني او بيان د علومو د عروج دوره وه. سعدالدين تفتازاني د همدې دورې عالم و، چې د خراسان د هرات د تفتازان د سيمې اوسېدونکی و او په علم البيان و المعاني کې يې د المختصر او المطول په نومونو د اسلامي نړۍ په کچه دوه مشهور تاليفات وکړل. د علمِ نحوې د مهارت او پرمختګ دغه پړېر نهمې سليزې ته واوښت او په نهمه سليزه کې د خراسان د هرات په ښار کې د عبدالرحمن جامي په څېر نحوي عالم پيدا شو، چې د ابن حاجب پر کافيه يې د فوائد ضيائيه په نامه کتاب وليکه او تر ننه د دغې سيمې (افغانستان، هند او پاکستان) په مدارسو کې د "شرح ملاجامي" په نامه د نحوې د علم د اخري او تر ټولو ستر کتاب په توګه لوستل کيږي. د ده شاګرد "عبدالغفور لاري" بيا د ده پر کتاب حاشيه وکړه، چې په "شرح عبدالغفور" باندې شهرت لري او دومره دقيقه ده چې هر عادي مدرس يې درسولی هم نه شي.

د حديثو د رجالو او د فقهې او عقيدې لور ته په لسمه سليزه کې يو ځل بيا ځانګړې توجه وشوه. په لسمه سليزه کې د عقيدې اصلاح کوونکې او د فقهې، عقيدې او په خپل عصر کې د جرح او تعديل امام ملا علي قاري پيدا شو، چې د امام ابو حنيفه پر فقه اکبر يې شرحه وکړه او د ضعيفو او موضوعي حديثونو پر پېژندنه يې هم ځانګړی کتاب وليکه.

له دې سره سره چې د اسلامي نړۍ د واکمنۍ پر سر د شخړو په لړ کې خراسان هم خوندي نه دی پاتې شوی، خو خراسان او اوسني افغانستان له دې ستونزو سره سره د ديني علم او ديني عالمانو زانګو وه.

د اموي خلافت او هاشمي تحريک مقابلو، د غزنويانو او سلجوقيانو سياليو، د چنګېز تاړاک او د صفوي ايران يرغلونو او سلطې، د خراسان سيمه او جغرافيه هم په خپل خپل دور کې تر اغېز لاندې راوستې ده، خو د حق لارې دعوت او د دين رښتينی تعليم له خنډونو او لنډمهاله ځنډ سره-سره روان او برلاسی پاتې شوی.

د فکري او عقيدوي خرافاتو، همداراز د ارتداد، زنديقيت او رافضيت ډول-ډول تحريکونه د نورې اسلامي نړۍ په څېر په خراسان کې هم ازمويل شوي، خو د اصلي اسلامي دعوت او فکر شتون يې هر ځل مخه نيولې.

کله چې د عباسي دورې دوهم خليفه ابو جعفر منصور د عباسي تحريک مخکښ فاتح او خپل ستر محسن ابومسلم خراساني يوازې د خپلې ځان‌غوښتنې، زړې سيالۍ او شخصي غرور د بقا لپاره په خپل دربار کې په ښکاره ووژه، نو په خراسان کې د هغه د مسلمانو پيروانو ترڅنګ د قومي او سمتي عصبيت له مخې د عباسي خلافت پر ضد ځينې مرتدې ډلې او اشخاص هم پيدا شول، چې اسلام ته يې شا کړه او د زاړه مجوسي او زردشتي افکارو پيروي يې پيل کړه. په دې کې د "سنباد زردشتي" پاڅون او د نبوت د مدعي "استاد سيس" کفري تحريک او د "مقنع بلخي" الحادي او شرکي تحريکونه د يادونې وړ دي. دوی په سمتي او قومي عصبيتونو ګڼ پيروان هم پيدا کړل، خو د اسلام رښتينې شمع يې مړه نه کړای شوه او حقيقي دعوت او داعيانو له لنډ توقف وروسته په سيمه کې د عقيدې اصلاح

وکړه. په هره سلیزه کې خراسان د رښتیني دعوت او دیني پوهې داسي ستوري لرل، چې پوره سلیزه یې خپل چاپېریال نوراني ساتلی و.

یوولسمه پېړۍ پر دغه سیمه د صفوي ایران او افغانانو ترمینځ د مقابلې دوره وه. د پښتنو یو صالح مشر، حاجي میرویس خان هوتک چې په "میرویس نیکه" شهرت لري، د صفویانو د استعمار د ټغر ټولولو لپاره د خپلو علماوو ترڅنګ حرمینو ته په همدې نیت سفر وکړ او د حجاز له علماوو څخه یې د جهاد فتوا راوړه، ترڅو خپل قوم د دې غزا لپاره په عقیدوي توګه چمتو کړي. همدې مقاومت نه یوازې پر خراسان صفوي تسلط پای ته ورساوه، بلکې هوتکیانو په خپله دوره کې د ایران ډېر ښارونه له صفوي امپراتورۍ فتح کړل. په دې دوره کې د اهل سنت علماوو په خراسان کې خپل دعوت او دیني تعلیم په غوره توګه روان ساتلی و.

د یوولسمې هجري پېړۍ په دوهمه نیمایي کې ستر شهنشاه احمدشاه ابدالي د خراسان ختیزې او سویلي برخي چې مغلو لاندې کړې وې، بېرته ونیولې او لویدیځ لور ته یې صفویان له نیول شویو سیمو په شا کړل او پر دغه ستره جغرافیه یې د سیمې د ټولو مېشتو قومونو په یوه مشترکه جرګه کې د ټولو په خوښه د "افغانستان" نوم کېښود او په دې کې د پنجاب تر څنډو هغه ټولې سیمې شاملې وې، چې د ابدالي سلطان تر واک لاندې وې او اوسېدونکي یې افغانان وو.

احمدشاه ابدالي رحمه الله خپله هم دیني پوهه لرله او په خپل دربار کې یې د وخت سترو علماوو ته د دیني مفتیانو او مشاورینو رتبه ورکړې وه. احمدشاه بابا د هند د ستر داعي او د هند په وچه کې د حدیثو د علم امام، شاه‌ولي الله دهلوي ته ډېر معتقد و او د هغه په تش دعوت د هند د مسلمانانو د دفاع لپاره هلته ولاړ، مسلمانان یې د یرغلګرو مرهټیانو له ظلمه وژغورل او مرهټیان یې

**سخت وځپل. له همدې امله خو شاه بابا يو صحيح العقيده او مجاهد پاچا ګڼل کيږي، چې د همدې جذبې له مخې يې په هرات، کندهار او پېښور کې ديني مدرسې تاسيس کړل، د کندهار د زړې جامع او د هرات د پای حصار ديني مدرسې يې مشهوره وې.**[1]

**په خراسان کې د ديني زده کړو تاريخي بهير**

**خراسان ته د اسلام له راتګه وروسته چې د ديني زده کړو د درس او تدريس دوره پيل شوې، نو ديني درسګاوو او مراکزو بېلا بېلې دورې لرلې دي.**
**د اسلام له راتګه وروسته په خراسان کې په بېلا بېلو ډولونو ديني تعليم کېده. په عباسي دوره کې په دې سيمه کې زيات مساجد او مدارس اباد شول. د ځينو تاريخونو په حواله په دې کې داسې مدارس هم وو چې تر درې زرو پورې شاګردان يې لرل. د څلورمې هجري پيړۍ په لومړيو کې د سلطان محمود غزنوي په واکمنۍ کې په غزني کې د يوه روښانه اسلامي تمدن بنسټ کېښودل شو. په دې کې د منظمو ديني مدارسو ترڅنګ د هغه وخت د پرمختللو عصري علومو او مهارتونو تعليمي مرکزونه هم تاسيس شول.**

**د ابوريحان البيروني په څېر د علم نجوم، طبيعاتو، طب، جيولوژي او رياضي ماهرين او نوابغ د دغو مدني ښوونځيو استادان وو.**

**په شپږمه هجري پيړۍ کې د سلطان غياث الدين غوري له خوا د هرات جامع جومات جوړ شو، چې اوس هم شته او دا ستر جومات د ديني دعوت او تعليم د**

[1] ماخذونه:(سيرالاعلام النبلاء: علامه ذهبي- افغانستان بعد از اسلام:علامه حبيبي- مشاهير افغانستان: ګل محمد سعيد)

یوه مرکز حیثیت لاره. ورسره په دغه سیمه کې نورې دیني درسګاوې هم تاسیس شوې. په دې لړ کې د بلخ دیني مراکز هم د یادونې وړ دي.

د خراسان مسلمانو واکمنو او دیني علماوو په هره پېړۍ کې د دیني مراکزو پالنه کړې، خو له دې سره د عامو خلکو او دیني اشخاصو په مټ خصوصي زده‌کړې هم تل روانې وې.

دولسمه پېړۍ د اسلامي نړۍ د سیاسي کمزورۍ، سیاسي وېش او دیني تفرقې پېړۍ وه. عثماني خلافت د زوال لور ته ګامونه اوچتول، د عالمګیر له مړینې وروسته مغلي سلطنت تش په نامه او کمزوې واکمني وه، خو په هند کې د شاه‌ولی الله د پیروانو دعوتي لاره بریالۍ وه. د افغانانو او هند ترمینځ، د دیني او فکري اړیکو تار بیا هم ونه شلېد.

د دیارلسمې هجري پېړۍ په لومړۍ نیمايي کې د انګرېزانو واکمنۍ پر ټوله سیمه سیورۍ وغوړاوه، بل لور ته پر پنجاب د سکانو ظلم او سلطې د دې ځای مسلمانان له ستونزو سره مخ کړي وو. د شاه‌ولی الله رحمه الله لمسـي او د شاه عبدالغني زوی شاه اسماعیل او د هغه ملګري سید احمد بریلوي رحمه الله په پنجاب او د پښتنو اړوندو سیمو کې د سیکانو په وړاندې په جهاد لاس پوري کړ. په زرګونو علماء او طالبان ورسره وو، له سیکانو یې پراخې سیمې فتحه کړې. د دغو غازیانو او قبایلي او افغاني علماوو ترمینځ روابط وو، دغه دواړه غازیان له سیکانو سره په جګړه کې شهیدان شول، خو د هندي او افغاني اسلامپالو ترمینځ دیني اړیکې همداسې ټینګې پاتې شوې.

په ۱۸۵۷میلادي کال د هند په نیمه وچه کې د انګرېزي استعمار په وړاندې د مسلمانانو پاڅون نه یوازې ناکام او خنثا شو، بلکې د هند خاوره د انګریزي استعمار له خوا د مسلمانانو په وینو ولړل شوه.

دا وخت د هند د د يني طبقې په مينځ کې يوه بارزه څېره مولانا محمد قاسم نانوتوي و، چې د ازادۍ په جګړه کې يې د يوې حوزې مشري هم کوله، د پاڅون د ناکامۍ پر مهال يې ډېر مشکلات هم وګالل. وروسته يې د مسلمانانو د فکري پياوړتيا او ديني پوهې په موخه له ځينو نورو ديني علماوو سره په ګډه په ۱۲۸۳هجري د محرم الحرام په ۱۵مه چې د ۱۸٦٦ ميلادي کال د مۍ له ۳۰مې سره سمون خوري، د اترپرديش ايالت د سهارنپور ولسوالۍ د دېوبند په يوه له نظره وتلي ښارګوټي کې د "مدرسه عربيه اسلاميه" په نامه د يوې مدرسې د بنسټ ډبره کېښوده. دا مدرسه د وخت په تېرېدو په "دارالعلوم ديوبند" مشهوره شوه. ديوبند ته د عربي نړۍ، ماوراءالنهر او افغانستان نه هم طالبان ورتلل او دغه مرکز پر ټوله سيمه علمي اغېز وکړ.

د افغانانو او ديوبند دارالعلوم ترمينځ اړيکې د دغه علمي مرکز له لومړيو کلونو پيل شوي او د حديثو په فن کې د ډېرو افغاني شيخانو سند د هند د نيمې وچې علماوو ته د ديوبند د تاسيس له برکته رسيږي، چې اول به د خراسان، ماوراء النهر، حجاز، عراق او مصر محدثينو ته رسېده، خو په خراسان کې حنفي مذهب له پېړيو راهيسې نافذ دی. غالباً هند ته هم دغه مذهب له خراسانه صدور کړی او د غزنوي، غوري او ابدالي لښکرو سره له خراسانه هند ته علمي رجال هم تللي او هلته يې حنفي مذهب دود کړی. د دې ترڅنګ په مغلي دور کې فارسيان، ترکان او عرب هم هند ته تللي، خو هلته حنفي مذهب زيات پيروان پيدا کړي او ديوبند مدرسه د دې مذهب تر ټوله ستره درسګاه ده. له افغانانو سره د ديوبند يوه ګډه نقطه دا ده چې په حنفي فقهه کې دواړه ولسونه سره مشترک دي او بله مشترکه نقطه يې د انګرېزانو پر ضد ګډه عملي او فکري مبارزه وه.

د امیر دوست محمد خان دیني مشاور، د سراج الاحکام د تالیف غړی او د میزان التحقیق د دیني اداري رییس مولانا عبدالرزاق اندړ هم له مولانا رشیداحمد گنگوهي څخه حدیث لوستي وو، چې د مولانا قاسم نانوتوي هم‌عصره ملگری و او د دیوبند د مدرسي په تاسیس کې یې فکري او علمي برخه لرله.

مولانا عبدالرزاق اندړ د انگرېزانو پر ضد جهاد کې، د وزیرستان د ملا پیونده او د هډې د ملاصیب (نجم الدین اخندزاده) ملگری او په وزیرستان کې یې په "رییس المجاهدین" شهرت لاره.

همدارنگه په راوروسته دوره کې ډېرو افغاني شیخانو د حدیثو سند له دیوبنده ترلاسه کړی و. په رسمي او محلي درسگاوو کې د دیوبند د مدرسې د ډېرو فاضلانو شتون په دغه سیمه کې له هند سره دیني تړاو نور هم ټینگ کړ.

د امیر حبیب الله خان په دوره کې د شیخ الهند مولانا محمود الحسن دیوبندي رحمه الله د انگریزي استعمار ضد تحریک په دیني کړیو کې خپور و او د افغانستان حکومت یې رسماً ملاتړ کاوه.

شیخ الهند رحمه الله د دې دعوت په ترڅ کې حرمینو ته سفر وکړ، چې د حجاز له واکمنو یې مرسته وغوښته او مولانا عبیدالله سندي یې افغانستان ته را واستاوه، چې بیا وروسته څه هندي مسلمانان هم د مهاجرو په توگه د دوی په رهبری افغانستان ته راغلل.

د اوخت د شیخ الهند له خوا د عبیدالله سندي او نورو علماوو په توسط دانگریزانو په خلاف د ریشمي رومال تحریک په موثر ډول روان و، چې له امله یې انگریزانو په حجاز کې شیخ الهند ونیو او د اروپا د مالټا په جزیره کې یې تر دریو کالو بندي کړ.

د افغان حکومتونو او هندي علماوو تر مېنځ د اړیکو په بهیر کې په ۱۳۲۴لمریز کال د افغانستان پاچا محمد ظاهر شاه خپل صدراعظم سردار محمدهاشم خان ته امر وکړ، چې د شیخ الهند مولانا محمودالحسن د قران کریم ترجمه او ورباندې د مولانا شبیراحمدعثماني د قرآن کریم تفسیر دې پښتو او دري ژبو ته وژباړل شي، چې د دولت له خوا د یو عام‌فهمه او معتمد تفسیر په حیث خپور شي.

د دې تفسیر د ژباړې او چاپ لپاره یوه کمیسیون ټاکل شوی و، خو د علمي کتنې او سمونې لپاره چې چا ته دنده سپارل شوې وه، هغه د عربي دارالعلوم شیخ الحدیث مولانا غلام نبي کاموي و، چې د حدیثو دوره یې په دارالعلوم دیوبند کې پر مولانا انورشاه کشمیري رحمه الله کړې وه او د هغه له ممتازو شاګردانو څخه و او څو کاله په دارالعلوم دیوبند کې استاد هم پاتې شوی و.

مولانا کاموي به دغه تفسیر او ترجمه د سلفو له مشهورو تفاسیرو لکه تفسیر ابن کثیر، روح المعاني، الجامع لاحکام القران للقرطبي او نور زبده او معتبرو تفاسیرو سره مقایسه او موازنه کوله، بیا به یې تصدیقوله، له دې وړاندې په افغاني ټولنه کې په فارسي ژبه ځینې مفصل تفاسیر مشهور وو، چې عام او کم لوستو خلکو ګټه نه شوای ترې اخیستی او د دیني حلقو په مینځ کې د قرآن د لغوي او نحوي زده‌کړې لپاره واړه پیچیده عربي تفاسیر لکه تفسیر جلالین او تفسیر بیضاوي دود وو او د قران‌پوهنې لپاره د علماوو ترمینځ د ډېرو جلدونو لرونکي مشهور عربي تفاسیر رواج وو.

د افغانستان او هند ترمینځ د علماوو، سوداګرو او عامو خلکو هجرتونو او راشه درشو خپلمینځي تعامل لا اسانه کړ.

د کوزې پښتونخوا نامتو ديني عالم او د مشهورې ديني مدرسې، درالعلوم حقانيه بنسټګر، مولانا عبدالحق پلرونه د افغانستان له غزني د کوزې پښتونخوا نوښار سيمې ته پخوا راغلي وو. مولانا عبدالحق له ديوبنده له فراغت وروسته لومړی د کوزې پښتونخوا نوښار سيمې ته څېرمه د اکوړه خټک په ښارګوټي کې يو ديني انجمن جوړ کړ او بيا په دوهم ځل هند ته ولاړ. هلته په ديوبند کې څو کاله مدرس پاتي شو، خو د پاکستان له جوړېدو سره ديوبند ته تلل راتلل ورته ستونزمن شو، نو په همدغه ښارګوټي (اکوړې) کې يې يوه وړوکې مدرسه پرانيسته چې وروسته يې په سيمه کې ځانګړی شهرت او اهميت خپل کړ. دې مدرسې ته د حديثو د زده‌کړې په موخه د برې پښتونخوا طالبان هم ورمات شول، چې په لږه موده کې دې مدرسې ډېر شهرت پيداکړ او شيخ الحديث مولانا عبدالحق رحمه الله د مدرسې تعمير پراخ کړ، ورسره يې د شاګردانو تعداد او د مدرسې استادان هم زيات کړل، دغه مدرسه چې په دارالعلوم حقانيه سره يې شهرت پيداکړ، د افغانستان ډېرو طالبانو په کې ديني زده‌کړې وکړې.

په افغانستان کې د کمونستي کودتا او د پخواني شوروي له يرغل وروسته چې د هند ديوبند او نورو درسګاوو ته تلل ستونزمن شول، په افغانستان کې دننه هم علمي طبقه ورټل شوه او ديني مراکز کمونستانو وتړل، علماء او مشهور شيوخ يې اسيران يا له مينځه يوړل، زيات شمېر افغانان پاکستان ته مهاجر شول. د پاکستان د خيبر پښتونخوا او بلوچستان ايالتونو په مدارسو کې ډېرو افغانانو زده‌کړې وکړې. د خيبر پښتونخوا او بلوچستان په مدارسو کې تدريس په پښتو ژبه کېده، چې له همدې امله افغانانو ته ښکاره اسانتيا وه.

په پاکستان کې له اوږدمهاله ژوند وروسته افغان ديني زده‌کوونکو د پنجاب او کراچۍ سترو ديني درسګاوو ته هم مخه کړه، چې په راوروسته کې ډېر افغان

علماء په دغو مدارسو کې د استادۍ پر مسند هم فایز شول. له همدې امله د دې سیمې له مدارسو سره د افغان طالبانو تړاو د حالاتو جبر او د شرایطو تقاضا وګرځېده، د تاریخ او حالاتو د جبر په استناد سړی نه شی کولای دا اړیکې د ځینو په څېر لنډمهاله او مقصدي تعبیر کړي او د اړیکو دا اوږد مزل او درانه اسباب له پامه وغورځوي، ځکه تاریخي شواهد ښیي چې د پښتونخوا او هند نیمې وچې ترمینځ د علماوو او طالبانو تګ راتګ له پخوا همداسې دود پاتې شوی.

**افغانستان او د څو پېړيو طالبي دود**

په افغانستان کې د طالبانو درسي دود له پېړيو راهیـسې تر ډېره په شخصي او دوديزه بڼه روان و. ډېر لږ رسمي مدارس وو، چې ديني زده‌کړې يې ورکولې، بلکې په عامه توګه هر عالم به له خپل وس سره سم محدود شمېر شاګردان ساتل او د خپل جومات تر څنګ به يې د شاګردانو د اوسېدلو لپاره يوه يا دوې خونې لرلې، چې د طالبانو حجره يا دېره به يې بلله. د دغو شاګردانو يا طالبانو خوراک څښاک به له جومات سره د تړليو خلکو پر غاړه و. هغه عالم چې د تدريس وړتيا به يې لرله، هغه به د يو ستر جومات امام و، چې په دې جومات پورې به يو يا دوه ستر کلي تړلي وو. دغو خلکو به د خپل شوق او دين‌دوستۍ له مخې د جومات د امام له شاګردانو سره د خوراک او څښاک مرسته کوله. د خوړو د راټولولو لپاره به يې د خلکو کورونو ته هغه کم عمره شاګردان چې بلوغ ته به لا نه وو رسېدلي وراستول، چې دغو ماشومانو ته به يې په بره پښتونخوا کې (چړيان) او په کوزه پښتونخوا کې (چوڼي) ويل او هر مدرس عالم به د کلي د ګنجايش په کچه شاګردان ځايول. په دغو کوچنيو درسګاوو کې به شاګردان دوه ډوله وو: يو به هغه و چې له نږدې سيمو به د درس حلقې ته راتلل. دغه به نهاري شاګردان وو، چې دوی هيڅ ډول مصارف نه لرل؛ بل هغه وو چې د امام او عالم د لوړ علميت او زيات شهرت له امله به له لېرې سيمو راتلل. هغوی به دلته شپه او ورځ اوسېدل. په دې کې به چې څوک لږ نږدې و، نو د پنجشنبې د ورځې په ماسپښين به کور ته تلل او د جمعې د ورځې په مازيګر به بېرته راتلل. ځينې بيا په مياشتو او حتی کلونو کورونو ته نه تلل او د علمي سلسلې تر تکميله به بوخت وو. ښکاره خبره ده هغه طالبان چې کورنۍ اقتصاد به يې کمزوری و، د علم په تلاش کې به يې ډېرې بې وسۍ او کړاوونه ګالل.

د ديني علومو د زده‌کړې په لاره کې ستونزې، بې وسۍ او لوږې تېرول په ديني ټولنه کې يو ډول فخر او نېکمرغي ګڼل کيږي!

دیني استادان تل خپلو شاګردانو ته دا خبره کوي چې د علم په طلب کې د ستونزو او بې وسیو ګالل د اسلام په تاریخ کې کومه نادره خبره نه ده. د نړۍ نامتو اسلامي پوهانو د دیني زده‌کړو په مینه کې هر ډول لوږې او تندې تېرې کړې دي. د نبوي حدیثو په لټون کې د امام بخاري په څېر سترو شخصیتونو هم د لوږې او بې وسۍ بوږنوونکي حالات ګاللي دي.

هغوی په مثال کې اصحاب صفه یادوي او وایي چې د بې وسه شاګردانو پر یوه ځای استوګنه د اسلام له پیله د یوه سنت په توګه راپیل شوې، چې پیلامه یې اصحابِ صفه کړې. اصحاب صفه یا د صوفې طالبان د حضرت محمد رسول الله صلی الله هغه ملګري وو چې د نبوي جومات پر چوتره به یې -چې د خرماوو د لښتو سیورى وربا‌ندي جوړ و- له نبي علیه السلام نه د الهي احکامو او شریعت زده‌کړه کوله او د استوګنې لپاره یې بل ځای نه درلود. همدلته به اوسېدل، ځکه خو د اصحاب صفه په نوم یادېږي (صفه په عربې ژبه کې چوترې ته ویل کیږي). دوی د اسلام په تاریخ کې په زهد، تقوا، د اسلام د پیغمبر په سیرت او احادیثو کې د پوهاوي سرچینه ګڼل کیږي. له رسول الله نه چې یې تر ټولو زیات حدیثونه روایت کړي ابو هریره رضی الله عنه دی چې اصلی نوم یې عبدالرحمن و. ابوهریرة د صوفې تر ټولو مشهور شاګرد و، چې په دې لاره کې یې لوږې او سختۍ ګاللي. آن تر دې چې یوه ورځ یې د خوړلو لپاره څه نه لرل او له لوږې نه د نبوي جومات په لاره کې پروت و او نور یې په وجود کې د خوځښت ځواک نه و. چا ته یې خپل حال هم نه وایه، خلک وربا‌ندي تېریدل، اخیر رسول الله صلی الله علیه وسلم وربا‌ندي راغی او پر حال یې پوه شو او له ځانه سره یې کور ته بوته.

ابو هریرة رضي الله عنه د اصحاب صفه د منزلت په اړه وایي: وأهل الصفة أضياف الإسلام، لا يأوون على أهلٍ ولا مالٍ ولا على أحد (صحيح البخاري)

"د صوفې اوسیدونکي [طالبان] د اسلام مېلمانه وو، نه یې کورنۍ وه، نه مال او نه بل څوک"

په افغانستان او شاوخوا سیمو کې په وروستیو څو پېړیو کې د تدریس ډېره برخه همدغه دودیزې شخصي درسگاوې وې، چې د حجرې یا درس په نامه به یادېدې.

وروسته ځیني رسمي او منظم دیني مراکز هم رامینځ ته شول، چې په دې کې ځیني د دولت له لوري رسمي وې او ځینې یې شخصي، خو د زده کړو ترتیب یې منظم او د صنفونو او امتحاناتو قانون یې لاره. دغه منظم مدارس لکه د کابل عربي دارالعلوم، ابوحنیفه مدرسه، د ننگرهار نجم المدارس، د غزني نورالمدارس، د بلخ اسدیه، د کندهار محمدیه، د هرات دیني مدرسه په شمال کې دارالعلوم تخارستان او یو شمېر نورې وړې اوسترې مدرسې.

په عام ډول شخصي او دودیزې درسگاوې پر رسمي او دولتي هغو ډېرې وې او د هېواد په کچه د مشهورو او نامتو دیني عالمانو په درسونو او دېرو کې به د طالب لپاره ځای موندل یو ستر ویاړ و او دا به په اسانه نه شوای ترلاسه کېدای، بلکې دا ډول درسونو کې به یوازې ذهینو او ځیرکو طالبانو ته داخله ورکول کېده.

دغو مشهورو شیخانو به طالب ته کتل چې کله به یې په شفاهي بحث کې معلوم کړ، چې په درسونو کې لایقه او ذهین دی، بیا به یې د خپل درس قیودات او شرایط ورته ویل. دا شرایط به څه په دې ډول وو: د پنځه وخته جماعت لمانځه پابندي، سیرت او صورت په نبوي سنتو برابرول، د سهار د درسونو لپاره د شپې پوره مطالعه، د جمعې له ورځې پرته د رخصتۍ نه کول او

دې ته ورته نور ډول ډول شرایط او قیودات چې ټول به یې په دیني احکامو او درس پورې تړلي وو.

**د طالبانو جهادي مخینه**

په افغانستان کې د انګریزانو پر ضد په درېوو مشهورو جګړو کې د افغانستان علماوو د لارښوونکو او قوماندانانو رول ادا کړ. په دې جګړو کې ډېر علماء او طالبان شهیدان شوي، چې د کندهار ښار د طالبانو هدیره، د بولدک د طالبانو هدیره او د کندهار د هرات دروازې د شهیدانو چوک یې ژوندي مثالونه دي، چې د افغان مورخ مرحوم علامه عبدالشکور رشاد په وینا "دا ټول قبرونه د هغو طالبانو دي، چې له انګریزانو سره په مخامخ جګړه کې شهیدان شوي دي".

د انګریزانو پر ضد مبارزه کې ملا مشک عالم اندړ چې اصلي نوم یې دین محمد و، مولاناعبدالرزاق اندړ، نجم الدین اخنزاده، ترنګزو حاجي صیب، د کابل د شوربازار د حضرتانو کورنۍ، مولانا امیر محمد چې په "چکنورو ملا صیب" مشهور و، سید محمد اکبرشاه چې په "سرکاڼو ملا صیب" مشهور و، مولوي عبدالکریم، چې په "جان اباد ملا صیب" مشهور و، شیخ المشایخ عبدالغفور د سوات، مولوي فیض محمد د موسهي اخنداده صیب، مولوي عبدالله غزنوي او په سلګونو مشهورو او نامشهورو علماوو د انګرېز د یرغل په مخنیوي او د خپلواکۍ د ګټلو په لاره کې عملي مبارزه کړې، چې نوملړ یې ډېر اوږد دی، دلته یې یوازې څو بېلګې وړاندې شوې. د دوی هر یوه په سلګونو او زرګونو شاګردان لرل چې په دې جګړو کې یې برخه اخیستي وه.

د انګرېزانو پر ضد د میوند مشهوره جګړه کې د میوند له فاتح محمد ایوب خان سره د انګریزانو پر ضد د ملګرو علماوو په اړه امیر عبدالرحمن خان چې هغه وخت یې له انګلیسي استعمار سره لاس یو کړی و په خپل کتاب تاج التواریخ کې هم یادونه کړې: "...محمدایوب خان ادوات حربیه، لشکر و اسلحه بیشتر

از من نداشت، بر علاوه ملاهای جاهل به مخالفت من اعلان جهاد داده بودند. این کار به جهت پیشرفت محمد ایوب خان خیلي مساعد بود. اینها میگفتند من دوست انگلیس‌ها وحریف من غازی"

د امان الله خان او دیني علماوو ترمینځ ستونزې

په ۱۹۱۹ میلادي کال کې امان الله خان د خپل پلار حبیب الله خان له مرګه وروسته د افغانستان د پاچا په توګه د واک پر ګدۍ کېناست، د کابل د حضـرتانو او ورسره دیني علماوو په هڅونه امیر امان الله خان د انګرېزانو پر ضد د کابل عیدګاه جومات کې د زرګونو افغانانو په حضورکې د خپلواکۍ او جهاد اعلان وکړ. انګلیسانو د افغانستان خپلواکي ونه منله او د افغان-انګلیس درېیمه او اخیري جګړه پیل شوه. په دې کې د ګڼو دیني علماوو او د کابل له حضـرتانو نه د خواجه عبدالقیوم مجددي دوه زامن شمس المشایخ فضل محمد مجددي او نور المشایخ فضل عمر مجددي د امان الله خان د جنګي قومندانانو ترڅنګ په جګړه کې برخه واخیسته.
د ټل په جنګي کربښه او محاذ کې نادر خان د جګړې قوماندان و او شمس المشایخ فضل محمد مجددي ورسره ملګری و او د وزیرستان د جنګي کربښې او محاذ د جګړې قوماندان شاه‌ولي خان و او نورالمشایخ فضل عمر مجددي ورسره ملګری و.

په دې جګړه کې ډېرو دیني علماوو برخه اخیستې وه، چې پر کابل د انګریزي الوتکې بم غورځولو او د مشـرقي د کربښې د قوماندان صالح محمد خان د عادي زخم بهانې جګړه له پرمختګه پر شا کړه. له دې سره امان الله خان رواني ضربه وخوړه او له انګریزانو سره یې د جګړې متارکه اعلان کړه. په دغه متارکه کې ځیني دیني خلک او ملي جنګیالي ناراضه شول؛ ځکه دوی غوښتل چې هغه ټولې سیمې له انګریزانو بېرته ونـیسي، چې د امیر عبدالرحمن خان او

جنرال ډیورنډ ترمینځ په مشهوره معاهده کې په موقت ډول له افغانستانه جلا شوې وې؛ ځکه چې انگریزان معاهدې ته وفادار نه شول. بیا بیا یې تجاوز وکړ، نو ځکه د دې معاهدې حیثیت پاتې نه و، چې له همدې امله د کرښې د پورې غاړې افغانانو زړونه هم مات شول.

د ۱۲۹۸ل د زمري په ۲۸مه انگرېزانو د افغانستان خپلواکي ومنله. شاه امان الله خان د خپلواکۍ د جگړې په ویاړ دواړه حضرتانو ته د لمر رسمي نښانونه ورکړل او د "شمس المشایخ" او "نور المشایخ" القاب یې ورته اعلان کړل.

د ۱۹۲۷میلادي کال په نیمايي کې امان الله خان سره له خپلې میرمنې د اروپا په اوږده سفر ولاړ، چې څه کم یو کال وخت یې ونیو. د ۱۹۲۳میلادي کال په جون کې چې بېرته راستون شو، یو ځو نا اټکل شوې او پاروونکې اعلامیې یې صادرې کړې، لکه د حجاب بندیز، د شرعي لباس مخالفت، د ښځو مطلقه ازادي، اروپايي سټایل ژوند او لباس خپلول، پر دیني زده‌کړو محدودیت او بندیز، په کابل ښار کې پر اذان بندیز او دې ته ورته ډېرې عجیبې او غریبې اعلامیې چې تاریخونو ډول ډول را اخیستې دي.

له همدې امله د دیني علماوو له کلک غبرگون سره مخ شو، چې په دې کې د ده د خپلواکۍ د جگړې ملگري د کابل حضرتان هم وو. نورالمشایخ د خپلواکو پښتنو قبایلي سیمو ته هجرت وکړ او هلته یې تر پنځو کالو ژوند کاوه. ویل کیږي چې امان الله خان د خپلو اصلاحاتو په تطبیق کې دومره احساساتي و، چې د دولت قاضي عبدالرحمن پغماني ورته د شرعي حجاب د حکم په اړه قران کریم وغوړاوه، امان الله خان قران کریم په لغته وواهه چې بالاخره یې قاضي پغماني هم د یو شمېر نورو دیني اشخاصو په څېر وواژه. له دې وروسته د امان الله په خلاف لرو بر ولس راپاڅېد، امان الله خان له هېواده تېښتې ته اړ شو.

د امان الله خان د اصلاحاتو په اړه مورخین او افغان څېړونکي تر اوسه هم یوه خوله نه دي. د محمد ظاهرشاه د واکمنۍ پر وخت رسمي لیکنې او ځینې د تاریخ کتابونه له امان الله خان سره د اروپا له سفره وروسته مخالفت کوونکي علماء او روحانیون د انګرېزانو لاس پوڅي نوموي او همدارازد ارتجاع نسبت ورته کوي، خوه یوه خبره چې له سړي سره د دې ډول تورونو د اصلیت په پېژندنه کې مرسته کوي؛ هغه دا ده چې څرنګه هغه علماء او روحانیون چې له امان الله خان سره د انګرېز پر وړاندې په جګړه ګې برخه اخلي او د خپلواکۍ د اعلان په ملاتړ کې د امان الله خان تر شا درېږي، هر ډول قربانۍ ورکوي خو کله چې امان الله خان له انګرېزانو سره دوستانه پیلوي له اروپا نه د راستنېدو پرمهال همدا روحانیون ورسره مخالفت کوي؟ که لاس پوڅي واي نو د خپلواکۍ د اعلان او د افغان انګلیس د دریمې جګړې پرمهال به یې د امان الله خان خوا نه نیولای!

افغان تاریخ پوه حسن کاکړ چې زموږ د واکمنۍ پر مهال یې کندهار ته سفر لاره او زه یې کوربه وم، په دې اړه مو مفصل بحث وکړ، خو د هغه دغه جمله مې تراوسه هم په یاد ده، چې ویل یې: امان الله خان چې د اصلاحاتو په نامه کوم څه، په کوم ډول عملي کول دا د هغه یو حماقت و!.خو د ښاغلي کاکړ په خبرو هم پوره باور نه شي کېدای، په تیرو دو لسیزو کې د حالاتو له بدلون سره د نوموړي بدلېدونکي دریځ ته په کتو سړی نه شي ویلای چې د هغه اصلي او وروستۍ رایه به څه وي او یا به د هغه په لیک او وینا کې د بې طرفه قضاوت او رښتینولي رنګ څومره غالبه وي.

امان الله خان چې څه و، هغه و، خو که یې د هېواد د پرمختګ له مثبت هوډ سره د ملي ارزښتونو او دیني عقایدو درنښت په نظر کې نیولای وای، د کلتور د بدلون او دیني ارزښتونو د تنقید د ناوړه هڅو پر ځای یې همدغه پرمختګ

ته د غربي شکل پر ځای افغاني شکل ورکړی وای، ولس او ديني طبقه يې په حکيمانه ډول په دې کار کې د ځان ملګري کړي وای، د مصلحت او حالاتو د تقاضا په سيوري کې يې خوځښت پيل کړی وای، دا به هم د ده، هم د ملت، هم د وطن او هم د ديني طبقې په ګټه وای.

د تاريخې پيښو په استناد امان الله خان له دې سره چې د مثبت مدني بدلون پلوي و، د شخصي ژوند په هره برخه کې يې عصباني او بې صبره مزاج لاره، خو د ستونزو پرمهال بيا بې زړه او بې مقاومته و. د هغه له لورې په وړو وړو خبرو توپنچه ويستل او د مرګ ګوابنونه کول د بې صبرۍ او عصبانيت دليل دي، خو د رښتيني مقابلې پر وخت يې بيا د تيښتې لاره غوره کړه! وطن اوپيروان يې يوازې پريښودل ، نه يې د داود خان غوندي په خپله توپانچه تر مرګه مقاومت وکړ اونه يې له تيښتې وروسته د خپلو پيروانو رهبري او رهنمايي وکړه ، چې دا د هغه د نه مقاومت او بې زړه توب دليل دی.

د امان الله خان د تېښتې او نادر خان د واکمنۍ تر مينځ لږه موده يو ډول د قدرت خلا وه، ځکه ديني طبقې سره له دې چې په مېړانه يې جهاد کولای شوای، خو د زهد او درويشۍ مزاج دومره پرې غالبه و، چې له وړاندې يې د سياسي خلا د ډکولو اماده ګي او تنظيم نه لاره، که نه هغوی کولای شوای چې يوه ځواکمنه ملي او اسلامي واکمني يې قايمه کړې وای.

په دغه خلا کې حبيب الله کلکاني واکمن شو، چې له خپلو پلويانو سره د يوه بريد په پايله کې د هېواد پلازمېنې ته دننه شوی و، هغه ديني مقررات حمايه کړل، خو د دولت اداري تجربه او وړتيا يې نه لرله. بالاخره هغه هم د يوې دسيسې له مخې د نادر خان له خوا له واکه ګوښه او د انتقام له مخې يې مجازات کړ.

نادر خان واک ته له رسېدو سره د امان الله خان اصلاحات او ځینې نادوده تغیرات لغوه اعلان کړل او په دې سره یې دیني طبقه او ولسي جذبات خاموش کړل. د نادر خان له لنډې واکمنۍ وروسته د هغه د زوی محمد ظاهر شاه دوره د دیني علماوو له خوا دولت ته او د دولت له خوا علماوو ته نسبتاً ارامه وه، خو د دولت، عصري درسګاوو او دیني علماوو ترمینځ یو ډول فاصله زیاته شوه، په عامه توګه علماء په اطرافو کې د دنیا له هر څه بې خبره په خپل دودیز درس او تدریس بوخت وو او عصري درسګاوو کې د دین رنګ ورځ په ورځ پیکه کېده. د مارکسیزم فلسفې او نظریاتو ورځ په ورځ په عصري درسګاوو کې نفوذ کاوه، آن تر دې چې د مکتب او پوهنتون ډېری شاګردانو به دیني خبرو او علماوو ته یو ډول د توهین په سترګه کتل، چې د دغه عنصر زیاتوالي او په دې اړه د واکمن نظام ارادي خاموشۍ بالاخره کمونیزم په عملي بڼه را وزېږاوه.

### د دیني ډلو او اشخاصو سیاسي بروز

په افغانستان کې د انګرېزانو پر ضد درې واړه مقاومتونه د دیني جنبې په لرلو علماوو رهبري کړل او د وخت واکمنو د علماوو فتوا او فیصله د مقاومت پیلامه ګڼله، له همدې امله دیني طبقه او خاص اشخاص او کورنۍ واکمنو ته ارزښتمنې وې. دیني طبقي هغه وخت په ولسي کچه عام فعالیت لاره، ځانګړي چوکاټ او سیاسي جوړښت ته یې اړتیا نه محسوسوله، خو د حالاتو، ظروفو او امتحاناتو په بدلون سره هغوی دې پلو ته کرار کرار اړتیا محسوسه کړه.

### نورالمدارس او خدام الفرقان

د ظاهرشا د واکمنۍ په پیل کې نورالمشایخ فضل عمر مجددي د علماوو د تنظیم او سیاسي بیدارۍ لپاره هلې ځلې پیل کړې، چې پر ټول هېواد یې تر ننه اغېز لیدل کېږي. هغه د ملا مشک عالم اندړ په علمي او جهادي ماحول، د

غزني په شلگر ولسوالۍ کې په ۱۳٦۱هجري قمري کال چې له۱۸۹۸میلادي کال سره یې سمون خوړ، د نورالمدارس د سترې مدرسې بنسټ کېښود. دغه مدرسه خورا منظمه او د دیني زده‌کړو ترڅنګ یې د سیاسي بیدارۍ په اړه هم پروګرامونه لرل. که څه هم د دیني علومو استادان هم هغه درویش‌صفته علماء وو، چې له تدریس وراخوا یې له بل څه سره کار نه لاره، خو ځینې استادان او منتظمین او په خپله د حضرتانو کورنۍ د عامه معلوماتو، سیاسي افکارو او اسلامي فکر په برخه کې منظم پرګرامونه او لیکچرونه لرل، چې له همدې امله دغې مدرسې د اسلامي فکر او جهاد په برخه کې ستر ستر رجال پیدا کړل چې د هېواد پر ټولو اطرافو یې اغېز وشینده. بالاخره یې د "خدام الفرقان" په نامه تنظیم تاسیس کړ، چې سیاسي او فکري مبارزه یې پیل کړه. دغه تنظیم د ندای حق په نامه جریده خپروله چې کله ناکله به د سیاسي نیوکو له امله حکومت پرې بندیز هم لګاوه. دغه تنظیم او نورالمدارس مدرسې په علمي ماحول کې د سیاسي ویښتیا ترڅنګ دیني زده‌کړې هم منظمې کړې. مدرسې ۱٦صنفونه لرل، تر دوولسمه متوسطه وه او په شپاړسم صنف کې به د حدیثو دوره پوره کېده چې یو شیخ الحدیث یي د دېوبند فاضل و. له همدې امله د حدیثو درس د دیوبند د مدرسې په طرز کېده.

په وروستي صنف کې صحیح بخاري، صحیح مسلم، سنن ابی داود، سنن ترمذي، موطا امام مالک، سنن نسایي او سنن ابن ماجه درسېدل، خو اصلي ترکیز به پر صحیح بخاري، صحیح مسلم او جامع ترمذي و.

د خدام الفرقان تنظیم د دیني حلقو ترڅنګ عصري درسګاوو ته هم ورو-ورو پراخېده. بالاخره د دغه تنظیم په سرپرستۍ د ظاهر شاه د دورې د ځینو اسلام‌ضد کړنو په خلاف په کابل ښار کې سترې مظاهرې ترتیب شوې. دا مظاهرې څو ورځې روانې وې، حکومت له ولسي پاځونهووېرېده. علماء یې

وځپل او بنديان يې کړل. وروسته د دولت له لوري د اطمنان په ورکولو مظاهرې ختمې شوې، خو په دولت کې د اسلام‌ضد ځېرو په خاص ډول کمونستانو له خوا د دغې کورنۍ په وړاندې حساسيتونه زيات شول، چې کله ايټاليې ته د ظاهر شاه د سفر پر مهال د هغه د تره زوی او پخواني صدراعظم، سردار محمد داود خان سپينه کودتا وکړه او ظاهر شاه يې له واکه لېرې کړ.

دا وخت د داود خان پر شاوخوا اکثره کمونستان راټول وو، ځکه خو خدام الفرقان ته ستونزې نورې هم زياتې شوې. خو د دغې کورنۍ تاريخي شاليد او ولسي ملاتړ دولت ته معلوم و، ځکه يې پرې زيات فشار نه شوای راوړلای. بالاخره د ۱۳۵۷ل کال د غوايي په ۷مه کمونستانو د کودتا پرمهال له يو دوو ماشومانو او ښځينه وو پرته د حضرتانو د کورنۍ ټول غړي او واړه لومړی اسيران او بيايې په زندان کې له مينځه يوړل. د دغې متنفذې کورنۍ پيروان بيا وروسته په جهادي تنظيمونو کې لکه د حرکت انقلاب اسلامي، د مولوي محمد يونس خالص په مشري اسلامي حزب، نجات ملي او اتحاد اسلامي او نورو گوندونو کې په جهاد او مبارزه بوخت شول، چې بارزې څېرې په کې مولوي نصرالله منصور، مولوي جلال الدين حقاني، مولوي رفيع الله موذن، مولوي عبدالستار صديقي، مولوي رحيم الله زرمتی، د کندهار مشهور قوماندان لالا ملنگ، د زابل نامتو قوماندان ملا موسی کليم او د هيواد په بيلابيلوبرخوکې ډير نور مشهور جهادي قوماندانان او تنظيمي چارواکي وو.

### اخوانيزم او اسلامي نهضت

له لومړۍ نړيوالې جگړې وروسته، کله چې د ترکي عثمانيانو په مشرۍ د اسلامي خلافت وروستی يادگار هم د لوېديزو قدرتونو د دسيسو ښکار شو، په اسلامي نړۍ کې د امت د يووالي او اتحاد اړتيا احساس شوه. د همدې اړتيا په لړ کې لومړی په هند کې د خلافت تحريک پيل شو چې مرکزي رول په کې د

دېوبند علماوو لوباوه. دغه تحریک د انگرېزانو له خوا له سخت ټکول کېدو سره سره د هند په وچه کې د مسلمانانو د بیدارۍ یوه تلپاتې څپه وگرځېده. ورپسې په ۱۹۲۸میلادي کال کې په مصر کې د یوه دیني عالم حسن البنا او د هغه د ملگرو له خوا د اخوان المسلمین په نامه حرکت تاسیس شو، چې هدف یې په مصر کې د اسلامي شریعت د تطبیق لپاره هلې ځلې وې.

د وخت په تېرېدو دغه حرکت په مصر کې خورا نفوذ پیدا کړ. کله چې په ۱۹۴۷میلادي کال د فلسطین د خپلواکۍ مخه ونیول شوه، اخوان المسلین د فلسطین د دفاع او مقاومت شعار اوچت کړ او په دې لاره کې یې عملي مبارزې ته مخه کړه. د فلسطین د ازادۍ شعار په مصري ټولنه او گاونډیو عربو هېوادونو کې د دغه معاصر اسلامي خوځښت اغېز او شهرت نور هم زیات کړ، څکه خو مصري واکمن له دغه پراخېدونکي حرکت نه په وېره کې شول چې له امله یې د ۱۹۴۸کال د ډسمبر د میاشتې په ۸مه نېټه د مصر صدراعظم "محمود فهمي نقراشي باشا" د اخوان المسلمین حرکت غیر قانوني اعلان کړ، شتمني یې مصادره او ډېرى غړي یې بندیان کړل. دغه عمل د حرکت د پلویانو غوسه راوپاروله، چې گومان کیږي د دغه حرکت د ځینو غړو له خوا د همدې کال د ډسمبر په۲۸مه د مصر صدراعظم نقراشي ووژل شو. د نوي حکومت واکمنو د دې پېښې په انتقام کې په ۱۹۴۹کال د فبروري د میاشتې په ۱۲مه حسن البنا ترور کړ. له هغه وروسته دغه حرکت له ډېرو ربړو او بندیزونو سره مخ شو. په مصري ټولنه کې د انگلیسي لاسوهنو له امله تل د دوی د سیاسي واک مخه نیول کېده، چې کله په ۱۹۵۴میلادي کال د جمال عبدالناصر د قتل تور په اخوان المسلمین پورې شو، نو یو ځل بیا نژدې سل کسه د دغه حرکت زبده او د سر سړي په ۱۵کاله زندان محکوم شول، چې په دې کې یوه بارزه څېره سیدقطب و. سید قطب د اسلامي فکر او مبارزې په اړه ځینې مقبول اثار ولیکل او د في ظلال القران مشهور تفسیر یې ولیکه. سید قطب له یوې لنډې

وقفې خلاصون وروسته بیا ونیول شو او په اعدام محکوم شو او ۱۹۶۶د اګست په ۲۹مه اعدام کړای شو.

دغه خونړي تحریک د عربي او ګاونډیو هېوادونو ترڅنګ د اسلامي نړۍ په نورو تحریکونو هم اغېزې وشیندلې او د اسلام د سیاسي واک لپاره ډېرو مسلمانانو په بېلا بېلو هېوادونو کې د دوی د طرز پیروي او یا هم مشابه تګلاره غوره کړه، چې په دې کې پاکستان او افغانستان هم راځي، چې دغه ډلې خلک اخوانیان اویا داخوانیت پیروان نوموي.

په پاکستان کې د مولانا مودودي په مشرۍ جماعت اسلامي ډله د اخوانیت پیروه ګڼل کیږي او په افغانستان کې د ظاهر شاه په دوره کې د اسلامي نهضت ډله، چې ځوک یې د تاسیس نیټه ۱۳۳۶هجری شمسي کال یادوي او ځوک یې اصلي بنسټ په۱۳۳۱هجري شمسي کال یادوي. دغه ډله د کابل پوهنتون د یو شمېر اسلام پاله محصلینو او د شرعیاتو پوهنځي د ځینو استادانو له خوا د اسلامي نهضت په نامه ونومول شوه ، چې وروسته دغه ډله د اخوانیت پیرو ګڼل کېده. له کمونیستي کودتا وروسته د جهاد په دوره کې دربوو جهادي تنظیمونو ځانونه د نهضت سیاسي او فکري میراث خواره ګڼل.

د دغه نهضت بنسټګر په یوه قول د کابل پوهنتون د شرعیاتو پوهنځي رئیس، د غزني د اندړو اوسېدونکی، غلام محمد نیازی و، چې لوړې زده‌کړې یې د مصر په الازهر پوهنتون کې کړې وي او هلته د اخوانیانو له فکري طرزه په تاثر یې دلته په افغانستان کې سیاسي مبارزه پیل کړه. دوهم قول دا دی چې غلام محمد نیازی فکري سرچینه وه او بنسټګر یې د هغه شاګرد عبدالرحیم نیازی و.

د دې خوځښت اصلي او محوري څېرې اکثره د داود خان او کمونستانو د واکمنيو پرمهال ووژل شوې. په دې خوځښت کې يو شمېر ديني علماء هم داخل شول او په خپله پوهاند نيازي د هېواد له مشهورو ديني عالمانو سره ناستې پاستې او مشورې لرلې.

دغه نهضت د عصري درسګاوو په مينځ کې د لينن‌يزم-مارکسيسزم افکارو او اسلام‌ضد خوځښتونو پر ضد چې د وخت واکمنو يې هم ملاتړ کاوه رامينځ ته شو او د داود خان له کودتا وروسته د خوځښت مهم غړي اسيران شول. په دولت کې د کمونيزم پلويانو زيات نفوذ درلود، چې له همدې امله د دغه خوځښت غړي د مرګ او زندان له ګوابښ سره مخ شول او يو شمېر يې اړ شول چې پاکستان ته مهاجر شي.

د ۱۳۵۷ د غوايي د اوومې له کمونيستي کودتا وروسته د اسلامي نهضت غړي د يوه واحد جهادي صف په جوړولو بريالي نه شول او د جمعيت اسلامي او حزب اسلامي دواړو ډلو ځانونه د اسلامي نهضت اصلی وارثان ګڼل، چې له امله يې دغه سيالي له اوله پيل شوه او بالاخره دغه دواړه ډلې د سياسي واک او نفوذ پر سر دښمنۍ ته ورسېدې.

له خدام الفرقان او اسلامي نهضت نه علاوه په هېواد کې د علماوو او روحانيونو نورې اسلامي او روحاني وړې ډلې، انجمنونه، جوړښتونه او متحرک اشخاص هم وو، خو په دې کچه بارز او موثر نه وو.

کمونيستي کودتا او د جهاد پيل

د داود خان په واکمنۍ کې د خلق او پرچم کمونيستي ډلو پراخ دولتي نفوذ پيدا کړی و او داود خان له اسلام پالو وېرېده، خو پر کمونستانو يې باور درلود. داود خان د خپلې واکمنۍ په وروستيو کلونو کې د شوروي له مشر برېژنيف

سره اړيکې خرابې شوې. مسکو کې د رسمي مذاکراتو پر مهال برېژنيف د افغانستان په شمال کې د ناټو د تخنيکرانو له شتونه اندېښنه ښيي، چې د داود له خوا له ستوغ ځواب سره مخ کېږي او مذاکرات بې پايلې پای ته رسېږي. روسانو د دولت په دستگاه کې لوړ رتبه کمونستان د داود پر ضد تحريک کړل. دا وخت داود خان له دولتي دستگاه نه د کمونستانو د تصفيې اراده وکړه، خو کمونستانو د روسانو په دستور وار ړومبی کړ او د خلق گوند په مشرۍ يې د نظام دننه د ۱۳۷۵لمريزکال د غوايي په اوومه نېټه بدمرغه او خونړۍ کودتا وکړه، چې بيا د کودتا له لارې واکمن شويو خلقيانو خپلو کې سره واخيسته. له کودتا شپږ مياشتې وروسته د حفيظ الله امين له خوا د دولت مشر نور محمد تره‌کی ووژل شو او امين واک ترلاسه کړ. حفيظ الله امين د پرچم فرکسيون له خوا د روسانو په دستور ووژل شو او ببرک کارمل د شوروي له سرو قواوو سره په زغروالو ټانکونو سپور کابل ته راغی، چې له دې سره د شوروي يرغل عملي دور پيل شو.

کمونستان د افغان ولس له فکر، عقيدې او کلچر نه پردي وو. ټولنې ونه زغمل، له اوله يې استفراق کړل، ډېر محدود خلک د مادياتو، شخصي گټو لپاره او يا هم له وېرې ورسره ودرېدل. د ولس پرېکنده اکثريت يې پر وړاندې حساسيت وښود، دوی د هغو خلکو د ځپلو لپاره چې له دوی سره يې فکري او عملي مخالفت کاوه له بې سارې بې رحمۍ او وحشت نه کار واخيست. ديني طبقه يې هدف وگرځوله، هر هغه ديني عالم او روحاني شخصيت چې څو کسان به پرې راجمع کېدل، ژوندي يې ورک کړل. تر يو لک پوري ديني علماء، روحانيون او د اسلامي نهضتونو او ديني ډلو غړي يې ژوندي تري تم کړل، چې يوه نيمه لسيزه وروسته يې ملت په شهادت خبر شو.

په دغه جهاد کې د ولس اصلي او اساسي رهبري او د قیام حقیقي پیل دیني علماوو وکړ. د افغانستان په لېرې پرتو او اطرافي سیمو کې ولس په سوټې، بېل او تبرګي د دولت پر ودانیو او اشخاصو بریدونه پیل کړل. دغه پاڅون همدغو سیمه ییزو ولسي ملایانو رهبري کړ، که نه د داود خان په وخت کې هم د قیام لپاره پاکستان‌مېشته مهاجرو اسلام پالو ډېره هڅه وکړه، خو ولس مثبت ځواب ورنه کړ.

چې کله ملا د جهاد اذان وکړ، نو ولس په تبر او سوټې هم جهاد ته مخه کړه. دغه پاڅون شوروي ضد نړۍ‌والو ته روحیه ورکړه، چې له لومړیو څو کلونو تش‌لاسي مقاومت نه وروسته، مجاهدینو ته مرستې او مهاجرینو ته ښکاره پناه‌ګاوې پیدا شوې.

په پاکستان کې د جهادي ډلو تشکیل

څرنګه چې یو شمېر اسلام‌پالي لا له وړاندې د داود خان د حکومت پر ضد د مبارزې لپاره په پاکستان کې پټ ول، هغوی سم د واره د افغانانو د ملي مقاومت د تنظیمولو په چارو بوخت شول. دا تنظیمونه دوه ځله پر یوه مشر راټول شول او بیا بېرته سره ووېشل شول.

په ۱۳۵۷لمریز کال د غوایي کودتا وشوه. برهان الدین رباني، ګلبدین حکمتیار، مولوي محمد یونس خالص، مولوي جلال الدین حقاني، مولوي نصرالله منصور او ملګري یې د جهاد لپاره د منظمې ډلې په لټه کې وو. د همدې کال د تلې په څلورمه د علماوو په هڅو ټول په دې موافق شول چې د مولوي محمد نبي محمدي په مشرۍ د حرکت انقلاب اسلامي په نامه تنظیم کې سره راغونډ شي. د همدې کال د لیندۍ په میاشت کې د رباني او حکمتیار په وتلو دغه اتحاد ړنګ شو، خو علماء اکثره د مولوي محمدنبي په تنظیم کې پاتې شول. مولوي محمد یونس خالص هم مستقل شو، بیا چې په ۱۳۵۸لمریزکال کې عبدرب الرسول سیاف له کابله پېښور ته ولاړ، د حزب

اسلامي (حکمتيار)، جمعيت اسلامي او د مولوي خالص اسلامي حزب تنظيمونو ترمينځ يو اتحاد وشو، چې د دې موقت اتحاد مـشر سياف شو، خو له څو مياشتو وروسته متحدو تنظيمونو پر سياف د مالي خيانت تور پورې کړ. له دې امله دغه لنډمهاله اتحاد هم ړنګ شو، چې له امله يې د دې موضوع په اړه مولوي محمديونس خالص غالباً "د مسئوليت احساس د مصئونيت ضامن دی" تر سرليک لاندې يوه رساله هم وليکله.

د اتحاد له ړنګېدو وروسته تر همدې نامه لاندي سياف خپل جلا تنظيم له پاکستاني او بهرنيو مقاماتو سره رسمي کړ، چې له عربي او غربي نړۍ يې ډېر مال او وسله ترلاسه کړه، خو د هغه تنظيم له اوله په داخل کې ډېر رول نه درلود، بلکې هغه قوماندانان چې د وسلې او پيسو د کمښت له امله به له خپلو تنظيمونو ناراضه شول، هغوی به د سياف تنظيم ته ورتلل؛ ځکه خو د سياف تنظيم د جهاد په وروستيو کلونو کې يو څه قوماندانان پيدا کړل.

دا ځکه چې خلک ورسره کم وو او د وسلې سهم او مال ورسره زيات و، نو دا وخت چې ځينې قوماندانان د مال په لټه کې وو او ځينو به وسله ترلاسه او بيا به يې خرڅه کړه، د دې کار لپاره د اتحاد تنظيم ښه منبع وه.

د سياف بله بريا دا په نصيب شوه، چې عرب مجاهدين ده ته ورمات شول، ځکه ده په عربي نړۍ کې ځان مشهوره کړ، د عربو ملګرتيا په خاصه توګه له عبدالله عزام سره نږدې اړيکو د سياف لپاره د عربي مرستندويه ادارو او حکومتونو د مرستې دروازې خلاصې کړې.

سياف د عربي نړۍ په ځينو مرستندويه غونډو او خصوصي ناستو کې د ټولو مجاهدينو په استازيتوب مرستې وغوښتې خو بيا يې اکثراً د خپل تنظيم په نوم تر خپل ګروت لاندې کړې.

ځرنګه چې په افغانستان کې ولسي پاڅون تر ډېره د کليوال ملا او مقتدي له خوا زور واخيست، نو ځکه خو لومړی هره هغه ډله ډېره قوي وه چې ملايان په کې زيات و، چې له همدې امله لومړی اکثره ملا طبقه او مشهور ملايان د مولوي محمدنبي محمدي تر مشرۍ لاندې حرکت کې ډېر وو. له همدې امله په اول کې حرکت د ولسي خلکو د ملاتړ په برخه کې تر ټولو تنظيمونو وړاندې و، خو ځينو کميو، لکه د تنظيمي نظم او ډسپلين کمښت، د وسلې او مهماتو کم سهم او بالاخره د خپلمينځي اختلافاتو له امله دغه تنظيم ورو ورو کمزوری شو او ستر ستر قوماندانان يې شتمنو تنظيمونو ته ورغلل. له حرکت نه وروسته ستر تنظيم د برهان الدين رباني په مشرۍ جمعيت اسلامي و، چې د احمدشاه مسعود او تورن اسماعيل خان په څېر پراخ نفوذه قوماندانان يې لرل. په درېيمه درجه کې حزب اسلامي و چې تر پايه درېيم پاتې شو، خو د پاکستان په تبليغاتي فضا کې حزب اسلامي تر ټولو تنظيمونو ستر او وړاندې معرفي کېده. له همدې امله پاکستاني او باندنيو مرستندويه ادارو دغه تنظيم ته له خپل حده ډېر زيات مهمات او وسايل ورکول او په تبليغاتي ميدان کې ډېر وړاندې و، چې په دې کې ځينو پاکستاني تنظيمونو او ادارو هم د دوی مرسته کوله او دوی خپله هم تبليغاتي شبکه ډېره قوي او جارحه ساتلې وه.

ځرنګه چې نړۍ هم د مجاهدينو انځور له پېښوره مطالعه کاوه، له همدې امله ځينو بهرنيانو هم دا ګومان کاوه، آن تر دې چې روسي جنرال د۴۰م لښکر قوماندان "الکساندر مايوروف" هم په خپلو خاطرو کې د حکمتيار په اړه فاحشه غلطي کړې! جنرال مايوروف په کندهار کې د روسانو د هغې سترې قوې په اړه چې ځلوېښت ورځې د ملا نقيب او د حرکت د يوه بل ګروپ له لوري محاصره وه، ليکلي چې دغه جګړه ځکه ډېره سخته وه، چې حکمتيار هم ورته راغلی و. خو دا کيسه د کندهار هر سړي ته معلومه وه چې دغه قوه د ملا نقيب د وسله‌والو او نورو حرکتي همکارو له خوا محاصره وه. ملا نقيب لومړی له حرکت

سره و او بیا جمعیت ته ورغی. همداراز په ځینو سیمو کې ویشتل شوي ټانکونه او چورلکې چې نورو جبهاتو به داکار کړی و، خو د دغو تنظیمونو مجاهدینو به تبلیغاتي ذوق نه لاره نو د حزب مطبوعاتیانو به یې عکسونه د حزب په اوونیزو او مجلو کې خپاره کړل او دا عمل به یې حزب اسلامي ته منسوب کړ، چې له دې امله په پېښوری فضا کې حزب په پوځي ډګر کې ډېر مخکښ معرفي و، خوحقیقي انځور له دې ډېر بدل و!

خو په ټولیزه توګه حرکت او د حکمتیار او خالص حزبونو په دریو واړو سره د ټول هیواد په کچه تقریبا له ٦٠ فیصده زیات جهادي نفوذ لاره او د دې په مقابل کې جمعیت د ټول هېواد په کچه ښایي ۲۰ فیصده نفوذ هم نه لاره ،خو جمعیت له ټولو سره دوه ښکاره توپیرونه لرل، یو د اسمعیل خان او احمدشاه مسعود په څېر ستر قوماندانان او بل د دولت له نیولو وروسته د زیاتو امکاناتو په لرلو سره د نویو قوماندانانو را جلبول .

احمدشاه مسعود او اسماعیل خان هم که په رسمي نامه حمعیت منسوب و، خو په سیمزه توګه یې ځانونه مستقل قدرتونه ګڼل ، مسعود خپلو تشکیلاتو ته د نظار شورا نو م ورکړ او اسماعیل هم د دریو ولایتو نو په کچه یوه شورا رهبري کوله. د دې دواړو قواندانانو د شهرت او پیاوړتیا یو بل دلیل هم په ګوته کیږي، هغه دا چې دوي د جمعیت او نورو تنظیمونو واړه قوماندانان خپلې پیروي ته د زور او ډول ډول فشارونو له امل اړ ایستل، چې ویل کیږي د مخالفت په صورت کې یې ځینې ترورول، ګمان کیږي چې د اسماعیل خان لخوا د بادغیس او هرات یوشمیر قوماندانان په مر موز ډول ووژل شول، همداراز د مسعود په اړه خو د لسګونو قوماندانانو د ترور خبرې کیږي، چې پیل یې د جهاد په لومړیو کلونوکې له خپل جهادي امیر پهلوان احمدجان نه وکړ،

**چې دی یې معاون و، خو هغه ته یې له دولت سره د ارتباط په تور د مرګ دسیسه جوړه کړه او وې وژلو.**

### حزب او جمعیت له تبلیغاتي ټکرونو تر پوځي نښتو

حزب اسلامي او جمعیت اسلامي لومړی یو د بل پر ضد سیاسي او تبلیغاتي جنګونه پیل کړل چې په اخیرکې په عملي جنګ کې بدل شول. په شمال کې د حزب قوماندانانو د احمدشاه مسعود سرګروپان د خپلو رقیبانو په توګه ترور کړل. په مقابل کې احمدشاه مسعود د حزب شپږ مهم قوماندانان ترور کړل. د دواړو ډلو ترمینځ عملي جګړه له همدې ځایه پیل شوه، چې د دغه کار اثر د پېښور پر مطبوعاتي میدان هم پرېوت.

د حزب اسلامي او جمعیت اسلامي ترمینځ یو د بل پر وړاندې داسې جراید او کتابونه ولیکل شول چې ژبه یې دومره سپوره وه، سړي به ګومان کاوه چې دا به کومې جهادي ډلې نه وي لیکلی. ان ترجنسی تورونو پورې بې چوکاټه تبلیغات وشول. ما هغه وخت په ماشومتوب کې په پېښور کې د دغو دواړو ډلو له خوا چاپ شوي داسې مواد لوستي، چې د یوه سالم مسلمان قلم یې له لیکلو اوتفصیل نه معذوره دی!

د حزب اسلامي اړوند شهادت ورځپاڼې د جمعیت اسلامي نه علاوه د نورو جهادي تنظیمونو پر وړاندې هم دومره نادوده ژبه کاروله چې یو ځل یې د یو انګرېز او افغاني انجلۍ عکس چاپ کړی و، لاندې ورته لیکلي وو چې دا د ملي نجات د جبهې مـشر صبغت الله مجددي لور ده! هغوی دومره تلاش ته هم اړتیا نه لیدله چې لومړی ځان ته دا معلومه کړي چې ایا مجددي لور لري که نه؟ په سبا چې دا خبره واضحه شوه چې صبغت الله هیڅ لور نه لري، نو دغې ورځپاڼې کومه ښښنه هم ونه غوښته.

همدا ترخه سیالي او اخلاقي انحطاط و، چې په پایله کې یې کابل په اور کې لولپه شو.بل پلو د حزب اطلاعاتیان (استخبارات) په پاکستان کې د مخالفو

مجاهدینو اوقوماندانانو او عامو افغان پوهانو اوفرهنگیانو په ترور او وژلو تورن ول. یوځل راته یوه دوست انجینر کیسه کوله چې د حزب د اطلاعاتو یوه لوړ رتبه مامور حاجي مالک قرار راسره موټر کې ناست و او په پیښبورکې یې یوه کور ته لاس ونیو او په خندا شو، ویل یې چې د دغو کور اوسیدونکي خبر نه دي، چې ما د دې کور ترغولې لاندي څومره انسانان له وژلو وروسته ښخ کړي.هغه ویل دا کور یې کوم وخت په کرایه نیولی و او خلک به یې پکې وژل او بیا به یې د خونې تر غولې لاندي ښخول.

د شوروي ضد جهاد کې د علماوو او طالبانو رول

کله چې کمونستانو کودتا وکړه نو تر ټولو وړاندي یې دیني طبقه هدف وگرځوله چې په دې کې ولسي ملا لومړی هدف و، افغان کمونستانو به ښکاره ویل چې سټالین شل میلونه روسان ووژل بیایې په روسیه کې کمونیزم بریالی کړ، موږ به هم څو میلونه افغانان وژنو. خو په افغانستان کې تر روسیې زیاتو مړو ته اړتیاوه، ځکه چې دلته خلک مزاجا کمونیزم منلو ته تیار نه وو، نو ښایي له ۹۰ فیصده زیات ملت د کمونیستانو له محاکمې سره مخ شوی وای. کمونستانو د سټالین فلسفه تریوه حده عملي کړه. د جومات له ملا تر خوار او غریب لمونځ گزاره مامور او بزگره پورې یې سلگونه زره بې گناه افغانان د مرگ کندې ته ټیل وهل او که د ملت قیام ځنډیدلی وای، نو ښایي د هغوي د میلونونو د وژنې ارادې ته لاره خلاصه پاتې شوې وای.

که څه هم د هغوي پر ضد قیام کې تر یوې نیمې لسیزې یونیم میلون افغانان ووژل شول، خو دا کثره د هغوي له خوا د اسارت پر ځاي له هغوي سره په مقاومت او دفاع کې ووژل شول، چې د همدې قربانیو په پایله کې د کمونیزم جرړې د افغانستان ترڅنگ له اکثرې نړۍ ووتې.

دې مقاومت کې ديني علماوو په فوځي او سياسي برخه کې اکثريتي حضور لاره او د طالب غورځنگ رامينځ ته کيدل د همدې لړۍ يو ډول تداوم و

پوځي مبارزه

څرنگه چې د کمونيستي کودتا پر ضد د ملي پاڅون او جهاد فتوا او رهبري تر ډېره په ولسي ملايانو پورې اړه لرله، له همدې امله په اکثره برخو کې رهبري هم ديني طبقې وکړه. په لويه پکتيا کې مولوي جلالالدين حقاني، مولوي نصرالله منصور، مطيع الله خان، مولوي فريد محمود او نور علماء د دې پاڅون په مخکښانو کې وو. په غزني کې قاري بابا، مولوي حيات الله (ملاکاکا) مولوي گل محمد، مولوي نيک محمد، مولوي بهادرخان، مولوي موذن، مولوي عبدالحکيم، مولوي عبدالرحمن، مولوي فقير، د ناوې امير، مولوي عبدالسلام، قاري عبدالله دانش، قاري عبدالله د جناح اباد او د يو شمېر نورو مشهورو ديني عالمانو، طالبانو او قاريانو جبهات وو.

په کابل کې تر ټولو ستره جهادي څېره مولوي شفيع الله او ورور يې مولوي صديق الله و. له هغه وروسته د مولوي محمد يونس خالص قوماندانان وو. په زابل کې د جهاد پيل ملا موسي کليم وکړ، چې د جبهې ټول يا اکثر غړي يې طالبان وو. د هغه له شهادت وروسته ملا مدد خان، ملا عبدالسلام راکټي، ملا عبدالکريم، ملا عبدالقهار او د شاجوي د طالبانو مشر ملا عبدالغني ټول طالبان وو. په ننگرهار کې تر ټولو زيات نفوذ د مولوي محمد يونس خالص و. په کونړ کې مولوي جميل الرحمن زيات نفوذ درلود. په لغمان کې مولوي عبدالرحيم حنفي د جهاد له مخکښانو و (چې د حزب اسلامي له خوا ترور شو). په لوگر کې مولوي عبدالاحمد چې په حاجي عبدالاحمد مشهور و (د حرکت انقلاب اسلامي د تنظيم ولايتي امر و) ملا خوشحال، ملا داود، مولوي

منور، ملا کاتب (چې بیا د رباني د واکمنۍ په لومړۍ دوره کې د لوګر والي و) او نور ډېر علماء او طالبان د مشهورو جبهاتو او ګروپونو قوماندانان وو.

د پېښور پر سیاسي ډګر د لوګر ولایت له مشهورو علماوو نه، پر مولوي محمد نبي محمدي (د حرکت انقلاب اسلامي امیر) سربېره چې د برکي ولسوالۍ د عباس کلا اوسېدونکي و- مولوي ظبطو خان، مولوي محمد میر، مولوي موسی جان، مولوي فضل احمد، مولوي هاشمي، مولوي سید اکبر دلاور (د مولوي شهاب الدین دلاور پلار) او مولوي فرقاني د یادونې وړ دي.

په کندهار کې ملا نقیب الله، ملا ملنګ، لالا ملنګ، ملا محمد رباني، ملا بورجان، حاجي ملا محمد، ملا نیک محمد، ملا عبیدالله، ملا محمد صادق، ملا یار محمد، ملا حفیظ الله اخندزاده، ملا محمد عمرمجاهد، ملا نورالدین ترابي، ملا عبدالغني برادر، ملا مشر، ملا محمد حسن رحماني، مشر ملا محمد حسن، مولوي حمدالله نانی، مولوي نسیم، ملا محمد عباس، ملا محمد غوث او زیات شمېر نور مشهور ملایان او طالبان وو، چې یا خو یې خپلې سوچه د طالبانو جبهې لرلې او یا د یو شمېر نورو مشهورو جبهاتو د مشرانو، مرستیالانو او یا عامو مجاهدینو په توګه په جهاد مصروف وو.

په هلمند کې مشهور جبهات د نسیم اخندزاده، رئیس ملا عبدالواحد، مولوي عطاء محمد او مولوي باز محمد جبهات وو. په اروزګان کې ملا عبدالرحیم، مولوي عبدالغني، ملا عبدالله، ملا محمد شفیق، ملا عبدالمالك، مولوي عبدالجبار، ملا روی محمد، ملا محمد عباس، قوماندان عبدالودود، ملا محمد صادق، ملا مشر، مولوي محمد شریف او داسې نور...

خوست اوپکتیا د مولوي جلال الدي حقاني او مولوي نصرالله منصور د نفوذ سیمه وه، مولوي منصور د پکتیکا اوغزني په ځینو سیموکې هم نفوذ لاره.

مولوي جلال الدين حقاني په سيمه کې يوستر جهادي ځواک و، هغه خپله هم د لوړ کچ عالم و او د پولې ها غاړه يې يوه ستره مدرسه هم لرله ،هغه به پخپله د جګړې پر لومړۍ کرښه کې جنګيدو، ځکه خو يې ترڅنګ زيات جنګيالي د مدرسو طالبان ول، د حقاني صيب په سرګروپانوکې هم ډيرى طالبان وو چې د دغو سرګروپانو افراد به ټول د مدرسو طالبان وو.

په دې سرګروپانو کې ملا رحيم الله ( ځدران) ملا دين محمد( منګل بلي خيل) ملاشازاده(کندهار) ملا شا محمد( خروټی) ملا بدرالدين ( پکتيا) ملا داروخان( غزنی) ملا شاولي ( غزنی) او ځينې نور ول.

په جنوب او جنوب غرب سيمو کې د طالبانو په نامه جنګي ګروپونو سره خلک بلد وو او د هغوی خواص، عادات او کردار له اوله ورمعلوم وو، خو د لېرې نه ځينو خلکو د پروپاګند يا ناخبرۍ له امله د طالب او طالبانو په نامه وسله‌وال مبارزين يا جهادي خوځښت پردی او له بهره وارد شوی وګاڼه.

همدغو جبهاتو کې جنګېدليو سوچه طالبانو، د طالبانو تحريک رامينځ ته کړ. دوی په اخلاقي ښېګڼو او جنګي زړورتيا باندې په خپلو خپلو سيمو کې ولس او جهادي طبقې پېژندلي وو، ځکه يې ولس سمدستي ملاتړ وکړ او بې لارې شويو مجاهدينو او ملايانو يې په وړاندې مقاومت ته زړه ښه نه کړ يا يې له ډېر کم مقاومت وروسته د تېښتې لار غوره کړه.

سياسي جوړښتونه

د حرکت تنظيم د جمعيت طلبه حرکت په نامه مستقل سياسي جوړښت لاره، چې د دې جوړښت مشر ته به يې د جمعيت طلبه صدر وايه. دغه جمعيت د ديني زده‌کوونکو له سياسي روزنې او تبليغاتي هڅو سربېره ډېر بارز اغېز د هېواد په داخل کې د دې تنظيم په قوماندانانو او وسله‌والو نه لاره. يو دفتر يې په پېښور کې درلود او بل يې په کوټه کې. د مرکزي او شرقي او جنوب شرقي ولاياتو طالبانو د پېښور له دفتر سره اړيکې ساتلې او د سوېل لويديځو او

لویدیځو ولایاتو دیني زده‌کوونکو د کوټې له دفتر سره اړیکې لرلې. د کویټې د دفتر مسئول مولوي وکیل احمد متوکل و او د کندهار ولایت مسئول مولوي احسان الله احسان و، چې بیا وروسته دواړه په طالبانوکې بارزې او کلیدي څېرې شوې. جمعیت طلبه حرکت د زونونو د مشـرانو ترڅنګ د ولایاتو مـشران هم په تشکیل کې لرل. د دې جمعیت هدف د دیني طالبانو بیداري، هماهنګي، له سیمه‌ییز او نړیوال سیاست نه خبربدا، د ځانګړو مسایلو او ځانګړو ورځو په مناسبت غونډې، ویناوې او تربیتي پروګرامونه ترتیبول و.

د مولوي محمدنبي محمدی په تنظیم کې د جمعیت طلبه دغه رول دومره مضبوط او منظم نه و، ځکه چې د رهبرۍ له خوا مستقله توجه ورته نه کېده. د دې په پرتله له حرکت نه د جلا شوې ډلې دوهم حرکت چې د مولوی نصـرالله منصور په مشـرۍ تاسیس شو، د طالبانو جوړښت خوځنده، متحرک او فعاله و.

د دې لامل دا و، چې مولوي نصـرالله منصور د دیني مدارسو پر طالبانو ځانګړی باور درلود او دغه ځوانه طبقه یې د هېواد په راتلونکي کې د بارز رول څښتنان ګڼل. دا به یې تربیتي غونډو او ویناوو کې هم ویل، چې نوی دیني نسل د هېواد په سیاسي راتلونکي کې ځانګړی رول لرلای شي. له همدي امله هغه د دیني طالبانو لپاره جوړ کړی خپل سیاسي جوړښت "تنظیم طلبه" په خپل لاس ډېر منظم کړی و. د هر ولایت او په پاکستان کې د هرې هغې مشهورې سیمې لپاره یې چې افغانان په کې ډېر اوسېدل او د افغانانو مدارس او لېسې په کې وې، مـشران په تشکیلاتو کې لرل. اوونیز تربیتي پروګروامونه یې لرل، د مدارسو ترڅنګ یې له لېسو نه هم شاګردان راجلبول، د ځینو سیمو لپاره یې د لېسو او عصـري ښوونځیو ځوانان مشـران ټاکلي وو. هغه به خپله د سیاسي کورس په نامه د یوې تربیوي سلسلې مشـري او استادي هم کوله، چې د تنظیم طلبه زرګونو غړو ته به یې په ساعتونو د نړۍ پامووړو تاریخي مسایلو په

اړه منظم لیکچرونه ورکول او ورسره به یې د نویو نړۍوالو پېښو په اړه هم ژوره تشریح ورته کوله. مولوي منصور به د انګلیسی او عربي ژبو د سمې زده‌کړې هدایت طالبانو ته کاوه، چې له همدې امله به ځینو سپین ږیرو ملایانو بد هم پسې ویل. درې ځلور چاپي خپرونې یې هم لرلې چې یوه په کې د پېښور د چاپي رسنیو په کچه منلې وه. دا د محمد امین فروتن په مشرۍ د "کوثر" په نامه اوونیزه وه (محمد امین فروتن د حکمتیار په مشرۍ د حزب اسلامي مهم چارواکی و، چې بیا یې له حکمتیار سره خوا بده شوه او د مولوي منصور حرکت ته راغی او منصور د خپل مرستیال په توګه غوره کړ. هغه په خپل اخبار "کوثر" کې پر حکمتیار نیوکه کړې وه، چې له امله یې د حزب اطلاعاتو د هغه د ترور هڅه وکړه، خو ونه وژل شو، بلکې پر سر سخت ټپي شو، چې له امله یې د ماغي ضربه وخوړه اوله فعالیته ولوېد). په تنظیم طلبه کې ډېر داسې کسان راپورته شول چې د رباني او طالبانو په دواړو حکومتونو کې یې په مسلکي ادارو کې فعال ماموریت وکړای شو او په طالبانو کې به دا خبره کېدله چې پلانی په اداره پوهیږي، ځکه چې د منصور تنظیم کې یې وخت تېر کړی!

د حرکت د مدارسو او د حزب لېسو نه به ځوانان د مولوي نصرالله منصور سیاسي او تربیوي ناستو ته راتلل، ځکه خو یې په طالب طبقه کې زیات اغېز درلود. په طالب طبقه کې د منصور محبوبیت دومره و، چې د هغه وخت ډېرو ځوانانو طالبانو پر ځانونو د منصور تخلصونه ایښي دي!

د طالبانو په غورځنګ کې د مولوي منصور په پیروانو طالبانو او ملایانوکې مشهورې څېرې، مولوي محمد طاهر انوري( دمالي وزیر، د چارو د ادارې رئیس اوپلان وزیر)مولوي عارف الله عارف( د غزني والي او د مالي وزارت معین) قاري احمد الله( د کندهار امنیه قوماندان، د زابل امنیه قوماندان، د نیمروز امنیه قوماندان، داخله وزیر او د استخباراتو عمومي ریس) مولوي رحیم الله زرمتی (د اطلاعاتو کلتور مرستیال وزیر) مولوي احمد جان (د معادن او صنایع وزیر،د بریښنا وزیر) مولوي اسحاق اخنزاده(د لغمان والي) انجینیر

عبدالله ګل ريان( د بشري حقوقو د کميسون رئيس) استاد فيض احمد فيض (د خارجه وزارت وياند) عبدالغفور افغاني( د خارجه وزارت وياند او د تشريفاتو عمومي رئيس) عبدالحکيم مجاهد ( په نيويارک کې د طالبانو استازي، په اسلام ابادکې افغان سفير) او يو شمېر نور لوړ رتبه او ټيټ رتبه چارواکي وو.

وروسته حزب اسلامي، اتحاد اسلامي او د ملي نجات جبهې هم دې ته ورته جوړښتونه جوړ کړل، چې د ديني طالبانو لپاره يې بېلې سياسي ډلې او څانګې تاسيس کړې.

د نوييمو کلونو په لومړيو کې په پېښور کي د ديني طبقي (طالبانو) ترمينځ يو ډول تحريک شروع شو، چې طالبان په مستقله توګه د هېواد د يوه دعوتي او اصلاحي تنظيم بنسټ کيږدي چې بالاخره موفق شول او د جمعيت طلبه اهل السنت په نامه له ټولو تنظيمونو نه يو مستقل تنظيم اعلان شو. دوی به اوونيزې غونډې کولې او د هر ولايت لپاره يې مشر او مرستيال ټاکل. دغه تنظيم هم د وخت په تېرېدو ډېر زيات پيروان پيدا کړل، ان چې د ټول هېواد په کچه يې په زرګونو خاموش پيروان لرل، خو ټول يا اکثر يې په پاکستان کې مهاجر او مسافر طالبان وو. وروسته د دې ډلې ځينې طالبان په داخل کې هم يو څه بارز شول، لکه د خوست د جمعيت طلبه اهل السنة مسئول مولوي عبدالحکيم شرعي چې د خوست په ګډه اداره کې امنيه قوماندان شو او د خپلو ملګرو طالبانو په توسط يې نسبتاً ښه امنيت تامين کړ، چې بيا د طالبانو د تحريک له راتګ سره د طالبانو په تحريک کې مدغم شو، چې وروسته د طالبانو په واکمنۍ کې د څه وخت لپاره د زابل والي هم و.

دغه نوي طالبي تنظيم کې تر ډېره د مولوي محمد نبي محمدي د حرکت نه مايوسه طالبان او نور بې طرفه طالبان يوځای شول، بالاخره چې د مولوي محمد نبي محمدي او مولوي منصور حرکتونه ببرته د علماوو په هڅو سره يو

شول. محمدي مشر او منصور يې مرستيال شو، تنظيم طلبه او جمعيت طلبه هم په يوه تنظيم کې راټول شول.

**د کندهار له تحريک نه مخکې له غزني نه تر زابله د طالبانو پوځي جوړښت**

د طالبانو له تحريک درې يا څلور کاله وړاندې په پکتيکا، غزني او زابل کې د ديني طالبانو له خوا د نا امنۍ د ورکولو، عدل او امنيت د تامين تر شعار لاندې يو خوځښت پيل شو، چې لومړی يې څو سترې غونډې وکړې او بيا يې له سيمه ييزو قوماندانانو د ملاتړ او همکارۍ غوښتنه وکړه. کله چې د ډاکټر نجيب الله حکومت په ځينو ولاياتو کې ولسوالۍ تخليه کړې او يوازې د ولاياتو مراکز يې ټينګ کړل، په دې لړ کې د زابل، غزني، پکتيکا او د پکتيا په ځينې برخو کې هم د قوماندانانو ترمينځ شخړې پيل شوې. بيا چې کله د نجيب رژيم زوال ته نږدې وو او د ځينو ولايتو نو مرکزونه هم د سقوط په حال کې وو، نو داوخت د تنظيمي جګړو اور په تيزيدو وو، له همدې وخته د دغو سيمو ديني طالبانو د حالاتو د سمون لپاره لومړی دعوتي هلې ځلې پيل کړې او بيا يې له ځينو قوماندانانو پوځي مرسته وغوښته، چې د حالاتو په کنټرول کې د ضرورت پرمهال مستقيمه مداخله هم وکړای شي، کله چې کابل مجاهدينو ونيو دغه خوځښت يو څه نور هم بارز شو، خو دا چې د کندهار په څېر ولې راپورته نه شو ظاهري لاملونه يې دوه وو:

يو دا چې په دې سيمو کې تر پايه دومره سخت وحشت نه دی رامينځ ته شوی، چې يو ناڅاپي قيام دې وشي. بل لامل دا و چې په دې سيمه کې د طالبانو جهادي جبهات منزوي نه ول. لکه په زابل کې د ملا موسی کليم جبهه چې وروسته ملا مدد ته ورپاتې شوه دا د طالبانو جبهه وه، د ملامدد له شهادته وروسته هم منلې وه او په ټول زابل کې يې تر پايه د واحد قوت بڼه غوره کړه،

له همدې امله سیمه ییزو قوماندانانو تر ډېره له طالبانو سره ډېر نرم تعامل کاوه او خبره یې شخړې ته نه رسوله.

دغو طالبانو صرف د یوه قوت په توګه ځان ښودلی و، نور یې تش دعوتي غونډې او پروګرامونه ترتیبول. بیا وروسته همدې منظم جوړښت د غزني، زابل او پکتیکا په نیولو او تصفیه کې د تحریک لپاره کلیدي رول ادا کړ. کله چې له کندهاره د طالبانو تحریک سر راپورته کړ، سمدستي په زابل او غزني کې د کابل او کندهار پر لویه لار ځایي طالبانو خپل فعالیت پیل کړ او له کندهار سره یې اړیکه ټینګه شوه. د کندهار او کابل پر لویه لار له غزني تر کندهاره د پرتو ولسوالیو د طالبانو سیاسي او پوځي جوړښت له کندهاره درې یا څلور کاله مشر و. د غزني د قرباغ د لسوګونو طالبانو د منظمې ډلې مشر مولوي اسحاق اخنزاده و (بیا د طالبانو د واکمنۍ پر مهال د خوست مرستیال والي او وروسته د لغمان والي شو) مرستیال یې ملا عبدالباري و. د مقر د طالبانو مشر ملا عبدالولي و. د ګیلان او جنډې د طالبانو مشر مولوي عبدالغفار و. د زابل د شاجوی د ولسوالۍ د طالبانو مشر ملا عبدالغني و او مرستیالان یې ملا نورالله نوري (د طالبانو په واکمنۍ کې د بلخ والي او شمال زون تنظیمه رییس و. د امریکا له یرغل وروسته ۱۳کاله په ګوانتانامو زندان کې اسیر و) بل مرستیال یې ملا عبدالجبار و.

د زابل د مرکز "قلات" د طالبانو مشر ملا عبدالوهاب و. مرستیالان یې ملا اسدالله او ملا محمد نذیر وو.

لومړی چې طالبان زابل ته ورسېدل، د شاجوی او زابل د مرکز طالبانو له خپلو قوماندانانو نه د هغوی اکثره پوستې او مرکزونه تخلیه کړي وو. نه یې غوښتل چې له کندهاره راغلي طالبان دي دلته حکم وچلوي، بلکې دوی ویل دلته دې زموږ د سیمې خپل طالبان واکمن شي او بله خبره یې دا وه چې دلته به زموږ له

خلکو څوک وسله هم نه ټولوي، پر دې خبرو د غزني تر جګړې يوه مياشت مخکې لا اختلاف و.

د ۱۹۹۴میلادي کال په ډسمبر کې چې د قلات د امنيه قوماندان قاري احمدالله و. قاري احمدالله دغزني د خوګيانو ولسوالۍ اوسېدونکی و، د طالبانو په واکمنۍ کې لومړی داخله وزير او بيا تر مرګه د استخباراتو عمومي رئيس و. زه د قلات مرکز کې څو ورځې له ده سره د همکار په توګه اوسېدم، د مرکز له طالبانو يې راته سر وټکاوه، چې له مرکزي تحريک سره ځان نه يو ځای کوي، دلايل او شرايط وړاندې کوي. په همدې ورځو کې د زابل يو تن عالم مولوي عبدالسلام سالمي، د کندهار د ارغنداب يو تن عالم چې اوس يې له ما نوم هېر دی او ملا نورالدين ترابي (د طالبانو په واکمنۍ کې د عدليې وزير) چې دا وخت يې د نويو فتح کېدونکو سيمو د کنټرول دنده لرله. دوی په يوه موټر کې د زابل د مرکز قلات د طالبانو مشر ملا عبدالوهاب ته د جرګې په دود ور روان وو، چې د خبرو له لارې يې موافقې ته اړ باسي. زه هم ورسره ملګری شوم، چې کله د عبدالوهاب اطاق ته ورغلو ډېرې خبرې ورسره وشوې، خو عبدالوهاب بهانې کولې او په نويو ورغليو طالبانو يې نيوکې هم کولې. عبدالوهاب سمتي او قومي انګېزې هم لرلې چې دا نو د طالبانو تاند تحريک ته تر هر څه زياتې نه منونکې خبرې وې.

څه موده وروسته عبدالوهاب له صحنې ووت او بيا د تحريک تر پايه له طالبانو سره يو ځای نه شو، خو مرستيالان يې له طالبانو سره يو ځای شول.

په همدغه دسمبر کې يو نوي هيئت د مولوي احسان الله احسان په مشرۍ له کندهاره زابل ته راغی. د قلات ښار په جامع جومات کې يې غونډه راوغوښته. په دې غونډه کې د ملا مدد خان ورور عزيز خان او ملا عبدالسلام راکټي (د طالبانو په واکمنۍ کې د ننګرهار د قول اردو مشر و) حاضر وو، مولوي احسان

الله ډېره جذابه او اغېزناکه وینا وکړه او د تحریک د پیل پر اسبابو، اهدافو او د راتلونکې تګلارې په اړه یې تفصیلي خبرې وکړې.

په غونډه کې عبدالسلام راکټي او عزیز خان له تحریک سره د هر ډول همکارۍ اعلان وکړ. راکټي غونډې ته په خبرو کې وویل که طالبان د پاکستان خلک وای، نو ما به یې په "شهرصفا" کې لامخه نیولې وای (ځکه چې راکټي د پاکستان د یوه افسر له راتښتولو وروسته له پاکستان سره د دښمنۍ اعلان کړی و) خو زه د طالبانو مشران پېژنم چې څوک دي او څه غواړي.

له دې څو ورځې وروسته له شاجوی ملا نورالله نوري او ملا جبار له طالب مشرانو سره د لیدو لپاره د وسلهوالو ساتونکو په ملتیا مرکز قلات ته راغلل.

له دوی سره خبرې د نرمۍ او جوړښت خوا ته لاړې. بیا چې د غزني له جګړې وروسته ملا نورالله نوري د خپلو ملګرو په مشرۍ د تحریک په پوځي برخه کې د قوماندان په حیث مصروف شو، نو دا خبرې هم ورسره ختمې شوې.

د طالبانو تحریک د پیل اړتیا

کله چې روسي ځواکونه د ۱۳٦۷لمریز د سلواغې په ۲٦مه له افغانستانه ووتل، د نجیب په مشرۍ کمونیستي رژیم د هېواد په هر لور کې ورځ تر بلې د زوال لور ته روان وو، چې له امله یې ډاکټر نجیب الله د سولې او روغې وړاندیزونه پیل کړل. د لږ وخت په تېرېدو دولت د ولسوالیو مرکزونه پرېښودل او د ولایاتو مرکزونه یې ټینګول، خو وروسته د هېواد په بېلا بېلو برخو کې د ډېرو ولایتونو مرکزونو هم سقوط وکړ. دغه وخت لا د نیول شویو سیمو پر سر د جهادي ډلو ترمینځ رقابت او په ځینو سیمو کې وسلهوال اخ و ډب روان و. نورو تنظیمونو یو څه محتاط دریځ درلود، خو جمعیت او حزب چې له پیښوره لا د یو بل په وړاندې رقیبان وو، نور هم د یو بل پر ضد په مورچو کې کېناستل.

په پېښنور کې بهرمېشتي ایتلافي حکومتونه تر ډېره د حزب د مشر حکمتیار له مسلسل مخالفت سره مخ وو. د پېښنور په عبوري حکومت کې صبغت الله مجددي ته د دولت د مشر، مولوي محمدنبي ته د دفاع وزیر او مولوي خالص ته د داخله وزیر څوکۍ ورکړل شوې وې. ګلبدین حکمتیار د بهرنیو چارو وزیر و، خو له لږ وخت وروسته حکمتیار بېلتون اعلان کړ او دغه دولت یې د "کرایي حویلیو دولت" ونوماوه.

په وروستي ځل چې د پاکستان دولت او نړیوال همکاران پوه شول، چې له حکمتیار او رباني پرته نور تنظیمونه د قدرت پر سر شخړې ته لېواله نه دي، نو د دغو دوو د رضایت لپاره یې هلې ځلې پیل کړې، چې له امله یې د ۱۳۷۱کال د غوایي په ۸مه د نجیب د حکومت له سقوط سره په پېښنور کې حکمتیار د لومړي وزیر، مسعود د دفاع وزیر او صبغت الله مجددي د دوو میاشتو او له هغه وروسته رباني د څلورو میاشتو لپار د دولت د مشرانو په توګه ونومول، خو څرنګه چې د نجیب دولت د خپلې یوې وفادارې او نامتو وحشي ګیلم جم ملېشې د مخالفت په صورت کې سقوط وکړ، دغه ملېشه لا هم پر کابل ښار واکمنه وه او احمدشاه مسعود د هغوی د یوه متحد په ډول کابل ته رادننه شو.

له یوې خوا احمدشاه مسعود د ګیلم جم ملېشو په ګډون کابل ښار په خپله ولکه کې واخیست او د بل چا وسله‌وال یې نه پرېښودل او بل پلو ته د حزب ځواکونو کابل ته د ننوتلو کوښښ وکړ، چې په اول کې تر داخله وزارت، مرکزي کمېټې او حتی ارګ تر دروازو پورې ورسېدل، خو د ګیلم جم ملېشو او مسعود د ځواکونو چې د زاړه رژیم یو شمېر وسله‌وال هم ورسره وو، د حزب ځواکونه د سخت جنګ په پایله کې د کابل ښار څنډو ته راشاته کړل، چې له دې سره د حزب او جمعیت خونړۍ جګړه پیل شوه، تر درېوو کلونو یې د کابل ښار په کنډواله بدل کړ او تر پنځوس زره زیات عام کابلیان په دې جګړو کې شهیدان

شول. په دې کې تورسرې، ماشومان او بوډاګان هم وو. صبغت الله مجددي په لومړیو ورځو کې کابل ته دننه شو او څو ورځې وروسته د یوه دولتي وفد په مشرۍ مزار ښار ته ولاړ. هلته یې د ملېشو مشر عبدالرشید دوستم ته د "سترجنرال" د رتبې ترڅنګ د "خالد بن ولید" مقدس خطاب هم وکړ، چې د ډېرو افغانانو د خپګان سبب وګرځېد.

تر دوو میاشتو وروسته مجددي هڅه کوله چې پر څوکۍ پاتې شي، خو احمدشاه مسعود هغه له لومړۍ ورځې د دولت د مشر په توګه نه و منلی او نه یې هم د هغه کومه خبره منله، چې کله دوه میاشتې پوره شوې، په اسانۍ یې له دندې لېرې کړ او ربانې د رسمي مراسمو په ترڅ کې د دولت مشر شو، خو له څلورو میاشو وروسته یې پر واک پښې ټینګې کړې او د مسعود پر پوځي ځواک یې تکیه وکړه. مګر نور متحد تنظیمونه او قوماندانان په دې کار مایوسه شول او هغه ګوډ او مات اتحاد هم کمزوری شو او تقریباً له مینځه ولاړ. د حزب د تنظیم مخلصو قوماندانانو او مشرانو هم ځانونه نور له دې جریاناتو ګوښه کړل. یوازې په پټو سترګو جنګېدونکو قوماناندانو ته میدان خالي شو، چې چا جنګ کولای شوای، که نور یې هر ناوړه عمل کاوه، هغه ته هر چا په خپل بغل کې ځای او هر ډول امکانات ورکول. د کابل ښار د مسعود، دوستم، حکمتیار، سیاف او حزب وحدت د ملیشو په وحشـي تمرینګاه بدل شو او هغه څه وشول چې ښایي په تاریخ کې یې له کمونیستي جنایاتو وروسته ډېر کم ساری وموندل شي!

د سیاف ملېشو د حزب وحدت د ملېشو پر سیمه د هزاره ګانو عزتونه لوټ کړل، عام خلک یې ووژل او کورونه یې تالا کړل. د مزاري په مشـرۍ د وحدت هزاره ملېشو د سیاف په انتقام کې عام پښتانه نیول، په ژوندوني به یې د غاړې رګونه ورغوڅ کړل، بیا به یې د غاړې په رګونو سره کړي غوړي ور

واچول. په مړي کې به لړ حرکت پاتې و، چې له همدې امله به یې ټوپونه وهل. دې ته به هغوی خوشحالي کوله او د "رقص مرده" نوم یې ورباندې ایښی و. دا په نړۍ کې د وحدتي هزاره ګانو لومړنۍ اختراع وه، چې ښایي په نړۍ کې یې تر اوسه ساری نه وي لیدل شوی.

د سیاف له خوا مـشري په خپله سیاف، د هغه وراره ممتاز او قوماندان شېرعلم او یو شمېر نورو بدنامه ټوپکیانو کوله او د وحدت له خوا عبدالعلي مزاري او د وحدت نورو مشـرانو او قوماندانانو د دې اعمالو سرپرستي کوله، چې اوس د دواړو غاړو اکثر هم هغه قوماندانان او مشران په اوسني حکومت کې پر دندو بوخت دي.

د رباني په واکمنۍ کې چې د هېواد پلازمېنه کابل ښار په څو دا ډول وحشـي قوماندانیو وېشل شوی و، نو د نورو لېرې پرتو سیمو به څه حال و!

یوازې د کابل په ښار کې وحشتونه، د خلکو پر مال، سر او عزت تېری یو ډېر لوی داستان دی، چې زرګونه پاڼې کتاب یې هم نه شـي ځایولی. سیمه ییزو لیکوالو او نړۍوالو بشـري ادارو هم په دې اړه ډېر اسناد خپاره کړي دي، خو افسوس چې چا یې عاملینو ته نه یوازې د سزا هڅه نه ده کړې، بلکې د بشـري حقونو نړۍوالو دعوه لرونکو، د خپلو استعماري موخو لپاره همدغه مجرمین په پیسو او څوکیو خوشحاله ساتلي او جیبونه یې په ډالرو ورډک کړي دي.

د ۲۰۰۱م کال د سپټمبر یوولسمې له پېښو وروسته چې کله متحده ایالاتو پر افغانستان یرغل وکړ، له هغې نېټې راهیسې د دې کرښنو تر لیکلو هماغه ټوپکوال او د بشـري حقونو ناقضین د امریکایي یرغلګرو په مټ پر ولس واکمن دي. د همدغو جنایتکارانو د لاسوهنو له امله د بـشري حقونو د خپلواک

**کمېسیون هغه رپورټ هم نه شي خپرېدای چې د تېرو دوو لسیزو په کورنیو جګړو کې د بشـري حقونو د ناقضینو پېښې یې ثبت کړې دي.**

## د کابل څو بېلګې

کابل ښار کې لومړی د عبدالرشید دوستم په مشرۍ د ګیلم جم ملېشو پر مهال د ښار په ډېرو برخو کې چور، تالان، د ښځینه‌وو او کشرانو هلکانو په زوره کانتینرونو ته بوول او هلته د شرابو او موزیک په محفلونو کې د دغو یرغملو بې عفتي او د مخالفت په صورت کې وژنه د ډېرو کابلیانو د سترګو لیدلې کیسې دي. له هغه وروسته د نظار شورا سرګروپانو او افرادو هم دې ته ورته اعمال پیل کړل. وژنې خو یو معمول و، چې چا به هم د وسله‌والو له غوښتنو سر غړاوه، هغه وژل کېده. د حزب وحدت سړیو چې د سیاف له وسله‌والو سره یې د ځمکو نیولو پر سر جګړه وه د عامو پښتنو سړي نیول، په ژوندوني به یې په سرونو کې میخونه ورټک وهل. د پښتنو تور سرې به یې بې عفته کړې او بیا به یې په ژوندوني سینې ترې غوڅې کړې، دا تکراري خبرې دي، دا ډول پېښې چې یې لیدلي داسې ډېر خلک -هم عاملین او هم شاهدان- اوس هم موجود دي. له حزب وحدت نه نیول شویو بندیانو هم د دغو اعمالو اعترافونه کړي دي.

له ځرخي پله سره یوې پوستې پر اولاد ناروغه میرمن له موټره ښکته کړې وه او خاوند ته یې ویلي و، چې موږ ښځې پر هر حال ولیدې خو یو د زیږون پرحال مو نه ده لیدلې، موږ غواړو پر دغه حال یې هم ووینو.

د سیاف وسله‌وال چې اکثره یې چرسیان او نشه‌یان وو، د هزاره‌ګانو تورسرې یې وړلې او جنسي تېري پرې کول. د هغوی ماشومان او بوډاګان یې وژل، نه د چا په مال بند وو، نه په سر او عفت. مشران یې داسې شوي وو، چې که به هر ډول وحشي او ظالم وسله‌وال و، خو چې د ده لپاره یې وژل کولای شوای نور یې هر ډول امتیازات ورکول. د کابل او ننګرهار ترمینځ د سروبي پر پاټک د

حکمتیار قوماندان زرداد فریادي له خپل یوه وسلهواله سپی جوړ کړی و. د دې وسلهوال تېره غاښونه وو، چې چا به پیسې نه ورکولې، همدغه جعلي سپی به یې ورخوشې کړ او لارویان او مسافر به یې پرې وداړل، ترڅو د دوی له خوښې سره سمې پیسې ورکړي.

پر دغو وحشیانو د خپلو مشرانو تسلط هم تردې کچې رسیدلي و، چې په دې اړه په کابلیانو کې کیسه مشهور ده، وايي د شورا نظار یوه قوماندان پوستې ته د چا میرمن په زور بولې وه او خاوندیې د دولت مشر برهان الدین رباني ته خپله عرضه ور رسولې وه، رباني د عرضې پر شا ورته لیکلي و: "قوماندان صیب لطفا زنش بده"

کندهار د وحشت په ګروت کې

د کندهار ښار د لسګونو قوماندانانو ترمینځ وېشلی و. ستر واک د ملا نقیب له ډلې سره و، خو هغه په خپله دومره واکمن نه و، بلکې ټول واک او ځواک ورنه قوماندان خان محمد ترلاسه کړی و، چې په "خانو" یې شهرت درلود. خانو بدمعاشان او وحشـي کسان پر ځان راټول کړي وو، ملا نقیب په خپله هم ترې ډارېده.

والي ګل اغاشیرزی و. شېرزی یوازې له رباني د کندهار د ولایت په نامه مالي سهم اخیست او نور واک یې نه درلود. له همدې امله یې ځان ښه شتمن کړی و، نظامي خلک یې کم لرل چې هغه هم ډېر بدخلقه نشهیان او بېکاره کسان وو. قول اردو د ملانقیب مربوط د خانو په واک کې وه. د خانو ډله په نظامي لحاظ یو څه ځواکمنه وه. زغروال ټانکونه او وسله یې هم لرله او رباني هم توجه ورته کوله، ځکه چې دا په کندهار کې جمعیت اسلامي پورې تړلې جبهه وه. د هوايي ډګر واک د کندهار د مشـر قوماندان حاجي مغاش د زوی حاجي احمد تر واک لاندې و. د قشله جدید پوځـي سیمه او د ښار غربي سیمې د امیر

لالي د وسله‌والو تر واک لاندې وې چې وسله‌وال يې ډېر وحشي او ظالم کسان وو. د سياف د تنظيم د قوماندان استاد عبدالعليم وسله‌وال د کندهار لويديځ ته د سرپوزې په سيمه کې مېشت وو. استاد عبدالعليم تر جهاد مخکې موټروان پاتې شوی و. د موټروانۍ له وخته په "استاد" مشهور و. په دې سيمه کې موټروان ته هم استاد ويل کيږي. د ده کسان هم په هيڅ کې ترچا کم نه و، نور هم ډېر واړه او غټ قوماندانان وو، چې ځوک يې ډېر بد وو او ځوک لږ.

دکندهار د زوړ ښار پر سيمه د حزب اسلامي د قوماندان عطا محمد سرکاتب وسله‌وال واکمن وو.

په کندهار کې د روسانو پر ضد جهاد ډېرو سپينږيرو خلکو پيل کړ او ډېر وروستني خلک هم داسې سپينږيري اوسېدل، ځکه جهاد هغه چا کاوه چې د جهاد روحيه يې لرله او د جهاد روحيه ايماندارو او اسلام پالو خلکو لرله، خو د وخت په تېرېدو ځينې مشهور او محرک مشران شهيدان شول لکه لالاملنګ او نوري اکثره له صحنې ووتل، بله خوا د وخت په تېرېدو د مال او ځواک شوق په مجاهدينو کې زيات شو، چې دا ستونزه په ټول هېواد کې وه. د دې کار لپاره له نامشروعو لارو ګټه اخيستل پيل شول، چې په دې کې نامطلوبو، غلو او اجرتي قاتلانو ته هم خلکو په جبهاتو کې ځای ورکړ، چې له دې امله ځينې دغه غله او اجرتيان تر دې کچې پياوړي شول چې بيا د خپلو قوماندانانو هم زور پرې نه رسېده. په کندهار کې داسې ډېر سرګروپان وو، چې پخوا خلقيان وو او په کمونيستي ملېشو کې پاتې شوي وو، خو ځينو قوماندانانو د قوم پالنې پر بنسټ يا هم د خپل رقيب د ځپلو لپاره له ځانه سره ونيول، چې وروسته بيا ورنه ځواکمن ټوپکوال جوړ شول او د هم مثله خلکو له راجلبولو وروسته يې خپل پاټکونه واچول. همدې خلکو بيا د چا د عزت او ابرو څه پروا نه لرله؛ ځکه

چې د کمونیستي دورې له پیله په همدې مظالمو او وحشت روږدې وو، چې بېلګه یې "منصور" او "بارو" وو چې د کندهار ښار او بولدک ترمینځ یې پر لویه لار پاټک اچولی و، له مسافرو یې ځوانې تورسرې او کشران هلکان د جنسي اشباع لپاره ګرځول، چې بیا طالبانو د کندهار ښار تر نیولو لږ وړاندې د دوی پر پاټک برید وکړ. منصور او بارو دواړه یې ووژل او د خپلو ټانکونو د توپونو پر میلونو یې را ځوړند کړل. وسلهوال یې اکثره په جنګ کې ورته ووژل، یوازې یو وراره یې "عبدالرازق" ورته د کم عمرۍ له امله ژوندی پرېښود ( اوس د کندهار امنیه قوماندان دی). همدې پېښې د کندهار ښار پر ټوپکیانو رعب واچاوه او د کندهار تصفیه یې طالبانو ته اسانه کړه.

د کندهار په ښار کې د څو ګروپونو ترمینځ داسې جنګونه روان وو، چې د خلکو کورونه یې هم په لمبو کې سوځېدل. خلکو پر خپلو عزتونو او کورونو ټوله شپه پیرې کولې. اکثره رښتیني مجاهدین په کورونو ناست وو، یوازې هغه قوماندانان پر میدان وو چې د قوم-قبیلې پر بنسټ یې حتی زاړه کمونستان پر ځان راټول کړي وو او له یو بل سره د سیمې د نیولو پر سر په جګړو کې ښکېل وو. داسې جګړې چې د کندهار څو اوسېدونکو عیني شاهدانو راته کیسه کوله چې په دا پورې پوسته کې یو ټانک ولاړ و پوره یوه میاشت یې په مقابل لوري د توپ ډزونه کول. د میاشتې په اخیر کې د زیاتو ډزو له امله د ټانکسټ ماغزه خراب شول او د تداوۍ لپاره یې پاکستان ته یوړ.

د کندهار خلک د کمونیزم پر وړاندې جهاد کې ډېر حیرانوونکی تاریخ لري. د کندهار مجاهدین دومره وسپنیز او غښتلي جنګیالي وو، چې په شپه کې به د ښار مینځ ته ننوتل او تر سهاره به یې له حکوت سره د حکومت د کور دننه جګړه وکړه او سهار چې به وتل، نو دښمن ته به یې درانه تلفات اړولي وو. که د کندهار ښار د خلکو همکاري نه وی، نو مجاهدین د ښار مینځ ته نه شوای

ننوتلی. د ښار په مینځ کې کمونستان په ډاډه زړه له پوستو نه شوای راوتلی، ځکه چې د ښار نیم ولس ورسره جنګېده، یو ځل د دولت پر ضد د ښار خلکو پر خپلو بامونو د تکبیر نارې پیل کړې. دا دومره زیاتې او عمومي چیغې شوې چې دولت یې په ورځو ورځو له وارخطایۍ سره مخ کړ، ګولۍ یې پرې وورولې، خو خاموش یې نه کړای شوای. بالاخره یې عذر زارۍ او جرګې پیل کړې، خو له بده مرغه ننګیالي او پاک نفسه مجاهدین، ځوک شهیدان شول او چا د نجیب د رژیم له نسکورېدو سره پر کور ناسته غوره کړه. پاتې خلکو د قوم او قبیلې په نامه زاړه کمونستان، غله او فاسقان پر ځان راټول کړل چې له امله یې د وحشت یو زړه لړزوونکی تاریخ جوړ کړ.

د خلکو له خولې څو خاطرې

د طالبانو د واکمنۍ ستر مفتي او د هېواد په کچه عالم او زاهد شخصیت مرحوم مولوي عبدالعلي دیوبندي صیب نه مې دا کیسه اورېدلې چې ویل یې، یو قوماندان له یوه کندهاري نه مېرمن بوتله او خپل اطاق ته یې د بې عفتۍ لپار وخېژوله. سړی پښتون و، نور وس یې کار نه کاوه، په ډېر لوړ اوازیې کوکې او نارې شروع کړې، چې د خدای په خاطر دا مې عزت دی، قوماندان یو څو د غښتلو متېو خاوندان وسلهوال ورته راواستول، سړی یې چپه کړ او په زور یې تناسلې اله ورتاووله، تر هغو چې ورنه بیله یې کړه، سړی ځای پر ځای مړ شو.

د کندهار د راډیو یوه مامور د خپلو سترګو لیدلې کیسه کوله، چې د کندهار شهرنو په سیمه کې یو کشر هلک روان و، د پوستې والا پسې غږ کړل، چې دې خوا راشه، هلک پوهېده چې د بدفعلۍ لپاره یې غواړي. هغه منډه کړه ټوپکوال کلاشینکوف پسې ونیو او ضربه یې کړ، هلک یې ځای پر ځای شهید کړ. دغه تنکی زلمی په وینو کې رغړېده او دوی چورت هم نه واهه!

له کوټې یو ځوان مهاجر ملا د خپل پلار جنازه له پاکستانه د زابل شاجوی ته وړه. د کندهار-زابل پر لار له شهرصفا ولسوالۍ سره د حزب اسلامي د "ګرانو" قوماندان پوسته وه. ملا وایي زما او زما د کورنۍ جهادي تعلق له حزب اسلامي سره و، ما غوښتل چې د ګرانو له پاټکیانو ځان خلاص کړم، خپل حزبي تعارف مې ورته وکړ، هغوی له غوسې په خندا شول، راته ویل یې موږ یوازې پیسې پېژنو، خو ما د پلار د یو ناڅاپي وفات له امله دومره پیسې راخیستې وې چې د لارې کرایه مې ورکړه او نورې رانه په لاره کې پاټکونو واخیستې، دا ځوان مولوي صیب وایي چې له جنازې سره یې په ولسوالۍ دننه کړم، جنازه یې پر میدان کېښوده، ماته یې مخ را واړاوه چې دا دې د پلار جنازه ده؟ ما ورته وویل هو. وایي چې پیسې نه شـې پرې کولی، اوس به د پلار جنازې ته ګډېږې، اتڼ به کوې، ما عذر او زارۍ شروع کړې، چې د پلار مرګ او ګډا او بیا زه ملا سړی یم! اتڼ مې زده هم نه دی، خو هغوی نور مرمۍ کلاشینکوف ته تېره کړه، زه پوه شوم چې پیسې خو نه شته یا دې وژني یا اتڼ وکړه! بس مجبور شوم په نه زړه مې د دوی د حیواني نفس د تسکین لپاره اتڼ شروع کړ او تر هغو یې ګډولم، مګر نور له پښو ولوېدم، مولوي صیب وایي بیا مې په ستړې وجود د پلار جنازه پورته کړه او تر ننه مې کور کې له شرمه کیسه نه ده کړې، خو د الله فضل و، چې کومه تورسرې راسره نه وه.

د کندهار د ټوپکیانو د غلا، چور، تالان، مرګ، بې عفتۍ، د قوماندانانو ترمینځ د هلکانو ودول او دې ته ورته بې شمېره کیسې مشهورې دي، خو ما د لنډون لپاره دغه پورتنۍ د خلکو او عیني شاهدانو د خولې خاطرې کافي وګڼلې.

همدې حالت د هغو پاکو او زړورو مجاهدینو لار څارله چې کندهار یې په خپلو وینو له کمونستانو ازاد کړی و او بیا د فساد پر وخت پر کور کېناستل او پر ځای یې مفسدو پخوانیو کمونستانو او بې لارې شویو مجاهدینو په ګډه د کندهار غیرتي ولس یرغمل کړی و. د همداسي پاڅون د رهبرۍ لپاره ملا

محمد عمر را وړاندې شو، ولس تش يو اواز غوښت، ځکه خو د تش لاسي ملا محمد عمر ولسي ملاتړ ډراماتيکه بڼه لرله.

ملا محمد عمر مجاهد څوک و؟

ملا محمد عمرد کندهار د خاکرېز ولسوالۍ د "چاه همت"په کلي کې په يوه علمي او ديني کورنۍ کې په ۱۳۳۹ لمريز کال چې له ۱۹۶۰ ميلادي سره سمون خوري، زېږېدلی. د پلار نوم يې مولوي غلام نبي و. نيکه يې مولوي محمد رسول نومېده او د غور نيکه نوم يې مولوي باز محمد و. د ملا محمد عمر پلار مولوي غلام نبي هم د کندهار په خاکرېز ولسوالۍ کې دنيا ته راغلی او د همدې سيمې په بېلابېلو ديني ښوونځيو کې يې خپلې ديني زده کړې کړې وې، چې بيا په دغه سيمه کې د تدريس او اسلامي دعوت په چارو کې د زيار او مصروفيت له امله د خلکو په مينځ کې د يوه ديني او ټولنيز شخصيت په توګه وځلېد. ملا محمد عمر له اره پښتون هوتک او په هوتکو کې په تومزي ښاخ پورې اړه لري.

هوتک د پښتنو قبيلو په مينځ کې يوه مشهوره او تاريخي قبيله ده، چې په تاريخي لحاظ له غوريانو وروسته دوهمه قبيله ده چې د پښتنو د مشرۍ وياړ يې په برخه شوی. هوتکيان د معاصر افغانستان په تاريخ کې د حاجي ميرويس خان( ميرويس نيکه) په څير ملي او اسلام پال مشران لري

د ملا محمد عمر مجاهد کورنۍ له مسلکي اړخه ټول ديني علماء او د ديني علومو مدرسين تېر شوي دي، چې امله يې په خپله سيمه کې ښه نوم لاره.

د ملا محمد عمر له زوکړې دوه کاله وروسته د هغوی کورنۍ د کندهار له خاکرېز ولسوالۍ د دې ولايت د ډنډ ولسوالۍ "نودې" کلي ته وکوچېده او هلته د خپل ژوند تر پايه د سيمې د خلکو د ديني ښوونې او روزنې په چارو بوخت و.

د ملا محمد عمر پلار مولوي غلام نبي په ۱۳۴۴ لمریز کال چې له ۱۹۶۵میلادي سره سمون خوري په همدې سیمه کې وفات شو او د کندهار ښار د طالبانو په نامه پخوانۍ مشهوره هدیره کې خاورو ته وسپارل شو.

ملا محمد عمر د خپل پلار له وفات وروسته د پنځه کلنۍ په عمر له خپلې کورنۍ سره د کندهار له ډنډ ولسوالۍ څخه د اروزګان ولایت د دهراود ولسوالۍ ته ولېږدېد او هلته یې د خپلو ترونو مولوي محمد انور او مولوي محمد جمعه تر سرپرستۍ لاندې د ژوند لومړنۍ مرحله پیل شوه.

ملا محمد عمر په اته کلنۍ کې د دیني علومو د ترلاسه کولو لپاره د اروزګان د دهراود ولسوالي د شهرکهنه په سیمه کې په یوه ابتدایه دیني مدرسه کې داخل شو. د دغې مدرسې سرپرستي هم د ملا محمد عمر د تره مولوي محمد جمعه له خوا کېده او ملا محمد عمر هم لومړنۍ دیني زده کړې له هغه څخه پوره کړې.

ملا محمد عمر د خپلو دوو ترونو مولوي محمد انور او مولوي محمد جمعه په سرپرستۍ او روزنه کې رالوی شو.

کله چې یې د دیني زده کړو لومړنۍ او منځنۍ دوره په همدې مدرسه کې په بریالۍ توګه پای ته ورسوله، دا وخت هغه اتلس ۱۸ کلن و. هغه د مروجو لوړو دیني زده کړو پر لوستلو پیل وکړ، خو دا زده کړې لا بشپړې نه وې چې د ۱۳۵۷ لمریزکال د غوایي پر اوومه کمونستانو کودتا وکړه او له ملا محمد عمره هم د نورو مسلمانو زده کوونکو په څېر لوړې زده کړې نیمګړې پاتې شوې.

### شورويضد جهاد کې ونډه

ملا محمد عمر د شوروي یرغل پر ضد لومړنۍ وسلهواله مبارزه د اروزګان په دهراود ولسوالۍ کې پیل کړه. په دې ولسوالۍ کې له څه وخت تېرولو وروسته د اروزګان په کچه په زړور جنګیالي مشهور شو. له همدې امله به هغه په ځینو

پوځي عملیاتو کې د بېلا بېلو جبهاتو د ګډ پوځي ځواک د تعرض قوماندان ټاکل کېده. هغه د اروزګان په ډېرو جګړو کې د تعرضي قوماندان یا هم عادي مجاهد په توګه برخه اخیستې، خو د یوه ښه جنګیالي په توګه یې په ټول ولایت کې شهرت لاره، د هغه وخت ملګري یې وایي چې ملا محمد عمر له کم عمرۍ سره سره د ځینو ځانګړنو له امله هغه وخت لا یو شمېر قایدانه صلاحیتونه لرل، چې له امله به یې د تعرضي جګړو متحد قوماندان غوره کېده، هغه د جهاد په پیل کې د مضبوط وجود او سالم بدن څښتن و.

وروسته په ۱۳۶۲ل او ۱۹۸۳ میلادي کال کې له خپلو جهادي ملګرو سره د کندهار ولایت میوند ولسوالۍ ته ولاړ او هلته یې د حرکت انقلاب اسلامي د تنظیم د مشهور جهادي قوماندان حفیظ الله اخندزاده په جهادي جبهه کې په شوروي ضد جګړو کې برخه اخیسته. دا وخت د کندهار په کچه څو طالبانو په زړورتیا او تاکتیکي جګړه کې خورا شهرت درلود، چې په دې کې زیات شهرت ملا نېک محمد، ملا محمد عمرمجاهد او ملا محمد اخوند لاره. ملا نېک محمد د هغه وخت د کندهاریانو په وینا په تنها سر له پوره روسي زغروال کاروان سره په ساعتونو ساعتونو جګړه کوله او د آر پي جي راکټ په مټ به یې په یوه جګړه کې درځن زغروال ټانکونه ویجاړول، ویل کیږي چې په یوازې سر به یې درې ډوله وسله له ځانه سره وړله، ترڅو د زغروالو ټانکونو او پلې عسکرو دواړو سره په یوازې سر جګړه وکړای شي. ملا محمد عمر هغه څوک و، چې د ملا نېک محمد سره یې یو ځای نوم یادېده او په ډېرو جګړو کې دواړو په ګډه برخه اخیسته. ملا محمد عمر له روسانو سره په جګړه کې څلور ځله زخمي شو او په وروستي ځل یې ښۍ سترګه هم له لاسه ورکړه.

د ملا محمد عمر څو جهادي خاطرې

ملا محمد عمر ته له نږدې کسانو نه د هغه دا څو خاطرې رانقل شوې دي:

لومړۍ خاطره: په کندهار کې د دولت یوه ځواکمنه پوسته وه چې د "بدوانو" پوسته یې بلله. له دې پوستې سره کمونستانو په خورا حساس او حاکم ځای کې ټانک درولی و، چې له ګذارونو نه یې مجاهدین ډېر تکلیف وو. ډېرو مجاهدینو څو ځله کوښښ وکړ، چې دا ټانک له مینځه یوسي او مجاهدین یې له شره خلاص شي، خو له بیا بیا هڅو سره سره یې کوم مجاهد په ویشتلو بریالی نه شو. بالاخره د سیمې مجاهدینو د میوند له سنګیسار نه د مرستې لپاره ملا محمد عمرمجاهد راوغوښت او همدا ټانک مرحوم ملا محمد عمر په آر پي جي راکټ په ډېر مهارت په نښه او له مینځه یې یوړ. دې ته ورته د هغه بل ملګری ملا عبید الله اخوند له روسانو سره د جهاد په دوران کې د کندهار د محله جات په سیمه کې په یوه مخامخ جګړه کې د روسانو دومره ټانکونه او موټرونه وسوځول، چې په سبا ورځ له لېرې نه کتونکو خلکو چې دا سوځول شوی کتار لیده، نو ګومان یې کاوه چې روسي کاروان اوس هم ولاړ دی. ملا عبید الله اخوند د طالبانو په واکمنۍ کې د ملي دفاع وزیر شو او د امریکا له یرغل وروسته د ملا محمد عمرمجاهد د نائب په توګه وټاکل شو. اروابناد په پای کې د پاکستان په زندان کې تر شکنجې لاندې په ۲۰۱۰ کال کې شهید شو.

دوهمه خاطره: د شوروي یرغلګرو پر ضد د جهاد پر مهال د کندهار-هرات پر لویه لار د ژړۍ ولسوالۍ د سنګیسار په سیمه کې د روسانو ټانکونه تیرېدل. ملا محمد عمر مجاهد او ملا عبدالغني برادر، چې په ملابرادر مشهور و، هم ورسره و. د روسانو په یوه قوه د برید لپاره یوازې د راکټ څلور ګولۍ ورسره وې، دوی له همغو څلورو ګولیو سره د دښمن په کتار جنګ شروع کړ چې په ترخ کې یې په همدې څلورو مرمیو د دښمن څلور ټانکونه وویشتل. ملا برارد د طالبانو د واکمنۍ پرمهال لوی درستیز او وروسته د هرات والي و او د امریکا له

یرغل وروسته د ملا محمد عمر نا ئب شو.اوس په پاکستان کې په مړ ژواندي حالت کې بندی دی.

دریيمه خاطره: د ډنډ ولسوالۍ په تیموریانو سیمه کې ملا محمد عمر د روسانو اوه ټانکونه په داسې حال کې په راکټ وویشتل چې په نوبت به د روسانو ټانکونه د مجاهدینو د سنگرونو پر لور د جگړې له پاره رامخکې کېدل. په هغه جگړه کې د شاهدانو په وینا ملا محمد عمر او ملا عبیدالله مجاهدینو ته نجات ورکړ او د روسانو مجهزه قوه یې له پوره ماتې سره مخ کړه. د جنگ په اخر کې ملا عبیدالله د اخرني ټانک له ویشتلو سره په یوه وخت زخمي شو.

له کال ۱۳٦۲ل ـ ۱۹۸۳ م تر۱۳۷۰- ۱۹۹۱ پورې ملا محمد عمر مجاهد د کندهار میوند، ژړۍ، پنجوایي او ډنډ ولسوالیو په مربوطاتو کې چې د شوروي قواوو پر ضد د جهاد مهم مرکزونه وو او نږدې هره ورځ به یې مجاهدین له دښمن سره په جگړه بوخت وو، همدارنگه د زابل په ولایت کې د شهرصفا ولسوالي او مرکز "قلات" اړوند سیمو کې د کابل ـ کندهار پر لویه لار د روسي یرغلگرو په خلاف ډېر بریالي عملیات ترسره کړل، چې په ټولو هغو کې په خپله ملا محمد عمر مجاهد برخه لرله.

تر ټولو خوښه وسله یې د روسي جنگي شوبلو (ټانکونو) پر ضد استعمالېدونکې خورا مؤثره وسله 7R.P.G. توغندی و، چې د مجاهدینو په مینځ کې به راکټ بلل کېده او ده یې په ویشتلو کې ځانگړی مهارت درلود..

د جهاد په وروستیو کلونو کې د طالبانو په ځینو جبهاتو کې ابتدایي ضبط او کنټرول پاتې نه شو، ځکه خو ملا محمد عمر هم د حفیظ الله اخندزاده له جبهې څخه له خپلو څو نورو نامتو ملگرو سره ووت. څه وخت وروسته ملگرو مجبوره کړ چې د مجاهدینو یوه وړه جبهه جوړه کړي، هغه د کندهار – هرات د

سړک غاړې سره د سنگيسار سيمې د "اډې" په کلي کې يو وړوکی مرکز (د مجاهدينو ټولی) جوړ کړ. دا مصارف به يې د خپلو مجاهدو ملگرو او اهل خير خلکو په مرسته پوره کول، ترڅو يې وروسته خپله جهادي جبهه د حرکت انقلاب اسلامي له تنظيم سره رسمي کړه، خو د جهاد پرمهال ملا محمد عمر کله هم د حرکت مشر مولوي محمد نبي محمدي نه دی ليدلی او نه هم پاکستان ته د وسلې لپاره تللی دی. په ټول ژوند کې يو ځل د روسانو پر ضد جهاد کې د پاکستان کوټې ښار ته زخمي وړل شوی، چې د سترگې له تداوي وروسته بېرته کندهار ته راغلی، همدا يو سفر پاکستان ته د هغه په ژوند کې لومړی او وروستی سفر و.

د شوروي پر ضد د جهاد پای

په ۱۳۷۱ل - ۱۹۹۲ز کال کې د نجيب د کمونستي واکمنۍ له سقوط او په هېواد کې د تنظيمي جگړو له پيلېدو سره سم ملا محمد عمرمجاهد هم د نورو رښتينو مجاهدينو په څېر له وسلې سره مخه ښه وکړه او د کندهار ميوند ولسوالۍ د سنگيسار په سيمه کې د گيشانو کلي د حاجي ابراهيم د مسجد ترڅنگ يې يوه ديني مدرسه جوړه کړه او په همدې مدرسه کې يې د خپلو څو تنو جهادي ملگرو په ملتيا د خپلو نيمگړو ديني زده‌کړو په پوره کولو بيا پيل وکړ. ملا محمد عمر په دې مدرسه کې د حديثو کتاب "مشکواة المصابيح" ولوست او د قران کريم تفسير او ترجمه يې هم ولوسته، خو د حديثو د نورو کتابونو لوستلو ته يې فرصت پيدا نه کړ. ترڅنگ يې خپلو ملگرو ته د قران کريم د قرائت او تجويد درس هم ورکاوه. ملا محمد عمر د قران کريم په تجويد او قرائت کې پوره مهارت درلود، چې د اختر د لمونځونو په امامت کې د هغه قرائت او تلاوت په لکونو خلکو اورېدلی.

دا وخت ملا محمد عمر هم شاګرد و او هم مدرس، او هم د يوې وړې مدرسې موسس او مدير و. کله چې په کندهار او شاوخوا سيمو کې د ټوپکمارۍ وحشت اوج ته ورسېد، خلکو ديني علماوو ته ډېر مخ ور اړاوه چې د شوروي پر ضد جهاد خو ستاسې پر فتوا و، خو اوسني وحشت ته ولې چوپ ياست؟

اکثره هغه جبهات چې مشران يا غړي يې طالبان او ملايان وو، دا وخت له جرياناتو وتلي وو، مشران او ډېری کشران يې پر کورونو ناست وو. ښار او ورسره تړلې سيمې تر ډېره د هغو مجاهد نما وحشيانو په واک کې وې چې دا وخت له لوټمار او بد اخلاقۍ پرته ورسره هيڅ سپېڅلې روحيه پاتې نه وه. که به مشر پخوانی جهادي قومندان هم و، خو افراد يې مجاهدين نه وو، بلکې په قوميت او نورو ناوړه مشترکاتو به پر ده راټول وو.

وحشت په ښار او اطرافو دواړو کې و، خو د لويې لارې پر سر چې لارويانو سره کوم ناوړه چلند کېده دا د هلمند او کندهار، کندهار او بولدک ترميځ زيات و. د هلمند او کندهار ترمينځ وحشت د ملا محمد عمر استوګنځي سره مېشت ولس هم له درنو ستونزو سره مخ کړی و، له ميوند نه د کندهار تر ښاره داروخان، صالح او نادرجان په وحشت کې ډېر مشهور پاټکوال قوماندانان وو، چې پر مسافرو يې هر ډول تېری کاوه. د دوی پر پاټکونو د مسافرو سر، مال او عفت درې واړه له ګواښ سره مخ وو. د بولدک او کندهار ښار ترمينځ د انځرګي غرني تنګي اوتخته پول کې د منصور او قوماندان بارو پاټکونه په ظلم کې مشهور و. منصور د کمونستانو د وخت د مشهورې جنګي ملېشې د مشر "عصمت مسلم" قوماندان پاتې شونی و. پر ده اکثره پخواني کمونيستان او د اڅکزو د قوم ځينې کسان هم د قوميت په جذبه راټول وو.

د ۱۹۹۴ميلادي کال د جون په ۱۳مه چې د۱۴۱۵هجري قمري کال د محرم الحرام د مياشتې له ۱۵مې سره سمون خوري د پنجشنبې په ورځ د ملا محمد

**عمر په ابتکار د سیمي د علماوو، د مدرسو د ناظمانو، استادانو او د مساجدو د امامانو ترمینځ د سنګیسار د یوه پخواني مجاهد حاجي غوث الدین په جومات کې غونډه وشوه، د غونډې په ګډونوالو کې مولوي سید محمد چې په مولوي پاسني مشهور و او د سیمي د مجاهدینو قاضي پاتې شوی او همدا راز مولوي عبدالحکیم -چې اوس په شیخ عبدالحکیم مشهور دی او د طالبانو د شورا غړی او د قضا مسئول دی- هم ګډون لاره. غونډې د دې ناخوالو پر ضد د یوه اصلاحي غورځنګ پر جوړېدو سلا وکړه او مولوي سیدمحمد (مولوي پاسنی) ته یې د دې غورځنګ د مشرۍ وویل خو هغه مشري ونه منله، دغه غونډه بې نتیجې پای ته ورسېده. د غونډې پر سبا ملا محمد عمر په خپله له یوه بل ملګري مولوي عبدالصمد سره په مدرسو وګرځېد چې د دې کار لپاره د مدرسو طالبان د ځان ملګري کړي.**

**د تحریک پیل د ملا محمد عمر په ژبه**

**د ۱۳۷۵ل کال د وري په۱٦مه چې د ۱۹۹٦میلادي کال د اپریل ۴له می سره یې سمون خوړ، د افغانستان د جیدو علماوو یوه ستره غونډه په کندهار کې پیل شوه چې په پایله کې یې ملا محمد عمر ته د "امیرالمومنین" لقب ورکړ. په وروستۍ ورځ امیرالمومنین غونډې ته وینا وکړه. زه هم د دې غونډې د خدمتکوونکو په ډله کې وم او په ټول جریان کې حاضر وم، ملا محمد عمر مجاهد په دې لنډه وینا کې د تحریک د پیل لنډه کیسه هم په خپله ساده او عادي لهجه وکړه. دوه ورځې وروسته د بولدک د علماوو یوه وفد ته یې په لږ تغیر سره بیاهم دغه وینا وکړه، د دې دواړو وینا غورچاڼ په دې ډول و:**

د کندهار ښار او شاوخوا حالت دې ته ورسېد، چې د مسلمانانو عزت او ابرو، سر او مال هېڅ هم خوندي نه و. یوه ورځ پر سایکل راسپور وم، د مدرسې خوا ته راتلم. پر سړک سړی ولاړ و، چې ورته راورسېدم، سړی مړ و او په مړینې یې درولی و. دغه وحشت او دا ډول نورو وحشتونو مې پر ذهن بد اثر

وکړ، چې کله مدرسې ته ولاړم، نور مې د دې جنایاتو مخنیوی پر ځان فرض وګاڼه. له مدرسې راووتم، یو بل ملګری مي له ځان سره کړ، له سنګیسار څخه زنګاوات ته راغلو، له سرور نامي کس څخه مو موټرسایکل وغوښت، سرور د تلوکان د کلي اوسېدونکی و. ملګری مې پر موټرسایکل راسره کېناوه، ملګري ته مي ویل اوس به پر مدرسو او درسو ګرځو، ماښام ته یوه کلي ته راغلو، پر لار مې ملګري ته ویل دغه لارې په یاد لره. یو تغییر به ضرور راځي. سهار بیا پر موټرسایکل سپاره شوو، یوې مدرسې ته ورغلو څوارلس طالبان په کې وو، دوی ته مو دعوت ورکړ، چې توکل محض له ذهنه مه باسئ، مسلمان بربادیږي، یو څو وحشي فاسقان او قاتلان نور مسلمانان هم بربادوي، غلو او فاسقانو ټوله سیمه نیولې ده، نه د چا عزت خوندي دی، نه سر او نه مال، پر هره لار د خلکو ناموسونه بې عفته کیږي، بدخویه او بدخلقه خلک پر خلکو هر رنګ نارواوې کوي. موږ تاسو ته په داسې وخت کې ناسته پکار نه ده، په رڼا ورځ خلک وژل کیږي مال یې لوټیږي، په عزت یې تجاوز کیږي، که تاسو دا سبقونه د الله د رضا لپاره وایاست نو د الله د رضا لپاره یې پریږدئ.

د ظلم او ستم په دغه دور کې درس او تدریس نه سي کېدای، په دې ډول یا د زنده باد او مرده باد په نارو د دې کارونو مخه نه نیول کیږي، ما هغوی ته دا هم وویل چې له موږ سره هیڅا د کومک وعده هم نه ده کړې، بلکې د وطن له عامو مسلمانانو به ډوډۍ غواړو، دا هم معلومه نه ده چې خلک به ډوډۍ راکړي که نه، کېدای سي بیا د درس ویلو موقع هم پیدا نه سي او دا هم معلومه نه ده چې به موږ کامیاب سو او که نه.

ما د هغوی په غیرت راوستلو لپاره دا هم ورته وویل، چې دغه فاجران او فاسقان چې په دې سره ګرمۍ کې پر سرو ډبرو ناست وي او په ښکاره د الله نافرماني او دښمني کوي، نو موږ ولي په ښکاره د دین خدمت نه سو کولای. دومره غفلت او بې همتي مه کوئ، بیا مي خبره نوره هم ورته سخته کړه چې که موږ کوم ځای ونیو، بیا به هلته کینو، دا شکایتونه به نه وي چې زموږ درسونه قضا کیږي، یا پیسې، وسلې او خوراک نه سته.

له دې خبرو وروسته مې ورته وویل چې تاسي په دې کار کې راسره درېږئ که نه؟

یوه هم ونه ویل چې یا کولای سو او یا تیار یو، ټولو راته وویل چې که د جمعې په شپه تاسې څه کولای سوای موږ درسره همکاري کوو (جمعه درسونه رخصت وي) ما ورته وویل چې له جمعې وروسته به یې څوک کوي؟

خدای شاهد دی ټوله کیسه همداسې وه، که موږ توکل محض نه وی کړی او ظاهري اسبابو ته مو کتلي وای نو نورې مدرسې به مو هم همداسي فرض کړې وای او سیده به بېرته (نامیده) خپلې مدرسې ته تللي وای، خو ما له الله سره عهد کړی و او توکل محض مې کړی و، دا ټول د توکل محض برکت و چې تر دې ځایه راورسېدو.

له دغه ځایه بلې مدرسې ته ولاړو، هغوی ته مو خبره نوره هم سخته کړه، چې دا کار اسانه نه دی، خو هغو ټولو چې پینځه یا اوه نفره وو خپل نومونه له موږ سره ولیکل، دغه او هغه نور طالبان د یوه امت او یوه وطن خلک وو، د یوې سیمې اوسېدونکي وو، داسې نه وو چې هغه د یوه امت و او دا د بل امت و یا دا عالمان وو او هغه جاهلان وو، داسې هم نه وو چې دا نارینه وو او هغه ښځې یا هغه سپین ږیري وو او دا ځوانان، په ابتدا کې د الله یو عجیب حکمت و او زه د الله له ډېر سخت امتحان سره مخ وم.

دغه د تحریک شروع وه.

موږ همداسي پر موټرسایکل گرځېدو، ان تر ماښامه مو ۵۲ نفر برابر کړل. صرف د توکل محض والا کسان وو، دوی ټولو نومونه راسره ولیکل.

دوی ټولو ته مې وویل چې سهار وختي زما ځای ته ځانونه راورسوئ، موږ بېرته خپل ځای ته راغلو، خو هغوی د شپې یوه بجه ټول راغلي وو، سهار چې زموږ یو مولوی صیب مسجد ته ورغی، دوی ټول له مخه لا هلته موجود وو، په دغه شپه کې د دې مولوي صیب یوه مقتدي فرښتې په خوب کې لیدلې وې چې پاسته لاسونه یې پر بدن ور ایښي و(له دې خبرې سره ملا صیب په ژړا شو او یو څه وخت خاموش و).

په سبا ورځ مو دوه موټروانان هم برابر کړل او په لس بجې مو حاجي بشير ته سړی ولېږه، له هغه مو دوه موټران او يو څه وسله وغوښتله هغه موټران او وسله راکړه، مونږ کشکِ نخود (د کندهار هلمند ترمينځ د ميوند ولسوالۍ مرکز) ته راغلو او هلته مو نور کسان هم برابر کړل، چې ډېرى سو، نو مو وسلې واخيستې او له خپله ځايه په پينځه ميله فاصله کې مو خپل کار شروع کړ.

**ملا صيب د خبرو په اخير کې وويل چې مونږ ستره دعوه کړې دا دعوه سخت امتحانات لري، دا کار توکل محض ته ضرورت لري، په خوله دعوه اسانه ده، خو عملي امتحان سخت دی. هغه دا هم وويل چې اي ديني عالمانو زه ستاسې همکاري او رهنمايۍ ته محبوره يم، ځکه زه د وړوکتابونو طالب (شاگرد) يم، که تاسو د الله د دين په نفاذ کې زما سمه رهنمايي ونکړه، نو د اخيرت په ورځ به زما لاس اوستاسي گريوان وي.**

**حاجي بشير ولې ملا محمد عمر ته لاس ورکړ؟**

**کله چې ۱۹۹۴ ميلادي کال د پسرلي په اخر کې ملا محمد عمر د سيمه‌ييز وحشت او پاټک سالارۍ پر خلاف د غورځنگ جوړولو پر هڅو بوخت و، دا وخت حاجي بشير په خپله ټوپک سالارو سره په يوه ناورين کې ښکېل و. حاجي بشير نورزی د مولوي خالص د حزب يو محلي قومندان و چې د کندهار د ميوند ولسوالۍ مرکز يې په واک کې و. د ده کسانو د سياف د قوماندان استاد عبدالعليم له کسانو سره شخړه راغله. د عبدالعليم کسانو غوښتل چې ميوند سره خوا کې پاټک واچوي چې په دې سره د دې سيمې خلکو ته يوه نوې ستونزه رامينځ ته کېده، د حاجي بشير وسله والو يې مخالفت وکړ، د بشير د کسانو يو مرکز چې د ميوند د لوکل خېلوهديرې سره و، دلته د عبدالعليم له کسانو سره په شخړه کې د بشير د وسله والو لخوا د عبدالعليم يو تن وسله وال ووژل شو، څه موده وروسته د عبدالعليم وسله والو د بشير پر**

دغه مرکز برید وکړ چې د ملاعبدالستار په مشري يې د حاجي بشير نورزي اولس تنه ووژل. دې کار بشير ته سخت ټکان ورکړ، ځکه هغه تر دې وخته له داخلي جګړو ځان ساتلی و، اوس چې له دې پېښې سره مخ شو نور د دې ستونزو نه د باعزته خلاصون په لټه کې و، حاجي بشير ملا محمد عمر له پخوا لا پېژاند او د هغه جهادي کارنامې يې ليدلې او اورېدلې وې. کله چې د هغه په اراده خبر شو نو سمدستې يې لاس ورکړ او خپله سيمه او وسله يې دواړه په واک کې ورکړل. په دې سره طالبانو د ميوند ولسوالي تر واک لاندې راوسته؛ هلته يې مرکز جوړکړ او د کندهار لور ته د حوض مدد په بازارګي کې يې خپل بل مرکز جوړ کړ. ملا محمد عمر او ملګرو يې د دې سيمې يعنې کندهار او هلمند ترمينځ د پاټکونو له مينځه وړل او د دې لارې د خونديتوب او امن لپاره اصلاحي مبارزه پيل کړه. کندهار ښار ته نږدې د ډنډ ولسوالۍ اړوند سيمه کې يې هم يو وړوکی مرکز جوړ کړ، لږ او ډېر دوه مياشتې يې د دې سيمې پاټکوالو ته د دې کار د پرېښودو دعوت ورکاوه. بالاخره يې د کندهار ښار او ميوند ترمينځ پاشمول سره نږدې د کولک په سيمه کې د يوه پاټکوال قوماندان پاټک په زور لېرې کړ، چې په دې سره په لومړي ځل د هغوی پوځي تحرک ته مخه شوه.

د طالبانو له نوي مرکزه (حوض مدت) تر کندهار ښاره تقريبا لس پاټکونه وو، چې د قوماندانانو او ځايونو نومونه يې په دې ډول وو: داروخان (کولک)، بسم الله (پاشمول)، پيرمحمد (پاشمول)، صالح محمد (پساو وزيرو کلا سره)، قيوم خان (اشوغه)، حبيب الله جان (سنځری)، نادرجان (شا اغا دوراهي)، عطامحمد سرکاتب (باغ پول)، استاد عبدالعليم (سرپوزه)، ملانقيب الله (هندو کوټۍ).

لومړی پاټک او لومړۍ جګړه

کله چې ملا محمد عمر او ملګرو يې د حاجي بشير نورزي له مرستي وروسته ميوند کې خپل ځانونه ټينګ کړل او د اوسنی زېړی ولسوالی په حوض مدد کې يې د پاټک والو پر وړاندې د منظمې مبارزې لپاره مرکز جوړ کړ، پر پاټکيانو بار بار غاړې خلاصې شوې، زاری او جرګې ورته وشوې، خو غبرګون ډېر سپور او سپکوونکی و نو لومړی پاټک د داروخان و چې پاشمول سره پر لويه لار پروت و او د وحشت او زور زياتي انګازو يې د سيمې اوسېدونکي او لارويان تر پوزې راوستي وو، ،کم زيات دوه مياشتې تېرې شوې، بالاخره د ۱۹۹۴کال د ستمبر په۲۹مه د کندهار او هلمند ترمينځ "کولک" په سېمه کې د ټوپکي قواندان "داروخان" پر پاټک بريد وشو. د دې بريالي بريد په پايله کې دغه پاټکيان وتښتېدل، لارويان او د سيمې خلک د دې پاټک له ظلمه خلاص شول، چې له امله يې د سيمې د خلکو له خوا د طالبانو بې ساري هرکلی وشو، چې دې کار طالبانو ته هم روحيه ورکړه، هم ولسـي مرسته راجلب شوه او له هر لوري نوي کسان هم ورته رامات شول.

همدا د طالبانو د وسلهوال پرمختګ لومړی ګام و، چې د طالبانو او په خاصه توګه ملا محمد عمر د پخواني نفوذ په ساحه کې يعنې د ډنډ، پنجوايي او ميوند ترمينځ يې ظهور وکړ. ځينې ناخبره خلک يا غرضي تبصـره کوونکي، د طالبانو د ظهور نقطه د پاکستان پولې ته څېرمه د بولدک ولسوالی ګڼي، چې دا يوه تاريخي تېروتنه او وهم دی. طالبانو د کندهار او هلمند ترمينځ د ميوند، ډنډ، پنجوايي او ژړی ولسواليو په شاوخوا کې پاڅون وکړ او لومړی يې د ستر افغان غازي محمدايوب خان د حماسې په ډګر (ميوند)کې سر راپورته کړ.

**د متحد امير په توګه د ملا محمد عمر انتخاب**

"داروخان پاټک" له مينځه وړلو وروسته نور پاټکيان هم وارخطا شول، ځينې په خپله خوښه لاړل او څو وحشي پاتکمار لا پاتې وو، لکه صالح، نادرجان او

ځو نور. دا وخت د بولدک، ارغسان، ارغنداب او معروف څخه نوي طالبان چې د پخواني جهاد مشهورې څېرې هم په کې وې له طالبانو سره یو ځای شول. تر دې مهاله مولوي عبدالصمد او ملا محمد عمر ګډ کار کاوه، جنګي مشر ملا محمد عمر و او نوره مشري مولوي عبدالصمد کوله، عبدالصمد د کار له پراخوالې وېرېده او سوړ مزاج یې درلود. طالبانو تر ډېره ملا محمد عمر خپل اصلي مشر ګاڼه، د دې نوي غورځنګ مخورو ملګرو او د سیمې علماوو غوښتل چې په دوی دواړو کې دې یو تلپاتې مشر شي. له لومړیو پوځي عملیاتو نږدې اته ورځې وروسته د دې انتخاب لپاره غونډه را وغوښتل شوه، چې د تحریک ټولو افرادو او د سیمې علماوو په کې ګډون کړی و، د حوض مدد په سپین جومات (هغه وخت د میوند او اوس ژیړۍ ولسوالۍ سره اړه لري) غونډه وشوه چې اکثره ګډونوالو پر ملا محمد عمر توافق وکړ، په دې کې ملا نور الدین ترابي د ملا محمد په ملاتړ ټینګار وکړ چې په پایله کې ملا محمد عمر د ټولو په خوښه د واحد امیر په توګه منتخب شو.

له دې وروسته طالبانو د بولدک د ولسوالۍ د نیولو لپاره ځانونه چمتو کړل.

# دوهم څپرکی

## د سپین بولدک نیول

سپین بولدک که څه هم د طالبانو د پیدایښت او نفوذ ابتدايي سیمه نه وه، بلکې طالبان د کندهار او هلمند ترمینځ په هغو سیمو کې راپیدا شول چې د غورځنګ د مشر ملا محمد عمر د جهاد او شخصي نفوذ ساحه وه، خو د لومړي پاټک له نیولو وروسته چې د طالبانو لومړی ظهور ګڼل کیږي، د معروف، ارغسان، بولدک علماء او طالبان په ډېر تعداد ملا محمد عمر ته رامات شول او دغو ولسوالیو ډېر مشهور مجاهدین او طالبان لرل، چې په دې کې د ارغسان نه ملا محمد رباني (په حاجي معاون مشهور و، چې بیا د ملا محمد عمر مرستیال او رییس الوزرا شو) چې په کندهار کې د جهادي دورې د یوې مشهورې جبهې مرستیال او تعرضي قوماندان و. همداراز په بولدک او معروف کې مهم طالبان او علماوو، چې له همدې امله دغه ولسوالۍ بالقوه له سقوط سره مخ وه، یوازې یو غږ یې غوښت، هم هغه و، چې ملا محمد عمر د دې سیمې له طالبانو سره له مشورې وروسته د بولدک د نیولو پلان جوړ کړ او د ۱۹۹۴میلادي کال د اکتوبر په لسمه یې پربولدک برید وکړ.

د کندهار او هلمند ترمینځ له پوځي عملیاتو نږدې یوولس ورځې وروسته یې په ډېر مهارت دوه هینو لارۍ له وسلهوالو ډکې کړې او ترپالونه یې پرې واچول، چې څوک پوه نه شي چې وسلهوال په کې دي.

د يوې لارۍ د طالبانو مشر د ارغنداب ولسوالۍ د "ژوندو هديرې" د کلي اوسېدونکی حاجي ملا محمد اخوند و (چې بيا وروسته په جنوب کې د طالبانو عمومي نظامي قوماندان و) او بل جګ ملا محمد و (په همدې نامه شهرت لري) چې د ملا محمد عمر نږدې ملګری و. دواړه لارۍ موټرونه د بولدک ولسوالۍ په مينځ کې ودرېدل او په يوه غږ وسله‌وال طالبان ترې ښکته شول. د بولدک ولسوالۍ د حزب د قوماندان اختر جان په واک کې وه، ده د جګړې تياری نه و نيولی. وسله‌وال يې تيت و پرک وو، چې د وارخطايي له امله ټول موجود کسان د ولسوالۍ له مرکزه وتښتېدل. طالبانو د هغوی د وېرولو لپاره خطايي ډزې وکړې، د ولسوالۍ ډېره برخه د طالبانو لاس ته ورغله. د اخترجان او نورو ټوپکمارو وسله‌وال د ولسوالۍ څنډو ته لاړل، خو پر دا سبا د جوابي جګړې په تياري بوخت شول او پر طالبانو يې ډزونه پيل کړل. طالبانو هڅه کوله چې مخالف وسله‌وال له جګړې پرته سيمه پرېږدي، له همدې امله يې د ډزو جواب نه ورکاوه، مشرتابه ورته امر کړی و، چې د هغوی د ډزو په جواب کې به ډز نه کوئ.

ولې درېيمه ورځ چې هغوی پر طالبانو بريد پيل کړ طالبانو هم پر هغوی وسلې ورواړولې. لومړی د آرپي جي راکټ ډز ملا دادالله وکړ او له دې سره جګړه پيل شوه. طالبانو په لومړي ځل يو تن له لاسه ورکړ چې سليم اغا نومېده، د کندهار د زنګاوات د سيمې اوسېدونکی و، تر دې وړاندې هيڅ يو طالب د ټوپکمارو پر ضد جګړه کې نه و شهيد شوی، همدا د تحريک لومړی شهيد و. له لږې جګړې وروسته د بولدک ولسوالۍ پاتې سيمه هم د طالبانو لاس ته راغله. د بولدک د نيولو خبر سيمه‌ييزو مطبوعاتو خپور کړ چې له دې سره د سيمې او نړۍ پام طالبانو ته واوښت. له شکه پرته چې د بولدک په نيولو کې د ملي تجارانو، عام ولس او د لويې لارې د موټر چلوونکو له خوا طالبان په لويه پيمانه استقبال شول. دغه شهرت په لر او بر کې خور شو، چې له امله يې

پاکستان‌مېشتي دیني زده‌کوونکي هم د طالبانو مرستې ته رامات شول او د کندهار د نیولو پر مهال ډېری نوي طالبان هم راجذب شوي وو.

د بولدک نیول د طالبانو د غورځنګ لپاره یوه ښه پیلامه وه، ځکه چې له یوې خوا د دوو نږدې ولسوالیو نه زیات شمېر طالبانو او مشهورو قوماندانانو مرستې ته را ودانګل. له بلې خوا له پاکستاني مدرسو ځوان افغان طالبان رامات شول، بل پلو د بولدک او چمن ترمینځ د کاروبار او تجارت ستره منډیي وه، چې دلته د هېواد سترو تجارانو کاروبار کاوه. د طالبانو وجود هغوی ته د ارام سا ورکړه، چې له همدې امله دغو سوداګرو له طالبانو سره پراخې نقدي مرستې وکړې، چې له امله یې طالبان په پښو ودرېدل او د وسله‌والو لپاره یې د خوراک او موټرو د تېلو مصارف پیدا کړل. د بولدک له نیولو وروسته طالبانو د پخوانیو جبهو ځینې ډیپوګان هم ونیول (لکه د بولدک د پښې دغره ډیپو) چې له دې لارې یې زیاته وسله او کارتوس هم ترلاسه کړل.

بل پلو د پاکستان‌مېشتو افغان مهاجرینو او دین‌دوستو پاکستاني پښتنو د مینې او مرستې باران د بولدک او کندهار ښار د نیولو پرمهال د دې تحریک مالي او تبلیغاتي ځواک دوه چنده کړ، ځکه هر افغان چې پر دې لار پاکستان او ایران ته سفر کړی و، یا تنها یا له کورنۍ سره، نو له داسې ستونزو سره مخ شوی و، چې د دې ستونزو له مینځه وړونکی هر انسان ورته د غیبي پرښتې مقام درلود او د دوی دغه تاثر د پاکستان پر ځایي خلکو هم اغېز وکړ، چې په خپل ګاونډ کې یې امنیت او ارامي د ټولې سیمې لپاره ښه راتلونکی ګاڼه.

### د کندهار ښار فتحه

د طالبانو وسله‌وال د بولدک له نیولو وړاندې هم په کندهار ښار کې ګرځېدل، ځکه په ښار کې واحده امنیتي قوه او کومه اداره نه وه. له ځینو خاصو ځایونو پرته په نور ښار کې هر وسله‌وال ګرځېدای شوای، خو پر چا یې برید نه کاوه،

بلکې وخت او فرصت ته اړتیا وه.د داروخان د پاټک له نیولو وروسته د کندهار اومیوند ترمینځ اکثره پاټکیان پخپله وتښتیدل اوځینې له جزي مقاومت وروسته تښتې ته مجبور شول ، یواځې باغ پول کې د حزب د قوماندان عطامحمد (سرکاتب) پاټک پاتې و، همداراز د استاد عبدالعلیم وسلوالو دلته مرکز لاره.

طالبانو له دوي دواړو سره له اوله د تفاهم هڅه کوله خو له سرکاتب سره د باور فضا هغه وخت خرابه شوه، چې کله یې د ملا محمد عمر د ترور دسیسه جوړه کړې وه او تر عملي کیدو وړاندی افشا شوه، طالبانو د شا اغا پر دوه لاري د نادرجان د پاټک له ښکلو وروسته د کندهار ښار په هندو کوټۍ کې مرکز جوړ کړی و. ملا محمد عمر به وخت ناوخته له میونده دغه مرکز ته راته، چې لاره یې په باغ پول کې د سرکاتب پر پاټک وه، یوه ورځ قوماندان سرکاتب د ملا محمد عمر د وژلو دسیسه جوړه کړه، خو د "عمرخطري" په نامه د ملا محمد عمر یو پلوي، ملا محمد عمر ته دغه راز ورساوه؛ ملا محمد عمر خپل راتګ وځنډاوه او دغه دسیسه شنډه شوه. له دې څو ورځې وروسته د طالبانو مشهور قوماندان ملابورجان د سرکاتب له خوا پر دغه لاره ونیول شو، چې بیا د طالبانو لخوا د حزب یوه بل سرګروپ عبدالاحد ونیول شو او په ملابورجان تبادله کړای شو.

د کندهار په نیولو کې د بولدک د ځایي علماوو او طالبانو رول ډېر ښکاره دی. د کوږک غره پر لمنو اباد پښتانه د کندهار د سرحدي ولسوالیو له پښتنو سره د قوم او قبیلې یووالی لري. د دې سیمې د پولې دواړو غاړو پراخې مدرسې لرلې او د شوروي یرغل پر ضد جهاد پرمهال د مجاهدینو د عبور او مرور مهمې لارې او تمځایونه دلته خورا مشهور وو، چې له امله یې پر دې لار د کمونستانو او مجاهدینو ترمینځ اوږده جنګونه هم شوي دي. د کندهار ډېر مهاجرین د

لېږې ځايونو په پرتله د قومي تړاو له امله د بولدک، معروف او ارغستان ولسواليو ته څېرمه له ډېورنډ کرښې پاکستان ته اوښتل او هلته يې ژوند کاوه. په دې لړ کې چمن، گلستان، پښين، ځنگل، کلا عبدالله او د توبه سيمې د يادولو وړ دي.

دلته پراخې مدرسې او علماء هم شته، چې قومي او سيمه‌ييز نفوذ لري او هم يې د شوروي‌ضد جهاد پرمهال روحاني او ديني انگيزې لرلې، چې په دې کې د چمن مولانا عبدالغني مرحوم د يادولو وړ دی، چې د روسانو پر ضد جهاد کې به يې ويناوو کمونستان دومره وېرول، چې کله ناکله به يې د ډېورنډ کرښې له پورې غاړې د ده پر جومات د توپونو گولۍ ورولې.

د بولدک د طالبانو او علماوو مشهور خلک مولوي عبدالصمد، ملا سراج الدين، ملا عبدالرزاق (چې بيا داخله وزير شو) ملا دوست محمد، ملا خالق داد، مولوي ولي جان، مولوي عبدالمنان حنفي او يو شمېر نور وو.

د نومبر پر درېيمه د کندهار ښار او بولدک ترمينځ د پوستو له نيولو وروسته کندهار ښار ته طالبان دننه شول. په انځرگي او تخت پول کې د ټوپکيانو تيښتې او تلفاتو د کندهار پر قواندانانو هم رواني اثر وکړ. که څه هم هغوي د طالبانو پر ضد د دفاعي ايتلاف هڅې کولې خو د څو کالو تربگنيو او خپل منځي جگړو وروسته داسي يو ناڅاپي ايتلاف ته وخت کم و. هوايي ډگر بې مقاومته د طالبانو لاس ته ولويد؛ د ښار ډېرې سيمې د طالبانو لاس ته ورغلې. له قوماندان سرکاتب سره د مذاکراتو له ناکاميدو وروسته جگړه وشوه هغه ماتې وخوړه او د تېښتې لاره يې خپله کړه؛ د سرکاتب له ماتې وروسته د کندهار ترټولو ستر قوماندان ملا نقيب الله اخوند خپله ټوله وسله او نظامي وسايل طالبانو ته وسپارل. ځکه خو سړی ويلی شي چې د ښار په نيولو کې اصلي رول د ملا نقيب اخوند مرسته وه، چې بشپړه قول اردو يې طالبانو ته وسپارله چې

**یوازې نږدې څلوېښت زغره‌وال ټانکونه یې لرل او زیات شمېر درنه او سپکه وسله په کې وه.**

**د ملا نقیب اخوند په تسلیمۍ کې د طالبانو دوو مهمو قوماندانانو ملا محمد (چې بیا په تحریک کې د ژوند تر پایه د طالبانو عمومي نظامي مسئول و او د کندهار او هرات ترمینځ له اسماعیل خان او فراري ملېشو سره په جګړه کې شهید شو) او بل ملا محمد رباني و (وروسته د مشر مرستیال او د سرپرستې شورا رییس شو). ملا نقیب تر دې یو کال وړاندې د کندهار خلکو ته د خرقې په جومات کې په خپله وینا کې ویلي وو، چې ما ته منسوب قوماندانان نه زما په واک کې دي اونه هم زه ورباندې کنټرول لرم. چې له دې ښکارېده ملا نقیب هم نور له دغه حالته د وتلو لار څارله. د قول اردو په تسلیمۍ کې ملا نقیب خپل نقش ادا کړ او مشهور قوماندان یې خان محمد (خانو) له خپلو وحشي کسانو سره نور تېښتې ته مجبوره شو، چې بیا د کرزي په رژیم کې د کندهار امنیه قوماندان و او د طالبانو په برید کې ووژل شو.**

**د نومبر په ۱۵مه د کندهار ښار او ورسره تړلې سیمې په بشپړه توګه د طالبانو ترواکمنې لاندې راغلې او طالب مشرتابه د ولایت ټولو ملکي او فوځي ادارو ته مسئولین وټاکل. د کندهار له نیولو وروسته طالبان د سیمې او نړۍ په کچه په رسنیو کې د بحث موضوع وګرځېدل او هر چا د خپل برداشت او معلوماتو او ځینو د رخې او کرکې په دایره کې تعریف کړل. له کندهاره ځینو تښتېدلیو ټوپکیانو له پښتو بي بي سي سره (چې هغه وخت په افغانستان کې یوازنۍ مشهوره تبلیغاتي سرچینه وه) په خپلو مرکو کې ویل چې د کندهار په نیولو کې پاکستانیانو کومک وکړ. دا خبره چا په فرمایش او چا په خپله رخه کوله، خو دې تبلیغاتو له مخالفینو سره ډېره مرسته کوله، چې له همدې امله طالبانو ته د پاکستان د ملاتړ تور له هم هغه وخته ور په غاړه شو.**

له ټوپکیانو پرته عام ولس د دې تبلیغاتو تر اغېز لاندې نه و، بلکې له هر لوري د طالبانو د استقبال اوازونه پورته شول، چې همدې بې ساري استقبال د طالبانو پښه ټول هېواد ته وغزوله. د تنظیمونو د مشرانو په کچه یوازینی شخص حکمتیار و، چې د طالبانو پر ضد یې د جګړې اعلان وکړ. په کندهار کې د حزب اسلامي قوماندانو له طالبانوسره تر ډېره بریده د جګړې تابیا نه لرله، خو له پېښوره د حکمتیار مخابروي قوماندې (چې دغه مکالمه د طالبانو مخابرو کشف کړې او ثبت کړې وه) قوماندان سرکاتب دې ته اړ ویست، چې طالبانو سره وجنګیږي. سرکاتب وجنګېد خو له ماتې وروسته یې وسله‌وال تیت و پرک شول او دی په خپله پاکستان ته وتښتېد.

دا وخت لا د حکمتیار تر شا پاکستان په کلکه ولاړ و او د کابل د چار اسیاب د جنګ کرښو ته یې د پاکستان د څارګرې ادارې مشـرانو سفرونه کول، وسله او مهمات یې ورکول، ځکه خو حکمتیار پر طالبانو د پاکستان د ملاتړ تور نه شوای پورې کولای، خو د دې په مقابل کې یې د پخوانیو کمونستانو او بیا وروسته د امریکا او برتانیې د ملاتړ تور پرې پورې کړ. د بلوچستان د کوټې په ښار کې د حزب اسلامي کسانو لیکلي کاغذونه خپاره کړي وو، په هغو کې یې لیکلي وو، چې ملا بورجان په اصل کې یو کمونیست جنرال دی، چې اوس یې پر ځان د ملا بورجان نوم ایښی دی، خو دا خبره د کندهار خلکو ته ځکه د منلو وړ نه وه، چې ملا بورجان یې د جهاد له پیله لا پېژنده.

د حکمتیار دغه تبلیغ تر هغه وخته روان و، چې د رباني د حکومت له خوا د طالبانو استقبال کېده او سیاف طالبانو ته د "نجات فرښتې" ویل. کله چې طالبانو په غزني کې د قاري بابا او حزب متحدې قواوې پر شا وتمبولې او په یوه شپه کې یې میدان وردګ هم ونیو، د حکمتیار ځواکونو د کابل په څنډو کې د چهاراسیاب سیمه هم پرېښوده او طالبان د رباني او مسعود له قواوو سره

مخامخ شول. تر دې مهاله حکمتیار او ملګرو یې طالبان په دې دلیل د روسیې لاس پوڅي او پخواني کمونیستان بلل چې د رباني د رژیم له خوا یې هرکلی کېده، خو له هغه وروسته یې بیا د برتانیې، امریکا او پخواني پاچا محمد ظاهر شاه په ملاتړ تورنول او چې کله حکمتیار ۱۹۹٦ کال کې له مسعود او رباني سره د طالبانو پر ضد د پاکستان د جماعت اسلامي د مـشر قاضي حسین احمد د هڅو په پایله کې اتحاد وکړ، نو هغه وخت چې طالبانو کابل ونیو، ولسمشـر رباني او صدراعظم حکمتیار دواړه د کابل شمال ته وتښتېدل.

په دې وخت کې حکمتیار له بي بي سي پښتو سره په مرکه کې وویل چې "انګریزان هم د جلال اباد له لاري کابل ته ننوتي وو او دا دی اوس یې غلامان هم ننوتل".

له کندهار وروسته پرمختګونه

د کندهار له نیولو وروسته د زابل ولایت مرکز ته طالبان ورسېدل او په زابل کې د طالبانو د پخوانیو جبهاتو د رسوخ له امله چا د مقابلې اراده ونه کړه. یوازې د حزب قوماندان حمیدالله اراده لرله خو د طالبانو د زور لیدلو له امله له زابله وتښتېد او د غزني او میدان په سیمو کې د حزب له وسلهوالو سره یو ځای شو. په کندهار کې د سرکاتب له ماتې وروسته په هلمند کې د حرکت له قوماندان غفار اخندزاده سره له مسلسلو خبرو او کوښښونو وروسته چې د مولوي محمد نبي سپارښتنو هم کار ورنه کړ، طالبانو جګړه وکړه؛ خو څنګه چې د هلمند عام طالبان او علماء له طالبانو سره ودرېدل، غفار اخندزاده یوازې له خاصو قومي ملېشو سره د طالبانو د مقابلې هڅه وکړه. په مقابل کې د جمعیت قوماندان رییس عبدالواحد له طالبانو سره ودرېد. د غفار اخندزاده له ماتې وروسته د هلمند د مرکز لښکرګاه په ګډون هلمند په بشپړه توګه د طالبانو لاس

ته ولوېد او د هلمند او کندهار فراري قوماندانان اکثره فراه ته وتښتېدل او هلته د قوماندان اسماعیل خان له ځواکونو سره یو ځای شول، چې بیا د فراه او نیمروز له نیولو وروسته ایران ته وتښتېدل.

بل لوري ته په ژمي کې طالبانو د غزني اطرافو ته ځانونه ورسول.د غزني جنډه، مقر او قرباغ ولسوالۍ د طالبانو د مرکزي تحریک د ځواکونو له ورتګه وړاندي د ځایي طالبانو لخوا اکثره برخې کنترول شوې وې.

دا وخت د پکتیکا با اثره قوماندانانو له جګړې ډډه وکړه او د پکتیا مرکز چې د مولوي نصرالله منصور د کورنۍ او متحدو قوماندانانو په لاس کې و، ټولو د طالبانو پلوي کوله. د کندهار او زابل له نیولو وروسته د پکتیا د والي مولوي عبداللطیف منصور (وروسته په طالبانو کې د زراعت وزیر او د کندهار ښاروال او اوس د شورا غړی دی) له خوا طالبانو ته د هرکلي پیغام ولېږل شو، چې له همدې امله د غزني په جګړه کې د مولوي نصرالله منصور د زوی شهید سیف الرحمن منصور په مشرۍ پیاوړی ځواک له زغره‌والو ټانکونو سره د طالبانو ملاتړ ته راغی او د حزب، قاري بابا او هماهنګي شورا په وړاندې جګړه کې یې کلیدي رول اداکړ.

د ۱۹۹۵م کال د جنورۍ په وروستیو کې د غزني جګړه پیل شوه، چې د مولوي نصرالله منصور د زوی ملا سیف الرحمن منصور د وسله‌والو طالبانو او زغره‌والو وسایلو ملتیا او له بلې خوا د مولوي احسان الله احسان په هڅو د قاري بابا د عمومي پوځي قوماندان خیال محمد له خوا د طالبانو ملاتړ، د دې جګړې په ګټلو کې بنسټییز رول لاره.

د فبروري په دوهمه طالبانو د همدې جګړې په جريان کې د میدان وردګو ولايت مرکز ونيو او په سبا يې د لوګر ولايت مرکز او چاراسياب ولسوالۍ چې د حزب اسلامي مرکز و، پرته له مقاومته ونیول شول.

دا وخت د جګړې په دواړو برخو لويديځ او مرکز کابل کې طالبان د برهان الدين رباني د جمعيت او متحدينو له ځواکونو سره مخامخ شول، چې کابل کې يې مشري احمدشاه مسعود کوله او په لويديځ کې د اسماعيل خان له خوا جګړه رهبري کېدله، چې د هلمند او کندهار فراري قوماندانان هم ورسره وو.

د لويديځ پر کربنه طالبانو د فراه او نيمروز تر ولايتونو ځانونه ورسول.

د میدان وردګو په مرکز میدان ښار کې احمدشاه مسعود له طالبانو سره مخامخ خبرې و کړې. ملا محمد رباني ورته وويل چې ته بايد کابل موږ ته وسپارې او له موږ سره په ګډه د هېواد د ارامۍ لپاره مبارزه وکړې. مسعود لومړی تیاری څرګند کړ او حتی د خپلې غاړې توپنچه يې هم طالبانو ته وړاندې کړه، خو په حقيقت کې هغه د طالبانو د زور او پوځي ځواک جاج اخيسته، چې کله بېرته لاړ، څه موده وروسته يې د طالبانو پر کمربند لومړی بمباري وکړه او بيا يې برید وکړ.

دا وخت د طالبانو وسله‌وال د ريشخور له فرقې سره وو، د مسعود د يو ناڅاپي برید له امله طالبان له چاراسياب نه هم شاته راغلل. دې کار د طالبانو په روحيه اثر وکړ. د فتوحاتو سلسله په لومړي ځل له يوه ستر خنډ سره مخ شوه، خو طالبانو له لوګر سره بېرته خپله جنګي کربښه ټينګه کړه او د میدان ښار په خواکې يې پغمان ته نږدې خپله جنګي کربښه وټاکله، چې دلته جګړه د سياف او مسعود قوماندانانو په ګډه کوله او هره ورځ به متقابلې ډزې کېدلې. همدا د احمدشاه مسعود او ايتلافيانو او طالبانو ترمينځ د جګړې پيل و.

د فبرورۍ پر۱۹مه د مولوي احسان الله احسان د سوله ییزو هڅو او مولوي جلالدین حقاني د ملاتړ په نتیجه کې د خوست ښار طالبانو ته وسپارل شو. له پکتیکا او پکتیا وروسته د خوست نیول پر لویه پکتیا طالبان مکمل واکمن کړل. که له یوې خوا د کابل پر استقامت د طالبانو د فتوحاتو درېدل او د مسعود سخت مقاومت د طالبانو روحیات لږ کمزوري کړل، خو له بلې خوا د خوست ښار او مرکز سپارلو طالبانو ته د هېواد په جنوب کې نور ځواک هم وروباښه او د لویې پکتیا عام ولس او علماء هم د لوی کندهار په څېر د طالبانو تر شا کلک ودرېدل.

په ټولیزه توګه دا وخت دولتي ځواکونه او ایتلافیان یې په رواني لحاظ له سخت فشار سره مخ و. دوی هره شېبه د کابل ښار د سقوط وېره کې وو، ځکه چې کابل په عملي توګه د طالبانو له کلابندۍ سره مخ و.

د عبدالعلي مزاري تېښته او مړینه

د ۱۹۹۵م کال د مارچ په لومړیو کې طالبان په لومړي ځل د کابل په دروازو کې ولاړ وو، چې له امله یې په کابل کې د وېرې او تېښتې فضا خوره وه. دا وخت د حزب ځواکونو د چاراسیاب سیمه پرېښوده او حزب وحدت هم له حزب سره په یوه دولت‌ضد ایتلاف (هماهنګي شورا کې) غړیتوب درلود.د دې ایتلاف په غړو کې د غزني له ماتې وروسته د طالبانو سره د مقابلې قومانده واحده پاتې نشوه د دوستم ملیشې له کابله وتلې وې. د حزب له خوا د چار اسیاب له پرېښودو وروسته د حزب وحدت ځواکونه د کابل په غرب کې د مسعود او طالبانو د ځواکونو ترمېنځ په یو ډول محاصره کې وو.

د حزب وحدت قوماندانانو د غزني په جګړه کې د طالبانو پر ضد د حزب اسلامي په ملاتړ په جګړه کې برخه هم اخیستې وه.خو د کابل څنډو ته د طالبانو له نږدې کېدو وروسته د احمدشا مسعود او سیاف ملیشو هڅه کوله چې له

وخت نه په ګټه اخیستلو د حزب وحدت نه سیمي ونیسي، له همدې امله د دوي ترمینځ خونړۍ جګړه روانه وه. د وحدت قوماندانانو طالبانو ته لاره ورکړه چې کابل ته ننوزي. د طالبانو ټیټ رتبه قوماندنان د مشرتابه له امره او یوه جنګي پلان نه پرته دکابل په غرب کې پرمخ لاړل چې د مسعود د قواوو له یو ناڅاپي برید سره مخ شول او د چار اسیا په شمول یې ډیرې نیولې سیمې له لاسه ورکړي.

حزب وحدت غوښتل چې د طالبانو او مسعود ترمینځ له جګړي ځان وباسي او خپله محاصره پای ته ورسوي. د مارچ په یوولسمه د وحدت ګوند مشر عبدالعلي مزاري له کابله د وتلو هڅه کوله خو د وتلو لار یې پر طالب وسلهوالو وه. په چادري کې یې له څو نورو قوماندانانو سره په یوه روسي" پیکس واګون" موټر کې له کابله وتل غوښتل، چې د دې ځای د اوسېدونکو له خوا چا طالبانو ته خبر ورکړ. طالبانو هغه په چادري کې ونیو او مرکز ته یې د هغه د نیولو خبر ورکړ. ملا محمد عمر ورته وویل چې په یوه الوتکه کې یې کندهار ته انتقال کړئ، چې دلته یې توقیف کړو.

د مـشر نظر دا و چې د جګړه مارو ډلو هغه مهم قوماندانان چې په خپله تسلیم نه شي او په جګړه کې ونیول شي، نو باید تر هغو بندیان وي، ترڅو یا کوم تضمین او رضایت ته راسره ونه رسیږي یا یې د بغاوت او مقابلې خطر ختم نه شي.

له کندهاره د هغه او د هغه د څو قوماندانانو د انتقال لپار چورلکه واستول شوه. چورلکه کې هغوی لاس تړلې کېنول شول او یو وسلهوال طالب د پیرهدار په توګه ورسره مل شو. پر لار طالب د خپل طالبي غفلت د مزاج له مخې خوب وړی و. له بندیانو نه یوه کس له چورلکې لاندې لار څارلې، چې کله د غزني ښار نه چورلکه تېره شوه، دلته وړې وړې غونډۍ راځي، چې له دې ځایه د

غزني هزاره مېشته سيمه پيلېږي. قوماندان ابوذر چې د غزني اوسېدونکی و، د دې سيمې له جغرافيې سره بلد و، خپل لاسونه يې خلاص کړي او د ويده وسله‌وال پر کلاشينکوف يې بريد کړی. پيلوټ ته يې په دغو غونډيو کې د ناستې امر کړی، پيلوټ لومړی خبره نه ده منلې، دوی پرې ډز کړی. هغه يې پر لاس زخمي کړی، چې پيلوټ مجبوراً الوتکه په ډېره بيړه او متزلزل ډول په همدې سيمه کې عمومي سړک ته نږدې د نوغي د سيمې له "اوګرې" هديرې سره کوزه کړه. له کندهاره د وسله‌والو طالبانو يو کاروان د غزني ښار ته روان دی، چې کله يې د الوتکې بې ډوله ځېځانده ناسته ليدلې، هغوی سمدستي د حادثې ګومان کړی او له دوی نه يو موټر وسله‌والو سمدستي د الوتکې لور ته ځان رسولی، چې کله الوتکه کيناسته څو د لويو ږيرو والا وو سرتور سرونه او تړلي لاسونه له الوتکې د غونډۍ لور ته منډه کړې. همدا طالبان پوهيږي چې دا خلک تښتي، سمدستي يې د پيکا ماشيندار ډزې ورباندي کړي او وژلي يې دي، چې يو په کې په خپله عبدالعلي مزاري و.

کله چې له پېښې مشـرتابه خبر شو، د تحقيقاتو امر يې وکړ او دا يې ناوړه پېښه وګڼله، ځکه چې په لومړي ځل د يوه ګوند مـشر د يوې ناڅاپه پېښې له امله ووژل شو، چې هيچا يې د وژلو اراده نه لرله. د دې کار ځانګړې قومي اغېزې هم وې،ځکه خو طالبان په دې پېښه خپه وو، د هغه مړی د هغه پيروانو ته وسپارل شو. د هغوی پيروانو دا د طالبانو له خوا يوه قصدي پېښه وګڼله او ويل کيدل چې د مزاري مړی يې د بلخ په اطرافو کې څو ورځې په تابوت کې د آس پر شا ګرځاوه او د هغه د مړينې په اړه يې ډول ډول دردونکي فرضي داستانونه او تبليغات جوړ کړي وو، ترڅو په دې اړه د طالبانو پر ضد د هزاره قوم جذبات راوپاروي.

په داسې حال کې چې طالبانو له هزاره توکم سره هيڅ توپيريز فکر نه درلود، بلکې د هر قوم او سيمې جنايتکار ورته جنايتکار و او نيکوکار ورته نيکوکار و، خو دې پېښې په هزاره توکم ناوړه تبليغاتي اغېز وکړ. همداراز دې پېښې په لومړي ځل د ايران پاملرنه هم دې لور ته جدي کړه.

د طالب مشرتابه له خوا د ځو ورځو تحقيقاتو نه وروسته پيښه غير ارادي ثابته شوه او غلطي خپله د اسيرانو وګڼل شوه. کومو لاروي طالبانو چې د پيښې پر وخت پر تښتيدونکو له شا نه د پيکا ماشيندار ډزې کړې وي، هغوي د بنديانو له هويته ناخبره وو او ګمان يې کړی و چې دغو کسانو د الوتکې پيلوټ او سپاره طالبان ټول ويشتلي دي.

عبدالعلي مزاري او د هغه قوماندانان د کمونيستي رژيم له سقوط نه وروسته د کابل ښار په خونړيو جګړو او جناياتو کې يو فعال طرف و، مزاري عصباني او انتقام جو شخصيت لاره، چې له امله يې د هزاره ډلو په خپل منځي جګړو کې هم په بې رحمي او تشدد تورن و.

دوو جبهو کې توندې جګړې او د وسلو ټولولو بهير

د ۱۹۹۵ م کال اوړی ټول په دوطرفه جګړو کې تېر شو. طالبان د مرميو او پيسو له کمښت سره هم بار بار مخېدل چې د عامو بسپنو لور ته يې د هېواد دننه او بهر ځانګړې پاملرنه وکړه. طالبانو تر دې دمه يوازې د کندهار له ګمرکه چې د پاکستان پر پوله پروت و يو څه عوايد لرل. له دې علاوه ډېر کم عوايد په نورو ولايتونو کې ترلاسه کېدل، خو د پښتون‌مېشتو او سرحدي سيمو تجارانو پرېمانه مرستې کولې. دوی د سيمې د ارامۍ او ښه راتلونکي لپاره يوازينۍ هيله طالبان ګڼل.

له بل لوري طالبانو د وسلو ټولولو کار ته زياته پاملرنه کوله. لومړی هدف خو د وسله‌والو بې‌وسلې کول، د امنيت برقرار ساتلو لپاره حتمي ګڼل کېدل، خو دوهم هدف په کې ضمني دا هم راپيدا شو، چې طالبانو کارتوسو ته هم اړتيا لرله، چې له دې امله د وسلو د لټون په کار کې د مشرتابه په ناخبرۍ کې ډېر زور زياتی هم وشو، حتی په ځينو مواردو کې وحشيانه اعمال هم ترسره کېدل. د يوه کلاشينکوف لپاره به يې د ابرو سړی تر وهلو لاندې نيولی و، چې اقرار وکړه، ته وسله لرې، خو پټه کړې دې ده. دا له هغو لومړنيو ناوړه اعمالو يو عمل و، چې د ځينو کشرانو او متوسطو قوماندانانو له خوا په ځينو سيمو کې ترسره کېده، ان چې په زابل کې يې يو کس د وسلې په سر تر کيبل لاندې وژلی و، چې بيا خبر ملا محمد عمر ته ورسېده او هغه په دې اړه فرمان صادر کړ او په طالبانو کې يې خپور کړ. د دې ليکلي فرمان ځينې توري چې ماته ياد دي غالباً په دې ډول او يا دې ته ورته و:

" له الله وويرېږئ، د وسلو په نامه خلک مه وهئ او خبر شوی يم چې خلک په کيبلو وهل کيږي، دا ناروا عمل دی د الله له قهر وېرېږئ، د اقرار لپاره خلکو ته وهل مه ورکوئ او له دې وروسته که څوک چا په کيبل وواهه هغه ته به درنه سزا ورکول کيږي".

دا وخت د کابل ميدان ښار لوري ته د جنګي کربښې عمومي قوماندان د وسپنيزه هوډ خاوند ملا مشر و او د چاراسياب د کربښې مسئول ملا بورجان و، چې بيا د سخت ټپي کيدو له امله څو مياشتي پر کور و او د لويديځ په کربښه کې د تحريک عمومي نظامي مسئول ملا محمد و.

د اوړي په پيل کې لويديځ کربښه هغه مهال شاته راغله چې کله۱۹۹۵ د مې په لسمه د لوی اختر په ورځ داسماعيل خان او متحدو قواوو د هوايي ځواک په ملتيا په يو ناڅاپي بريد کې فراه او نيمروز د طالبانو له سخت مقاومته وروسته

د طالبانو له ولکې ووتل، د فراه له سقوط وروسته نیمروز محاصره شو، د اسماعیل خان او متحدو قوماندانانو یو لوي تعداد وسله‌وال دایران له خاورې زرنج ښار ته را واوښتل، د نیمروز امنیه قوماندان قاري احمدالله (چې د طالبانو په حکومت کې تر داخله او د استخباراتو تر وزارتونو ورسېد) ټوله ورځ په یوازې سر وجنګېده او د کارتوسو له ختمیدو سره د اسماعیل خان ځواکونو ژوندی ونیو. والي مولوي عبدالغني جوزجانی او یو شمېر ملکي رییسان د برید له پیله په تېښته بریالي شوي وو، خو د ولایت مستوفي مولوي عزت الله عارف تر اوږده مقاومته وروسته شهید شو.

له دې وروسته د طالبانو لویدیزې کرښې د فراه په حدودو کې وې چې کله به د هرات لور ته نږدې شول او کله به بېرته راشا ته شول، چې له امله یې په دې کرښه سخت خونړي جنګونه وشول. طالبانو په دغه کرښه کې په پرله‌پسې جنګونو کې تقریباً تر زرو تنو تلفات ورکړل. په دغه لوري جنګونو کې به په خپله ملا محمد عمر مجاهد هم د جګړې کرښو ته ورته. دا ځکه چې د هلمند او فراه ټول تښتېدلي قوماندانان په همدې کرښه د اسماعیل خان په ملګرتیا جنګېدل او د هغوی پرمختګ د طالبانو اصلي مرکز ته مستقیم ګواښ و.

د روسي الوتکې پېښه: نړۍ سره د طالبانو لومړنۍ مخامختیا

د ۱۹۹۵ د اګست میاشتې په ۳مه TD76Ilyushin Il- ډوله روسي الوتکه د کندهار د فضا پر مسیر د کابل پر لور روانه وه. ښایي کابل چارواکو ته به دا معلومه نه وه چې د کندهار پر هوایي ډګر کومه داسې الوتکه ناسته ده، چې هوایي چلند کنټرولولای او ناستې ته اړ ایستلای شي. دا ځکه چې د نجیب د واکمنۍ له نسکورېدو وروسته هېواد په څو سترو او وړو قوماندانیو وېشل شوی و، چې له امله یې د کندهار د هوایي ډګر اړیکه له کابل سره شلېدلې وه.

کله چې دغه مشکوکه الوتکه پر رادار ولیدل شوه او د هوایي ډګر د هوایي تماس برج ته یې خپل مسیر کابل وښود، د پوځي هوایي قوماندانۍ له خوا له مشرتابه سره له بیړني تماس وروسته الوتکې ته د کیناستو امر وشو او ښکاري پوځې الوتکه د هغې د کښېنولو لپاره والوزول شوه. د دغې ښکاري جنګي الوتکې پیلوټ ډګروال جیلاني خان نورزی و، چې په دغه دنده کې یې ډېر مهارت او سابقه لرله. الوتکه یې ناستې ته اړ ایستله. وروسته معلومه شوه چې الوتکه د روسي فدراسیون تاتارستان هېواد پورې اړوند ایرستان هوایي ټرانسپورټ سره تړاو درلود. د سپکو او درنو وسلو په کارتوسو بار وه، چې دا مهال یې د طالبانو غورځنګ ته د مسیحا حیثیت لاره، ځکه چې دا وخت تحریک د کارتوسو له کمښت سره مخ و.

د الوتکې له عملې د تفتیش او د اسنادو له بشپړه څېړلو جوته شوه، چې دغه وسله د روسیې فدراسیون د البانیا هېواد نه د برهان الدین رباني په مشرۍ کابل حکومت ته د روسیې فدراسیون د پوځي مرستو د لړۍ برخه وه. کارتوس پوځي مسئولینو ته د جګړې د پیاوړتیا لپاره وسپارل شول او د الوتکې عمله د ښار په یوه مېلمستون کې ځای پرځای شول. د یوه ترجمان تر څنګ چې د شوروي د یرغل په دوره کې یې له روسانو سره کار کړی و، څو تنه ساتونکي له دغو روسي بندیانو سره مله شول او عمومي څارنه یې د مېلمستون د مشر په غاړه وه، چې لومړی د امیر خان متقي ورور مرحوم احمد علي خان متقي و او بیا وروسته د کابل د للندر اوسېدونکی مولوي سلیمان و.

د دغو اسیرانو د دوسیې د تفتیش لپاره یو هیئت هم تشکیل شو، چې د بندیانو دوسیه وڅېړي او قانوني اړخونه یې جوت کړي.

په دې اړه روسانو د خپلو بندیانو او الوتکې د خلاصون په اړه هر اړخیزې هلې ځلې پیل کړې. طالبانو یوه غوښتنه دا وکړه چې ۵۰ یا۶۰زره هغه افغان بندیان

چې د کمونیستي رژیم له خوا ژوندي ورک دي، اکثر یې دیني علماء دي، که ژوندي وي هغوی دې راوسپاري. هغه وخت داسي فکر کېده چې هغه یې روسې ته وړي دي او افغان کمونیستانو به هم د کمونیستي رژیم له سقوط وروسته د خلکو له قهره د ځان ساتلو لپاره ویل چې بندیان موږ نه دي لیدلي، بلکې هغه روسانو له ځان سره بوولي، خو وروسته خبره معلومه شوه چې دا بندیان ژوندي نه دي؛ بلکې خپله افغان کمونستانو وژلي دي.

په الوتکه کې ۳۰ ټنه مهمات بار وو او د ۷تنه عملې له خوا الوتکه کنټرولېده چې نومونه او دندې په لاندې ډول وې:

Vladimir Sharpatov (commander), Gazinur Khairullin (second pilot), Alexander Zdor (navigator), Askhad Abbyazov, Yuri Vshivtsev, Sergei Butuzov .and Viktor Ryazanov

د طالبانو او روسانو خبرې په ډېرو اوږدو لارو ترسره کېدې، ځکه دا وخت طالبان هیڅ کوم هېواد په رسمیت نه وو پېژندلي. ویل کیږي چې یوه امریکایي سناتور "براون هینک" په ازاده توګه په دې لاره کې هلې ځلې کولې، چې په دې کې د روسي بندیانو دغه غوښتنه هم راغله چې د الوتکې د سالمیت لپاره یې کله کله باید انجنونه چیک او تخنیکي څارنه یې وشي. طالبانو همدا خبره د بین المللي اصولو له مخې ومنله، د ډېر وخت لپاره به بندیان په اوونۍ کې یو ځل هوایي ډګر ته وړل کېدل چې دا چیکینګ به معمولا د جمعې په ورځ ترسره کېده. د جمعې په ورځ به په ټولو ادارو کې رخصتي وه او طالبان به له خپل مزاج سره سم په دغه ورځ ډېر زیات غافله وو. د الوتکې د کېناستو کال پوره شو.

په ۱۹۹٦کال کې د اګست په ۱٦مه د جمعې په ورځ د دغو ۷ تنو عملې سره د پخوا په څېر نن هم وسله‌وال ساتونکي ولاړ دي او دوی ته تر خپل ټاکلي وخت او محدود کار زیات وخت نه ورکوي. د طالبانو مزاج دا و، چې لږ به یې اعتماد

پیدا شو نور به بېغمه شول. د جمعې ورځ یوازې شپږ ساتونکي له عملې سره الوتکې ته راغلي او نن کوم تخنیکي کس هم نه شته چې د کار ظرفیت او حدود وڅارلی شي. دا وخت درې تنه وسله‌وال د جمعې لمانځه ته تللي، یوازې درې غافله طالبان دننه په الوتکه کې ناست دي او انتظار کوي چې اوس به پیلوټان فارغ شي او درې ملګري او د دوی د بېرته انتقال موټر به هم راشي، خو داسي معلومېده چې عملې له ډېره وخته راهیـسي پر دې پلان غور کړی و او د طالبانو غفلت یې مطالعه کړی و. نن یې فرصت مناسب وګاڼه، لومړی یې د یو بیټرۍ په واسطه د الوتکې یو انجن د رننګ په پلمه سټارټ کړ، چې پوه شول، چې نور انجنونه خو نور اسانه سټارټېږي او طالبانو خو همېشه داسي فکر کاوه، چې زموږ له راداره چې کومه الوتکه په هوا نه شوای تېریدای، نو له ځمکې به څنګه پورته شي، خو پیلوټان د خپل روسي رادار له خواصو سره بلد وو او له راداره د بچ کېدو تدبیر یې هم مخکې لا کړی و. درې کسانو غافله ساتونکو ته یې دروازه وربنده کړه، الوتکې ته یې یو ناڅاپه پرواز ورکړ، دوي ته تر متحده اماراتو د ریګستاني سیمو لاره په نقشه کې معلومه وه، چې مخ ته یې غر نه راته، په ډېر ټیټ پرواز یې د ریګستاني سیمو پر سر ځان بحر اوبیا شارجې ته ورساوه.

د شرم ځای خو دا و چې په دې ورځ چې کومې میګ ۲۲ الوتکې ته د دي کار تمه کېده، هغې هم عوارض وکړل او له پروازه ولوېده چې کله اماده شوه، نو تښتیدلې الوتکه نوره رادار نه شوای څارلی، ځکه چې ډېره ټیټه وه او د هیڅ لوری یې هم معلوم نه و.

لومړی ګومان کېده چې د کابل یا ترکمنستان لور ته به روانه وي، په لږ امکان د ایران لور ته هم ذهن ته راته؛ خو د عرب اماراتو لوري ته ذهن دومره نه ته،

دومره زياتې الوتکې طالبانو نه لرلې، چې په يوه وخت يې څو جهتونو ته والوزوي.

دا پېښه لکه څومره چې د باندې هېښوونکې وه، همدومره په داخل کې له ګڼو سوالونو سره مخ شوه. د طالبانو په ټيټو او لوړ رتبه چارواکو کې د بدګومانۍ او معامله‌ګرۍ شکونو او اعتراضونو زور واخيست. په مشرتابه چا د معاملې شک نه کاوه، ځکه د مشر مزاج ټولو ته معلوم و، چې پټې معاملې يې نه عادت دي، نه ورته اړتيا لري او نه يې بل ته اجازه ورکوي. کوم کار چې به مشروع ورته ښکاره شو، بيا يې ښکاره کاوه د هيچا پروا يې نه لرله، خو پر لاندې خلکو، د ميدان پر مسئولينو، د مېلمستون پر مسئولينو او د بنديانو په انتقالوونکو تورونه خوله په خوله شول، فضا يې ډېره خرابه کړه، بالاخره مشر يو ليکلی پيغام د کندهار پر راډيو او ټولو سنګرونو ته په مخابره خپور کړ.

په پيغام کې راغلي وو "موږ د طيارې د تېښتې په موضوع کې پوره تحقيق کړی، له ظاهري غفلته پرته نور د تحريک هيڅوک په دې کې لاس نه لري. دا يوه تقديري پېښه وه، له ټولو طالبانو هيله کوو، چې په دې موضوع کې نه پر چا شک وکړي او نه په چا پسې ناحقه خبرې وکړي. دا غيب ويل دي چې بې ثبوته په مسلمان پسې خبرې وتړي، د الله نه ووېرېږئ او نور په دغه موضوع کې چوپ سئ". له همدې اعلان وروسته بيا په طالبانو کې ما له چا نه په دې اړه بله خبر وانهورېده، ټولو ويل چې لکه څنګه چې ملا صيب وايي دا يوه تصادفي او تقديري پېښه وه، سمدستي خبره سړه او فضا سمه شوه.

په لويديځ کې د جګړو شدت او څپڅپاندې جنګي کرښې

د ۱۹۹۵م کال د مارچ له مياشتې بيا د همدې کال د سپټمبر تر ۵مې چې د هرات مرکز سقوط کاوه، په لويديز کرښه کې د طالبانو او مخالفينو لپاره دا پنځه واړه مياشتې خورا خونړۍ مياشتې وې، چې کله په پسرلي کې طالبانو د فراه او نيمروز ولايتونه ونيول. مولوي عبدالغني جوزجاني د نيمروز والي، قاري

احمدالله امنیه قوماندان او مولوي عزت الله عارف د مستوفي په توګه غوره شول. تقریبا دوه میاشتې دغه ولایتونه د طالبانو په واک کې وو او طالبانو د شینډنډ په حدودو کې د هرات ولایت تر فشار لاندي نیولی و او د اسماعیل خان له ځواکونو سره جګړې روانې وې، خو کله چې مخالفینو د۱۹۹۵م کال د مې په لسمه د لوی اخترپه ورځ فراه ولایت ونیو، ګڼ شمېر طالبان شهیدان، زخمیان او اسیران شول. د فراه سرپرست والي ملاعبیدالله اخوند هم اسیر شو، ورپسې یې د ایران له لورې پر نیمروز ولایت برید وکړ، په نیمروز کې د طالبانو ټول وسله‌وال محاصره شول. والي عبدالغني او یو شمېر نور ملکي رییسان په تېښته بریالي شول، امنیه قوماندان ټوله ورځ له څو ملګرو سره یوازې وجنګېد چې بالاخره د کارتوسو د خلاصون له امله ژوندي ونیول شول. مستوفي مولوي عزت الله عارف هم تر وروستۍ سلګۍ وجنګېد او بالاخره شهید شو. په دغه جګړه کې مهم طالبان اسیران شول، چې په دې کې ملا عبیدالله اخوند (وروسته د ملي دفاع وزیر) مولوي عبدالصمد د بولدک، قاري احمدالله او ګڼ شمېر نور طالبان اسیران شول، چې بیا وروسته د یوې سترې تبادلې په ترځ کې ټول راخوشې شول، خو قاري احمدالله او مرستیال یې ملا عبدالباري له دې تبادلې مستثنی شول او د هرات تر سقوطه په زندان کې پاتې شول.

د جون د میاشتې په وروستیو کې یو ځل بیا د فراه ولایت د نیولو لپاره جګړې زور واخیست او یو شمېر ولسوالۍ او مهمې سیمې طالبانو ونیولې. د هرات لور ته د پرمختګ لپاره خونړۍ جګړه روانه وه. د دې جګړې څارنه په خپله ملا محمد عمر کوله. بار بار به د جنګ کرښې ته خپله ورته، بالاخره د دې کال د اګست په وروستیو کې د کندهاري او هلمندي فراریانو، د اسماعیل خان د ځواکونو او له شماله د مسعود د کومکي ځواکونو په ګډون یو ستر څو زریز ځواک برابرشو او د هجومي عملیاتو په ترځ کې یې غوښتل چې د طالبانو

اصلي مرکز هلمند او کندهار ته سقوط ورکړي. په دې جګړه کې د طالبانو د دې جبهې عمومي قوماندان حاجي ملا محمد اخوند شهيد شو. طالبانو ماتې وخوړه، جګړه په دوه ورځو کې د فراه له حدودو د هلمند ګرشک ولسوالۍ ته را ورسېده.

### د کندهار د سقوط وېره او د ګرشک تاريخي جګړه

کله چې د ۱۹۹۵م کال د اګست په وروستيو کې د جګړې لويديزې کرښې راشاته شوې. د اسماعيل خان او متحدينو ځواکونو چې د کندهار، هلمند زاړه ټوپکيان او د احمد شاه مسعود له لوري کومکي ځواکونه هم ورسره وو، له طالبانو د فراه مرکز ونيو او د هلمند پر خوا يې په څو ورځو کې پرمختګ وکړ. په دې کې د طالبانو تر ټولو مهم قوماندان ملا محمد اخوند په شهادت ورسېد. طالبانو د هغه له شهادت وروسته نور هم روحيات وبايلل. مسلسلو ماتو د جنګ کرښه د هلمند د ګرشک د "شوراو مانده" سيمې ته راورسوله، چې نور نو ګرشک هم له خطر سره مخ و، مخالفينو له ګرشک وروسته د کندهار تر ښاره د پرمختګ تابيا نيولې وه.

### زما د سترګو ليدلی حال

دا وخت زه د سپين بولدک په ولسوالۍ کې د يوې کوچنۍ پوځي ډلګۍ مشر وم. بولدک په اول کې د طالبانو يو مهم مرکز ګڼل کېده، ځکه چې دا له ميونده ورسته د يوې بلې مهمې ولسوالۍ مرکز و چې طالبانو ونيو او بيا يې کندهار ښار هم له همدې ځايه فتح کړ. دا وخت په بولدک کې ۱۳ډلګۍ وې، چې يوه يې د ولسوالۍ د مرکز دلګۍ وه، چې د دغې ډلګۍ مشري او سرپرستي زما پر غاړه وه.

د ملا محمد شهادت پر دې سربېره چې د لویدیځ لور ته د جنګ کرښې یې متاثره کړې، د طالبانو لپاره د یوه بې سیاله قوماندان له لاسه ورکول هم و، چې بیا تر پایه د هغه په څېر قوماندان پیدا نه شو. ملا محمد هغه قوماندان و، چې د طالبانو له خوا د نیم افغانستان د فتح کولو جګړې ده رهبري کړې او طالبان د ده د تاکتیکونو په مټ فاتحان شول؛ هغه جګړه په نویو تاکتیکونو کوله او په هر جنګ کې یې د دښمن له تاکتیک سره ځان بلداوه؛ چې له امله یې د کمو تلفاتو په بدل کې جنګ ګټلای شوای. له دې علاوه هغه په جنګ کې له اسیرانو سره له ترحم کار اخیست؛ په جګړه کې یې ټول اسلامي اصول مراعتول او پوره رحمدله او زړهسوانده انسان و. ویل به یې "کوم ځای چې په ټوپک ونیسئ، له نیولو وروسته هلته د ټوپک رویه مه کوئ". تل یې هڅه داوه چې مقابل لوری مرګ ژوبله یا ونه لري یا ډېره کمه وي.

ملا محمد د روسانو پر ضد جهاد کې په یوه ماهر جنګي قوماندان شهرت درلود او د تحریک له پیله د ملا محمد عمر د جنګ لومړی او باوري قوماندان و. ملا محمد عمر ته ملا محمد د تحریک له پیله تر بل هر چا ډېر ګران و. له همدې امله یې خپل مخابروي نوم "مرحوم" ایښی و.

دغې ماتې او د ملا محمد شهادت د طالبانو کرښې دومره شاته کړې، چې نور د هلمند او کندهار د سقوط خطر پیدا شو، له همدې امله مشرتابه د نورو ځایونو ترڅنګ له بولدکه هم کومکي وسلهوال وغوښتل دا وخت د بولدک ولسوال ملا خیرالله خیرخواه و (چې د دې دندې ترڅنګ د تحریک ویاند هم و) هغه او د هغه معاون او یو بل قوماندان ملا دوست محمد له یو څه وسلهوالو سره تیار شول. زه هم ورسره وم، ما د ځان لپاره د لرګي باډۍ والا یو ار پي جي د اوږې راکټ غوره کړ. دا مې په وړکتوب کې د روسانو پر ضد جګړه کې له مجاهدینو سره لیدلی و، ځکه راته ښه ښکارېده. موږ د ملا خیرالله د سپینې

ډاټسنې په باډۍ کې پر مهماتو برسېره ناست وو، پښې مو له ډاټسن نه لاندې راځوړندې کړې وې. ملا دوست محمد هم خپل ډاټسن له وسلهوالو ډک کړی و. مازیګر ناوخته راروان شوو، ماسخُتن کندهار ښار ته راغلو هلته وضعیت بیړنی و. له کندهاره ناوخته ووتو، هلمند ته پر لار د کندهار له ښاره چې لږ ولاړو، مخې ته د تورو ښیښو یو موټر په ډېر سرعت راروان و، چې موږ یې ولیدو راته سوکه شو، ملا خیرالله او ملا دوست محمد ورښکته شول، موږ هم ورته نږدې و، د موټر ښیښه یې ښکته کړه. ملا محمد عمر و، چې پر اوږو یې تازه خامک شوی څادر پروت و، پر سر یې نوی تور پاچ پټکی و، سپین نري اوږده لاسونه یې پر سټرینګ ایښي و، څېره یې روښانه وه، د پرېشانۍ اثار په کې نه ښکارېدل، ورو ورو غږېده، ملا صیب ویل "زه ځم نور وسلهوال او جنګي وسایط هم برابروم. تاسو درځئ، سبا ته به د جګړې لپاره سم تیاری وکړو". د ملا صیب ارامو روحیاتو زه هم ډاډه کړم، چې دا مې په جګړه کې لومړنی ګډون و.

موږ سوکه سوکه روان وو. سهار خوا ته مو مخې ته ډک موټرونه تښتېدلي طالبان راغلل چې ټوله شپه یې جګړه کړې وه او د ملا محمد د شهادت له اوازې سره پر شا راروان وو، چې څومره ګرشک ته ورنږدې کېدو، همدومره نوي تښتېدلي طالبان پر مخه راتلل. سهار سپېدو کې ګرشک ته نږدې شوو، د ملا دوست محمد مشر ورور ملا خالق داد د څهل میلې (۴۰میله لرونکي ځانګړي روسي توپونه) د دستګاه موټر د سړک پر سر درولی و او سړک یې بند کړی و، ترڅو نور طالبان ونه تښتي. موږ چې راورسېدو، ملا خالق داد د ملا محمد د شهادت په وجه سخت ژړل.

طالبان یې سره کنټرول کړل. ملا محمد عمر څو ځله راغی او ولاړ. د جنګي کرښې د کنټرول لپاره یې له کندهاره د وسایلو او وسلهوالو اکمالات په خپله

وکړل. دغه ورځ موږ تر غرمې د ګرشک په فرقه کې و، د اسماعیل خان د الوتکو له خوا سخت بمبار روان و. په فرقه کې مو د غرمې ډوډۍ په داسې حال کې وخوړه، چې د بمونو غرزهار د خونو ښیښې ماتولې، چې ماسپښین شو موږ له ګرشک دوه کیلومتره د کندهار لور ته د ملاخالق داد له چهل میلو سره واړول او دغه ځای مو خپل موقتي مرکز وګرځاوه. د ماسپښین او مازیګر ترمینځ اعلان وشو، چې مازیګر ته به تعرض کوو، ځکه چې دوی د تعرض اراده لري، نو ښه به دا وي چې موږ پرې وار د مخه کړو.

د ملا محمد عمر په هڅو ترمیم شوي ټانکونه هم راورسېدل، چې ورسره د طالبانو روحیات نور هم ښه شول. مازیګر تر تعرض تقریباً یو ساعت مخکې د ګرشک ښار کې د برید لپاره تیاری کېده. زه د ګرشک ښارګوټي په مینځ کې د تیرې شوې سترې ویالې پر غاړه ناست وم. ځان مي په ویاله کې وینځلی و، خپلې څنهې مې ږُمنځ کړې. وروسته په فکرونو کې ډوب شوم، ما دا فکر کاوه چې نننۍ جګړه کې خو ژوندي پاتې کېدل تقریباً ناممکن ښکاري، خو زما د کلي او شیمې هیڅوک دلته نه شته، که داسې شوي وای چې له مرګه وروسته چا زما جسد د هلمند په نادعلي کې زما د تره کور ته وړی وای، تر څو مې مړی لا وارثه په شپو شپو پاتې نه وای. دوهمه خبره دا وه چې په ما باندې په کویټه کې د چا دوه زره کلدارې پور وې. ما ویل که زه مړ شوم دغه حق به یې زما په ذمه پاتې شي، په همدې تصمیم کې وم چې د دواړو خبرو په اړه یو وړوکی لیک ولیکم او د کمیس په جیب کې یې کېږدم. په همدې فکرونوکې وم، چې یو ښکلی دنګ زلمی چې اوږدې تورې څنهې یې وې، زما خواته راغی او راته وې ویل: طالبه ولې په فکرونو کې ډوب یې؟ ما غږ ونه کړ. هغه زیاته کړه: واده دې کړی؟ ما ویل نه! له خندا شین شو وایې بیا خو بیخي فکر مکوه...!

**دا د بولدک اوسېدونکی ملا سراج الدین و، چې ډېر زړور او وسپنیز قوماندان و. اوس څو کاله وړاندې له امریکایانو سره په مخامخ جګړه کې شهید شو.**

**دا یوه ډېره تاریخي ورځ وه، ځکه چې دښمن د طالبانو د تحریک د مرکز کندهار د نیولو خوبونه لیدل او طالبان د دغې ورځې د برید لپاره یوازې شاوخوا۸۰۰کسان وو او د دښمن لور ته په زرګونه وسله‌وال، زیات شمېر ټانکونه او ورسره هوایي ځواک و. زموږ تعرض یو ډول فدایي برید ته ورته و، له ټولو مجاهدینو عهد واخیستل شو، چې نن به پرشا راتلل نه وي، تر وروستۍ سلګۍ به جګړه وي.**

**د برید لپاره تشکیل داسې جوړ شو، چې زریدار ټانکونه او نور درانه وسایط لکه دوه میلې دستګاوې به په عمومې سړک له پلیو ځواکونو سره وي او یو ستر تشکیل به د سړک ښي لاسته د ښته کې له بایپور موټرانو سره چې وسله‌وال به په درنو وسلو لکه ماشیندار، ۸۲ملي متري توپ، ار پي جي راکټ او وړه وسله سمبال وي او همداراز د سړک چپ طرف ته به هم همدغسې تشکیل وي. ترڅو برید ټوله سیمه په حلقه کې راولي او دښمن د محاصرې لپاره خپل وسله‌وال تر موږ شا ته تېر نه کړای شي.**

**مازیګر له لمانځه مخکې د هغوی له لوري له تعرض سره سم جګړه پیل شوه، موږ د سړک د ښي لاس په تعرض کې وو، دې لوري ته وچه دښته وه. چې د ځان خوندي ساتلو لپاره یې هیڅ نه لرل. یوازې یوه نیمه ټیټه د ریګو غونډۍ وه چې په پربوتلو د سړي سر ترې پټېدای شوای. جګړه پیل شوه، موږ خپل موټر له وسله‌والو ډک د سړک چپ طرف ته په سرعت روان کړ. له موږ وړاندې یو سپین بایپور موټر په ډېر سرعت لاړ او د مخالفینو منځ کې یې وسله‌وال ښکته کړل. نه پوهېږم دومره جرئت د هغوی زبون وواهه که څه خبره وه، چې مخالفینو تر ورسېدلو وړاندې هغه په نښه نه کړای شو. د دغه موټر وسله‌وال**

په بیره تیت شول او دښمن یې تر ګذار لاندې ونیو. موږ ورپسې وو، یو توپدار ټانک زموږ په وړاندې رالروان و، ما ورباندې ار پې چې ونیو، خو چې ماشه مې ټینګه کړه؛ ډز یې ونه کړ. ما مې ملګري ته غږ کړل، چې زما راکټ کار نه کوي. هغه ویل دا زوړ راکټ دی، ممکن ستنه یې زنګ وهلې او ماتې شوې وي. رښتیا هم ستنه یې ماته وه. لېږې مې وشاړه او د بولدک له ملا ظاهر سره په راکټ کې شریک شوم. ملا ظاهر د روسانو د جګړو له مهاله مشهور نشان زن راکټي و. سمدستي یې په اول ډز ټانک له حرکته واچاوه، نوره جګړه په توندۍ پیل شوه.

طالبانو دا جګړه د یوې پرېکنده جګړې په توګه په ډېره بې سارې فداکارۍ او زړورتیا جاري وساتله. الوتکو بمونه غورځول، چې موږ ته به ښکارېدل او کتل به مو چې اوس به چېرې لوېږي، په فضا کې د مرمیو له کړسهار سره د الله اکبر او د (و ما رمیت اذ رمیت ولکن الله رمی) غږونه پورته کېدل.

پر موږ د پیکا ماشیندارو او زیکوک ماشیندارو ضربې وهل کېدلې. ځان به مو هم نهام کاوه او پر هغوی به مو هم ډزې کولې، ملا ظاهر یو بل ټانک هم په نښه کړ او پر ټانکونو یې نورې ډزې هم وکړې. زموږ دغه واړه ټولی چې اووه یا اته کسه به کېدو، د دښمن تر سختو پیرونو لاندې وو او موږ هغوی ترفایرونو لاندې نیولي ول. د ماښام خوا ته د ځینو وسلو د مرمیو رڼاوو فضا رنګینه کړه، موږ نور د مرمیو د کمښت له وېرې ډزونه نه کول. یوه ملګري غږ کړل، نور کارتوس مه مصرفوئ هسي نه محاصره شو.

د کارتوسو د اکمالاتو موټر له موږ سره په فاصله کې د ریګو یوې ټیټې غونډۍ ته ولاړ و او په کې نصب زیکویک ماشین دارېې پر مقابل لورې ډزې هم کولې. زموږ او د اکمالاتو د لارۍ مینځ کې وچ میدان و. د مرمیو د کمښت له وېرې ما د ملګرو له اجازې پرته د اکمالاتو موټر ته ورمنډه کړه. له شا یوه بل ملګري هم

راپسې منډه کړه چې وچ ډاګ ته شوو. د ماشیندارو فایرونه راباندې پیل شول، خو زموږ قسمت ښه و، د اکمالاتو موټر ته مو په منډه ځانونه ورسول، له هغه ځایه مو یو وړوکی صندوق د پیکا ماشیندار، یو صندوق د کلاشینکوف او څو د راکټ مرمۍ په ګډه راواخیستې او په ټیټ سر مو رامنډه کړه، خو دا ځل لکه چې د هغوی راته فکر نه شو، ډزې یې راباندې ونه کړې، موږ ملګرو ته راورسېدو، ملګري مو سخت خوشحاله شول او بیا مو جګړه پیل کړه، چې له دې سره د فتحې نارې شروع شوې او مخالفینو شاته منډې پیل کړې، موږ لومړی نږدې ویشتل شوي ټانک ته ورغلو، چې ټانکست یې تښتېدلی و، ورسره خوا کې یو سپین ږیری هلمندی زخمي پروت و، چې پر شا یې لویه د اوبو بوشکه تړلې وه. چې هغه هم په ګولیو سورۍ شوې وه او اوبه یې لاندې روانې وې؛ په جیب کې یې د رباني د دولت له لوري د چاپ شویو افغانیو بنډلونه وو، چې په ګولیو سوري سوري وو. یوه ملګري ورته وویل د همدې لپاره جنګ ته راغلی وې؟ زخمي په دربدلي اواز ورته وویل، ما ویل دا ځل به مې روزي شي خو لکه چې اخیره مې شوه.

دا وخت فضا کې لا د کارتوسو شپیلکي روان وو خو روحیات ژوندي و او جګړه ختمه شوې وه. موږ یو ډول روحي سکون احساساوه، ځکه چې یو خو له یوې اوونۍ وروسته په لومړي ځل، طالبانو بېرته پرمختګ وکړ، بل لور ته د مخالفینو پراخه مرګ ژوبله د یوې اوږدې بریا پیلامه وه. موږ دغه کوچنی ټولی بېرته د ګرشک ښار ته ورغبرګ شوو، خو د ښار ښه ډېره بدله وه، له کندهاره سپین ږیري، ځوانان او نوي هلکان په زرګونو د مرستې لپاره رارسېدلي وو او د هر چا په سترګو کې دا نتقام لمبې بلې وې. دا ځکه چې په کندهار ښار کې چې کله اوازه خپره شوې وه چې ټوپکیان بیا ښار ته راځي، خلکو د خپل ښار، عزت او مال ساتلو په موخه یو ډول ملي قیام کړی و او پرته له دعوته هر چا وسلې ته لاس کړی و، چې د طالب څنګ ته ځان ورسوي.

د دې ورځې په ماسپښین د طالبانو پیاوړي قوماندان ملا بورجان (چې دا مهال د زخمي کېدو له امله د جګړې نه و) د خرقې په جامع جومات کې خلکو ته د مرستې اعلان کړی و. خلکو نه یوازې چې د جګړې لپاره ځانونه رارسول، بلکې موږ په ګرشک کې له خوراکي موادو نه ډک موټرونه هم ولیدل، چې خلکو په کې تازه انګور، پخې کړې غوښې او ډوډۍ را بار کړې وه. چا چې څه لرل هغه یې د طالب د مرستې لپاره راوړي وو. د خلکو دغه جذبه او جنون د ګرشک ښارګوټي په یوه احساساتي لښکرتون اړولی و. زموږ جذبات هم ورسره درې چنده شول او دومره پراخ ولسی ملاتړ او مینه مې چېرته په خوب کې هم نه وه لیدلې. موږ له پرون شپې لا ستړي، ستومانه او وږي وو. له ځانه سره مو د خلکو د مرستو له موټره یوه ستره سوده (ټوکرۍ) انګور او یو څه خواړه واخیستل او هم هغه د ملاخالق داد د څهل میلو تم ځای ته راغلو. نن دلته د جنګ فضا نه وه، ارامه ارامي وه، یوازې د طالبانو غږونه، د موټرو غرهار او خنداوې اورېدل کېدې، د جګړې او وېرې د پرونۍ فضا نور څرک هم نه لګېده. ډوډۍ مې وخوړله،لمونځ مې وکړ او یوې ډبرې ته مې سر کېښود. نور په ځان خبر نه شوم. سهار چې مې اوږې لمر تودې کړې، را ویښ شوم، د سهار لمونځ رانه قضا شو. کوم ځای چې مې سر لګولی و، هغه ځای د ملګرو د باندار له ځایه نهام و، هغوی هم نه وم لیدلی، ځکه خو یې لمانځه ته هم نه وم پاڅولی.

سهار شاوخوا ۹ بجې وې د مولوي عبدالمنان حنفي، ملا خالق داد او مولوي دوست محمد ملګرو د خوراک لپاره غوښه کبابوله او چای لا هم ګرم پروت و. چای مو وڅښه، څه کم لس بجې وې، چې یوه ملګري غږ کړل: چې مشهور پاټکي "نادرجان" یې ژوندی نیولی او پر سړک یې په موټر کې کندهار لور ته تېروي. زموږ هم ورته سودا شوه، سړک ته مو ورمنډه کړه، لږه شېبه وروسته خړه هینو لارۍ راغله، موږ ودروله، ځینې طالب ځوانان په لارۍ کې ناست دي، ځینې ولاړ او یو شمېر په جنګله کې ختلي دي. په مینځ کې یو غټ مخی

سپین ږیری ناست دی، سرې خونکارې سترګې او شین تندی یې دی، زه حیران شوم، چې په دغه ستره اوږده سپینه ږیره دغه بابا دومره ستر جنایات څنګه کول، لکه د تورسرو بې عفتي، مرګونه او نور...

موټر له موږه تېر شو، خو د کندهار له لورې پر سړک د ملا محمد عمر موټر په سرعت راروان و، چې کله یې لارۍ ولیده، موټر یې ودراوه. نادرجان یې رابښکته کړ او په خپله توپانچه یې پر سر څو ډزه وویشت. ځای پرځای یې مړ کړ، زما د معلوماتو له مخې دا به لومړنی او وروستنی کس وي، چې ملا محمد عمر په خپل لاس وواژه.

نادرجان هغه پاټکي و، چې د ملا محمد عمر د قیام مرکز ته نږدې یې یو ډېر بدنام پاټک درلود، چې ویل کیږي له خلکو یې تورسرې هم د بې عفتۍ لپاره کوزې کړې وې او د ملا محمد عمر د پاڅون په لومړیو لاملونو کې یو هم د ده پاټک ګڼل کېده.

د شپې د ملارحمت الله، ملا عبد السلام او نورو وړو اوسترو قوماندانانو په مشرۍ ځواکونو مخالفین تعقیب کړي وو، سهار چې موږ د نمیروز د دلارام ولسوالۍ مرکز ته ورغلو، نو له لرې جګړې وروسته مخالفینو دغه سیمې پرې ایښې وې او د فراه د مرکز لور ته تښتېدلي ول. د سړک دواړو لوریو ته د هغوی بې شمېره مړي پراته وو، چې ښایي دغو درنو تلفاتو به د هغوی جنګي ملا ماته کړې وه، خو د اسماعیل خان د الوتکو له خوا بیا هم سخت بمبار روان و.

له اسیرانو سره ناوړه چلند او زما روحي ځور

په سبا چې موږ له ګرشک نه حرکت وکړ، نو د یو شمېر مړو جسدونه مو ولیدل چې د اسیرانو په توګه نیول شوي وو او بیا د کوم مشر له امره پرته ځینو عامو طالبانو وژلي وو. ډېر داسې کسان چې په جګړه کې یې برخه هم نه وه

اخیستې خو له جنګه وروسته به یې اسیران وژل. له بده مرغه د ملا محمد له شهادت وروسته تر دې دمه بل قوماندان دومره واکمن او متوجه نه و، چې په ټولو اطرافو کې طالبان له ناوړه او غیر اصولي چلنده منع کړي. ملا محمد د جنګي اسیر د وژلو اجازه چا ته نه ورکوله، ډېری طالبانو به دا خبره کوله چې حاجي ملا محمد چې کوم ټوپکیان معاف کړي، هغه ټول بېرته له موږ سره جنګیږي، نور باید ونه بښل شي. ربښتیا هم د هلمند او کندهار په فراري ټوپکیانو کې ډېر داسې خلک وو چې له دوه ځلو نیول کېدو او بښل کېدو وروسته بیا جنګېدل. له یوې خوا په دې جګړه کې د طالبانو د ډېرو ملګرو تلفات، بل پلو ته د ملا محمد د انتقام جذبه او بل لور ته تر دې مهاله د یوه بل ځواکمن قوماندان د وېرې او حاکمیت نه شتون، د دغو بې مسئولیته کسانو مخه خلاصه کړې وه، چې اسیران یې بې درېغه وژل. وروسته چې ملا محمد رباني راورسېد دغه کار لږ کنټرول شو، خو یو ځل نږدې ملا محمد رباني په خپله د دې پیښې ښکار شوی و. ملا محمد رباني غوښتل چې سپین ږیری هراتی اسیر د یو طالب له ډزو وژغوري، ورمنډې یې کړې، خو طالب پرې ډزې وکړې او ملا محمد رباني ترې په ډېره کمه فاصله بچ شو، خو اسیر یې وژغورلای شو، وروسته هغه وسله‌وال طالب د مشرانو له سخت تهدید سره مخ شو.

وژل کېدونکي اسیران اکثره کندهاري اوهلمندي فراریان وو، ځکه چې همدوی ته د ځینوعامو طالبانو زړونه بې رحمه وو. که څه هم د وژل شویو اسیرانو تعداد کم و، خو دغه حرکاتو زما پر ذهن ډېر ناوړه اغېز وکړ، ان چې د یوې مقدسې جګړې پر مشروعیت مې لا شکوک پیدا شول. دغه فتحه چې زما همزولو ته د خوښې میله وه. زه یې په فکري انحطاط او روحي فشار کې واچولم، نور مې د پرمختګ د خوښۍ ځای هغو ترخو خاطرو ونیو چې یوه تنکي ځوان به عذر کاوه چې دا ځل مي معاف کړئ په زور یې راوستی یم، خو بې

باکه کارتوس به یې بیا هم ژوند واخیست. دغه بې خونده حالت چې اوس هم رایاد شي، روح مي ځوروي، هلته مې هم همزولي په طبعیت پوه شول، له ځانه سره به په فکرونو کې ډوب وم.

ملا محمد رباني په چیغو وویل چې دا عمل مو ناروا دی، او هیڅوک اجازه نه لري، خو ملا محمد رباني د جګړې عمومي کنټرولوونکی و. پر هره وړه ډلګۍ یې ځان ځان ته څارنه نه شوای کولای، ملا محمد عمر امر کړی و، چې یو تن اسیر به هم څوک نه وژني، خو په دغو نامنظمو او هجومي عملیاتو کې یوشمېر اسیران د عامو او بې مسئولیته طالبانو له خوا ووژل شول.

د درېیم تعرض په شپه چې عمومي قومانده ملا محمد رباني ورکوله، هغه په نفلونو ودرېد، ډېر اوږده رکعتونه یې وکړل او بیا یې دعا پیل کړه. دومره اوږده دعا یې وکړه، چې نور قوماندانان په تنګ شول چې هسې نه دښمن وار راباندي ړومبی نه کړي، خو ملا محمد رباني یو عابد انسان و. هغه ته معنویاتو همدومره ارزښت لاره (زه تر ننه لا د هغه د سپېڅلې روحیې او تقوا تر اغېز لاندې یم) خو په همدغه وخت کې له یوه ستر پوځي موټره یو کشري ځوان ځان را وغورځاوه او پر پیریانو یې ځان واچاوه (په دودیزه اصطلاح کې پیریانو ګنده کړ) د هلک عمر د ۱۸ او ۱۹کلونو شاوخوا و؛ د باغران رئیس ملا عبدالواحد پرې لیونۍ رمباړه وکړه: چې پورته شه!

هلک سمدستي په خود شو، بېرته موټر ته وخوت او له ویرې په رېږدیدو شو. ماچې پوښتنه پسې وکړه، ملګرو مي راته وویل چې د باغران رئیس وسله‌وال په زوره راولي او دغه تنکي ځوان د جنګ له وېرې ځان همداسي کړ، خو بېرته د خپل قوماندان (د باغران د رئیس) له وېري سم شو. زما زړه ډېر ورباندي و دردید. د رئیس عبدالواحد (د باغران رئیس) په پوځي لاریو کې د یو عمر او سن خلک نه وو. یو به نوی ځوان و، بل به سپین ږیری و. چا راته وویل چې

هغه له خپلې سیمې او قوم نه خلک د عسکري جلب په طریقه ټولوي او خلک دې کار ته مجبوروي، نو که څوک ځوان ونه لري تنکي ځوانان او سپین ږیري ورسره کوي، دغه دود زه ډېر خپه کړم او د طالبانو په څېر تر ډېره بې داغه تحریک ته دا یو ډېر ځرګند داغ و.

ما کله هم داسې صحنه لیدلې نه وه.د بې محکمې اسیرانو وژلو د جګړې دغه رُخ هسې هم راته وحشي ښکار ه کړ، زه له دې سره چې بیا هم متیقین وم او یم چې د دنیا په سپېڅلو جګړو کې یوه هم د طالب جګړه سپېڅلې او مقدسه وه، خو دا مې هم احساس کړه چې په رښتیني ډول د جګړې تقدس څومره ګران دی چې د طالب غوندې مدعي هم په کې کله ناکله دومره ښوېیدلای شي! د هغه نورو به څه حال وي؟

همدې تصور روحاً او فکراً دلسرده کړم، ما دا ومنله چې رښتیا هم انسان له مرګ او وژلو سره ډېر ژر عادي کېدای شي، ما له ځانه سره ویل: یا الله ما ورسره مه عادي کوه!

همدا مې فیصله شوه، خلک او ملګري د فتح په جذباتو د هرات نیولو ته لیواله پرمخ ولاړل، خو ما ایله د آب خرما تر غره ملګرتیا ورسره وکړه، چې کله په دې پوه شوم چې نور نه طالب تلفات لري او نه هم د وسله‌والو ضرورت لري، بلکې تر جنګیالیو سیلاني ډېر راروان وو، نو باور مې وکړ چې نور په" زحاف عن الحرب" کې نه راځم، ځکه خو بې مشورې راغبرګ شوم او له قوماندان حاجي بشیر سره موټر ته وختم. بیرته دلارام ته راغلم، د غرمې ډوډۍ مو یوه کور کې وخوړله، له هغه ځایه په سورلۍ موټر کې کېناستم، کندهار ته لاړم. یو دوه میاشتې مې لا بولدک کې تېرې کړې، نور مې د ډلګۍ ۳۵میله وسله د بولدک ولسوال ته تسلیم کړه او له نظامي مبارزې سره مې مخه ښه وکړه، له هم هغه ورځې مې بیا په طالبانو کې فرهنګي او سیاسي چوپړ ته مخه شوه.

**د هرات فتح**

له یوې هفتې جګړو وروسته طالبانو د ۱۹۹۵م کال د سپټمبر په ۵مه د هرات مرکز ونیو. د اسماعیل خان ځواکونو له هراته بهر مقاومت وکړ، خو په ښار کې دننه یې له جګړې ډډه وکړه. اسماعیل خان او مهم قوماندانان یې د اسلام قلعه له لارې ایران ته وتښتېدل، نیمروز او فراه خو تر دې وړاندې لا ونیول شول، طالبانو د هرات په اطرافو کې تصفیه پیل کړه او د غور، بادغیس او فاریاب ځینې سیمې یې هم تر واک لاندې راوستې، چې له امله یې د دوستم له ځواکونو سره په لومړي ځل جګړیزې کربښې مخامخ شوې، طالبانو د نورو ښارونو په څېر د هرات له فتحې سره هم د عمومي عفوې اعلان وکړ او د پخواني رژیم ډېر مامورین او کسان بیرته له لنډ توقف وروسته ادارو ته راغلل، البته سترې څوکۍ او ریاستونه طالبانو ته ورکول کېدل، او لاندې طبقه به زاړه مامورین وو.

په دې جګړه کې چې له ګرشک نه پیل او په نږدې یوه هفته کې د هرات، نیمروز او فراه د نیولو سبب شوه، د طالبانو مخالف لوري ته ډېر درانه ځاني او مادي تلفات واوښتل.

تقریباً تر زرو پورې وسله‌وال مخالفین ووژل شول، چې په دې د کندهار هلمند د فراري ټوپکي قومندانانو وسله‌وال، د اسماعیل خان ملېشې او د احمدشاه مسعود کومکي ځواکونو ټول وو، په دې کې د شمال او په خاص ډول هغه پنجشیریان هم وو، چې د تېښتې پرمهال د سیمې له جغرافیې او طبیعت سره نابلده ول او د هلمند او فراه ترمینځ په سترو دښتو کې د ورکیدو له امله له تندې مړه شوي وو. دغه سیمه پراخه او هوارې دښتې دي، چې تر ورځو مزلونو پورې اوبه نه پیدا کیږي. دا وخت چې د اګست ګرمي وه او د دې سیمې یو ډول خاص ګرم باد انسان په څو ساعتونو کې له ډېرې سختې تندې

سره مخ کوي. البته د هلمند او کندهار فراریان د دې سیمې له جغرافیې او اقلیم سره بلد وو. هغوی د کارتوسو د چانټې ترڅنګ هر یوه د اوبو لویې بوشکې هم په ځانونو پورې تړلې وې. له دې سره سره دا هم ورته معلومه وه، چې کوم لوري ته اوبه ژر پیدا کېدای شي، چې له همدې امله هغوی د تندې له امله تلفات نه لرل، خو له تندې نه تر ټولو زیات تلفات کومکي پنجشیریانو لرل، د تندې مړي به په دې پېژندل کېدل، چې پرمخ به یې د خولې برخې یو ډول ځانګړی توروالی درلود.

طالبانو هرات ته ملا یارمحمد د والي په توګه غوره کړ، ملا یارمحمد ولس دوسته، نرم طبعه او هوښیار سړی و. د روسانو پر ضد جهاد کې د کندهار په کچه نامتو قوماندان و او د هېواد په کچه د روسي الوتکو د رانسکورولو یو اتل نشان زن و. هغه په یواځې توګه په خپل لاس د امریکایي ستینګر توغندیو په وسیله درویشت (میګ یوویشت او دوه ویښت) جنګي الوتکې رانسکورې کړې وې، خو دا چې څرنګه په دومره پیمانه ستینګر توغندي په تنها سر په ګوتو ورغلي وو، د دې لامل دا و چې ده له حامد کرزي سره د جهاد پرمهال دوستانه اړیکې وې. دواړه د یوې قبیلې وو او کرزی هغه وخت غالبا د سي آی اي له خوا د ستینګر توغندیوو څارونکی و.

د هرات نیولو طالبانو ته د هېواد د یوه بل ستر ولایت اداري چارې ورله غاړې کړې. د هرات ډېری خلک علم دوسته، فرهنګ دوسته او ارام طبعه خلک دي. البته د ایران له خوا د طالبانو پر ضد وخت پر وخت انتقامي دسیسې جوړېدلې، چې کله ناکله به یې ستونزې هم جوړولې. څو ځله د والي د وژلو دسیسه د ایران له خاورې جوړه شوې وه. یو ځل یې د تیلیفون یو سیټ د والي دفتر ته تېر کړی و، چې د استخباراتو د موظفینو له خوا له سپړلو وروسته په کې یو دقیق بم کشف شو، چې د تیلیفون په غوږګی کې په ډېر مهارت ځای شوی و.

**د والي ترڅنګ د طالبانو د عالي شورا غړی او د تحريک ستر داعي مولوي احسان الله احسان هم هرات ته واستول شو، چې له ولسي خلکو سره د طالبانو د دوستانه اړيکو د ټينګولو په برخه کې کار وکړي. هغه په دې اړه ځانګړی استعداد او مهارت درلود.**

**د هرات له نیولو وروسته طالبان د سترو دولتي عوایدو څښتنان شول**

هرات ښار ایران او ترکمنستان سره رسمي تجارتي دروازه ده. له ایران نه د ایراني اجناسو علاوه خلیج نه هم افغانستان ته مالونه د بندر عباس نه د هرات پر لار افغانستان ته راځي. دا لار د ایران او افغانستان دواړو لپاره خورا اقتصادي ارزښت لري. همداراز د ترکمنستان د تورغونډۍ دروازه نږدې د ټولې مینځنۍ اسیا د تجارت مهمه دروازه ګڼل کېدله، د ایران سرحد څه وخت د تجارت لپاره بند و،خو وروسته بیرته پر انیستل شو،ځکه چې دا د ایراني اجناسو لپاره هم مهمه صادراتي دراوزه و. د هرات د ګمرک مجموعي عواید هغه وخت په ابتدایي ډول تقریبا د میاشتې له ۵ نه تر ٦ لکو ډالرو رسېدل، چې دا د طالبانو په څېر غورځنګ ته کمې نه وې، دا عواید وروسته څوچنده جګ شول ، خو په ابتدا کې دغه اندازه پیسو هم د طالبانو د تحریک مالي حالت ته حیاتي ارزښت درلود.

پر دغې لار له خلیج نه دوهم لاس (استعمالي) موټران، ټیرونه، مبلایل، د کورني استعمال توکي او دې ته ورته اجناس او له ایران او ترکمانستان څخه تېل او خوراکي توکي ډېر راتلل. له دې نه علاوه د نیمروز سرحد هم یوه کمه اندازه عواید لرل او په جنوب کې د خوست ښار سره د پاکستان پر پوله (غلام خان سرحد) هم څه ناڅه عواید لرل.

طالبانو پر تجارتي توکو ډېره کمه مالیه وضع کړې وه ، د ټول هیواد له نیولو وروسته هم د ټول هیواد د ګمرکونو عواید دورځې تریولک ډالرو نه اوښتل، چې دا د نورو حکومتونو په پرتله ډېرکم عواید وو.

پر دې سربېره په هرات، نیمروز او فراه کې د مخالفو وسلوالو نه ډېره لویه اندازه وسله، مهمات موټرونه، زغره‌وال ټانګونه او په شنډنډ هوایي ډګر کې څو باله جنګي او ملکي الوتکې د طالبانو لاس ته ورغلې.

### پاکستان څنګه طالبانو ته ترجیح ورکړه؟

کله چې د هرات له فتحې یوه ورځ وروسته په کابل کې د برهان الدین رباني د دولت پلویانو یوه مظاهره ترتیب کړه او د پاکستان پر سفارت یې برید وکړ، سفارت ته یې اور واچاوه. دې برید کې د سفارت په عمله کې یو تن مړ او څو نور شدید ټپیان شول، دغه عمل د پاکستان د حکومت درنه غوسه راوپاروله چې له امله یې خپل سفارت وتاړه او له افغانستان سره یې ډیپلوماتیکې اړیکې وشلولې. دغه کار تر ټولو ستر زیان د برهان الدین رباني واکمنۍ ته واړاوه، چې د یوه مهم ګاونډي هېواد له رسمي اړیکو بې برخې او خپل مخالف یې په نامستقیمه توګه قوي کړ.

پاکستان چې په کابل کې یې د جهادي قوماندانانو ترمینځ قوي استخبارات لرل، په دې پوه و، چې دا مظاهره په خپله دولت ترتیب کړې وه او هر څه یې په شعوري ډول ترسره کړل. د رباني او مسعود پلویانو فکر کاوه چې د هرات د نیولو په جګړه کې د زیاتو پنجشیري ځوانانو د مرګ په اړه دا مناسب غبرګون دی، چې پاکستان تر فشار لاندې ونیول شي. په داسې حال کې چې پاکستان تر دې دمه هیڅ عملي مرسته له طالبانو سره نه کوله، بلکې یواځې د پاکستاني ولس د خواخوږۍ او مرستې په اړه یې نرم دریځ ښووده.

له بلې خوا پاکستان شک کاوه چې ښایې د هرات له سقوطه وروسته ایران په افغانستان کې ځان کمزوری احساسوي، نو ځکه غواړي چې پاکستان هم له ورته دریځ سره مخ کړي او سفارتونه یې په افغانستان کې وتړل شي. همداراز پاکستان په دې پېښه کې ممکن د هند د لاس وهنې شک هم کاوه.

ځینې شننونکي داسې فکر کوي چې کله په ۱۹۹۷ کال داګست پر۸مه (۱۷اسد) د مزار شریف ښار بیا طالبانو ونیو او د ایران په سفارت کې یوولس ایراني اتباع په مرموز ډول ووژل شول. ښایي دا د پاکستان له خوا پر خپل

سفارت د شوې حملې غبرګون وي، خو په دې اړه هيڅ شواهد ترلاسه نه شول، يوائې د ادعاوو تر کچې دا ډول خبرې کېدې.

د سفارت سوزولو پيښې پاکستان له کابل رژيمه مايوسه کړ. هغوی طالبانو ته د دوستانې د لاس غځولو د هڅو ترڅنګ د سفارت له تړلو څو مياشتې وروسته په جلال اباد کې د معادل سفارت د پرانيستلو تابيا هم وښوده، چې د رباني پر ځای د حاجي قدير په مشرۍ مشرقي شورا سره روابط ټينګ کړي او د کابل د سفارت کار د جلال اباد له کونسلګرۍ واخلي.

که څه هم د مجاهدينو اوه‌واړه ګوندونه پاکستان کې جوړ شول او له هغه ځايه يې افغانستان کې د نجيب د واکمنۍ تر ړنګېدو سياسي او پوځي فعاليت وکړ. برهان الدين رباني هم د پاکستان په مرسته تر کابله ورسېد او له مجددي وروسته د هغه د څلور مياشتني جمهوري رياست انتخاب هم په پېښور کې د پاکستانيانو په مشوره اوغوراوي وشو، خو د حکمتيار او رباني د ملېشو ترمينځ د جګړو په شدت کې پاکستان د حکمتيار په پلوۍ تورن و.

کله چې طالبانو په کندهار کې لومړی سر راپورته کړ، نو رباني او سياف يې کلک هرکلي وکړ آن چې طالبانو ته يې د امن فرښتې وويل، خو کله چې طالبان په جنوب کې له اسماعيل خان او مرکز کې له مسعود سره ونښتل، نو رباني او پلويانو يې پر طالبانو د پاکستان د ملاتړ تور پورې کاوه. دا مهال د رباني د حکومت او پاکستان رسمي او ديپلوماتيکې اړيکې سمې روانې وې، پاکستان د رباني حکومت ته د افغانستان د نماينده حکومت په سترګه کتل.

د کندهار له فتحې څو ورځې ورسته کله چې په لومړي ځل د پاکستان يو ټيټ رتبه هيئت د پاکستان د هغه تجارتي کاروان د پاتې شونو د وصول لپاره کندهارته راغی، چې تر طالبانو وړاندي د لويې لارې پرسر ټوپکي قوماندانان لوټلی و.دغه تجارتي کاروان د کندهار د والي ګل اغا شيرزي او د پاکستان د

داخله وزارت تر مینځ د توافق نه وروسته د کندهار له لاري هرات اوبیا تورغوندي ته روان و، خو شیرزی که څه هم په ظاهره د کندهار والي و، خو داسماعیل خان په څیر یې د لویې لاري د امنیت ساتلو توان اوځواک نه لاره،ځکه خو دغه کاروان لوټ شوی و. د طالبانو له راتګه وروسته د دغه کاروان محدود وسایل د ټوپکیانو نه طالبانو ته ورپاتې شول،چې د همدې پاتې شونو په بهانه دغه پاکستانی هیئت کندهارته راغی، چې په ترکیب کې یې د داخله وزارت د ټیټ د رتبه مامورانو ترڅنګ دآی اس آی غړی هم و، طالبانو که څه هم داسنادو اوشواهدو په په بدل کې د هغوي سامانونه ورته وسپارل، خو نوریې ورسره ډیر محتاط ، سوړاو حتی بیخونده تعامل وکړ.

له هغوي سره د لیدونکو مشر د عالی شورا غړی ملا محمد عباس و، کله چې د هیئت مشر ملا عباس ته وویل: پاکستان ستاسي سره د ښو اړیکو او همکاري نیت لري، نو ملاعباس په تونده لهجه ورغبرګه کړه چې موږ ستاسي له مرستي او دوستي بیزاره یو، نور دافغانانو په مېنځ کې ستونزي مه جوړوي! د ملاعباس اشاره د حکمتیار او رباني خپل منځي جګړو ته وه. دغه کرنل بیا وروسته د طالبانو د حکومت په دوره کې افغان سفیر شهاب الدین دلاور ته دغه کیسه کړې وه چې په لومړي ځل چې طالبانو د ملاعباس په ژبه موږ ته تریخ او نامناسب ځواب راکړ. نو موږ خپل مېنځ کې سره وویل: چې طالب جان د جګړې د دوام له زوره خبر نه دی! اخیر به د یو چا مرستې ته اړ کېږي.

په اول کې د طالبانو اوپاکستان د رسمي اړیکو سوړ جریان د طالبانو د محالفینو په ګټه و؛ خو د پاکستان میشته افغان مهاجرینو مرستو او له پاکستان نه د هغوې د ډلې ډلې کومکي ځوانان ازاد راتلل او له افغانستان نه هره ورځ په لسګونو زخمي جنګیالي د پاکستان روغتونونو ته وړل، هغه څه وو، چې پاکستان یې د طالبانو لپاره یو کومکي هېواد معرفي کړی و. که څه هم د

افغان جهاد له پیله پاکستاني حکومتونه د افغان وسلوالو د ټپیانو د درملنې او تګ راتګ په اړه عادي وو او د داخلي جګړو زخمیان هم په ازاده توګه پاکستان ته دتداوي لپاره وړل کیدل ، خو د طالب غورځنګ مخالفانو د پاکستان دغه رویه مستقیمه مرسته نوموله. کله چې د رباني اومتحدینو لخوا د پاکستان پرضد نیوکې زیاتې شوې، ورپسې یې د پاکستان پر ضد هند ته لاس وغځاوه او بلاخره یې په کابل کې د پاکستان پرسفارت خونړی برید وکړ، نو پاکستان د ځینې سیاسي اومذهبي ډلو او اشخاصو په واسطه له طالبانو سره د اړیکو د ټینګولو هڅې له سره پیل کړې، له دې سره سره د طالبانو له خوا د مخالفینو په وړاندي مسلسل پرمختګ او د پراخو سیمو لاندي کول هم د دې باعث شول چې پاکستان نور هم دغو اړیکو ته لیواله شي او له طالبانو سره د افغانستان د یوه مهم فوځي او سیاسي جهت په توګه اړیکې ولري. لومړی پاکستان د هرات، مزار او جلال اباد په څېر په کندهار کې هم یوه سمبولیکه کونسلګري لرله چې اصلي واک یې د کابل له سفارت سره و، خو د سفارت له سوزیدو وروسته یې د کندهار کونسلګري مجهزه کړه او په هرات کې یې هم کونسلګري پرانیسته. چې له امله یې له طالبانو سره رسمي اړیکي جوړې شوې، چې بیا د طالبانو د حاکمیت په دوره کې د اړیکو دغه بهیر د دوو دولتونو د اساسي او ضروري اړیکو ځای ونیو. بل پلوته له نړۍ سره ناسمو اړیکو طالبان په اخیرکې د پاکستان د ډیپلوماتیکو اوسیاسي اړیکوته ډېر محتاج کړل.خو پاکستان تل د خپلو ګټو او ضرورتونو ترکچې له طالبانو سره اړیکې پاللې او له دې ور هاخوا یې نه کومه دیني انګیزه لرله اونه استراتیژیک شراکت!

مګر عوامي پیوستون او د پاکستان له دیني طبقې سره د طالبانو اړیکو بلکل له دولتي هغې نه یو جلا انګیزه او رنګ لاره.بل پلو طالبانو هم د پاکستان اړیکوته رو رو پام واړاوه او د لومړیو ورځو په محتاط دریځ کې بدلون ته اړ شول.

**په کندهار کې د هېواد د ديني عالمانو ستره غونډه او ملا محمد عمر ته د اميرالمومنين لقب ورکول**

د ۱۹۹۶م ميلادي کال پسرلی مارچ مياشت کې عالي شورا مشرتابه ته د ا نظر ورکړ؛ که د عمومي وضعيت او جنګ په اړه د ټولو مفتوحو سيمو او په بهر کې د مهاجرو علماوو يوه غونډه دايره کړو، چې د هغوی مشورې، هدايات او تاييد ترلاسه او راتلونکي کارونه مو نور هم د ديني اصولو او اوامرو چوکاټ کې تنظيم کړو.

ويل کيږي چې د دې کار مشوره اول مولوي جلال الدين حقاني د مولوي احسان الله احسان له لارې شورا ته را ليږلې وه، چې د دې جګړې د مشروعيت او ضرورت په اړه د هيوا له ديني علماوو نه شرعي هدايات او ازاده رايه واخلئ، مولوي احسان الله د شورا له نورو غړو سره دا مشوره شريکه کړې وه اوبيا مشرتابه ته وړاندې شوې وه.

د غونډې لپاره د کندهار ښار ميخانيکي ښوونځي غوره شو، چې پراخې ودانۍ او د يوې سترې غونډې وړ تالار يې درلود. د ښوونځي په دروازه کې يو موقتي دفتر خلاص شو چې د راتلونکو مېلمنو نوم او ولايت به يې ثبتول او بيا به يې د هغوي د اوسېدو لپاره د مناسب اطاق کيلياني د هغوی مؤظف خادم ته سپارلې. د دې دفتر مسئول مولوي حمدالله نعماني و، چې دا وخت د اطلاعاتو او کلتور لوی رياست اداري مدير و. ورسره د مېلمستون مشر مرحوم احمد علي خان متقي د غونډې نورې چارې تنظيمولې. موږ څو تنه نور ملګري هم ورسره همکاران وو.

کوم علماء چې به په يوځای راغلي وو او غوښتل به يې چې په يو ځای اووسي، هغوی ته ستر ستر مجهز اطاقونه ورکول کېدل. څوک چې تنها او يو دوه يا درې تنه وو، هغوی ته د هغوی د اوسېدو وړ اطاقونه ورکول شول. په

اطاقونو کې ټولې اسانتیاوې ورته بر ابرې شوې او د خدمت لپاره یې معلوم کسان مؤظف وو. له دې ودانیو علاوه ځینې مېلمانه د ولایت په مېلمستون او د میوند هوټل په ودانیو کې هم اوسېدل. د کندهار اوسېدونکي اکثر علماء د شپې بېرته کورونو ته تلل.

غونډه د ۱۳۷۵لمریزکال د وري د میاشتې په۱۴مه نېټه چې د ۱۹۹۶میلادي کال د مارچ له۳۰ ورځې سره یې سمون خوړ پیل شوه او په درېیمه ورځ غونډې ته ملا محمد عمر هم راغی. د ماسپښین له لمانځه مخکې ملا محمد عمر مجاهد خپله وینا پیل کړه. د تحریک د پیل کولو ټوله کیسه یې په لنډ ډول بیان کړه. د وینا مینځ کې یې وژړل او تقریبا ټول محفل ورسره وژړل. (د دې وینا غورچاڼ د کتاب په سر کې راوړل شوی).

مولوي احسان الله احسان د خپلې وینا په ترځ په احساساتي ډول ناستو علماوو ته په شخصي توګه وړاندیز وکړ چې موږ باید خپل مشر ته د امیرالمومنین نوم ورکړو، ناستو علماوو په یو اواز د دې هرکلی وکړ. مولوي احسان الله له علماوو نه د بیعت غوښتنه وکړه. بیعت شروع شو، ملاصیب حیران ولاړ و، زړه نازړه شو، ځکه چې د لقب دا ټول کار ورته تصادفي و. علماوو له هغه سره په لاس بیعت پیل کړ، د هغه سترګې له اوښکو ډکې شوې او بدن یې په لړزېدو شو. ماحول یو ډول جذباتی و، یو خوا د ملاصیب ساده او صادقه وینا اغېزناکه وه. بل پلو مولوی احسان الله خلک نورهم په جذباتو راوستل. ما له یو دوو مشرانو ملګرو نه پوښتنه وکړه چې د لقب اعلانول په پروګرام کې وو؟ هغوی وویل چې نه هیڅکله داسې خبره نه وه شوې او نه ملا محمد عمر دا ډول غوښتل، خو د مولوي احسان جذباتي چیغې او د علماوو هرکلي ملاصیب هم له انکاره را وګرځاوه.

هغه علماء چې په شخصي توګه په ښار کې یا له وسله‌والو طالبانو سره د هغو په اطاقونو یا هم هوټل یا بل ځای کې اوسېدل، له هغوی پرته یواځې هغه

علماء چې د غونډې د منتظمینو له خوا یې نومونه ثبت شوي وو، تعداد یې د څوارلس-پینځلس سوو تنو ترمینځ و.

په غونډه کې د عالي شورا له غړونه مولوي احسان الله احسان، ملا محمد رباني، ملا بورجان، ملانورالدین ترابي، مولوي وکیل احمد متوکل، او یو څو نورو غړو هم ګډون درلود.

د غونډې پای کې علماوو د برهان الدین رباني واکمني په هېواد کې د نه حاکمیت او پر پاټک سالارانو د نه تسلط له امله غیرمشروع وګڼله. استاد رباني یې واجب العزل اعلان کړ او په زور یې د هغه د ګوښه کولو فتوی ورکړه. دغه اعلان او د امیرالمومنین لقب په مطبوعاتو کې د مخالفینو غوغا راپورته کړه.

له غونډې وروسته د عالي شورا له خوا علماوو ته هغه فورمې توزیع شوې چې په کې د مختلفو چارو په اړه له علماوو نه هدایات او مشورې غوښتل شوي وې. همداراز له علماوو نه د عامو مشورو غوښتنه هم شوې وه. څلورمه ورځ موږ فورمې په بوجیو کې راوړې، ځکه ډېرې زیاتې وې او د دې لیکلو هدایاتو او مشورو د بررسۍ لپاره یوه کمېټه هم وټاکل شوه، چې دغه هدایات یو یو ولوستل شي.

د دې غونډې له برخه‌والو علماوو نه د څو علماوو نومونه چې زما په حافظه کې پاتې دي، د بېلګې په توګه یې راوړم:

کندهار: شیخ الحدیث مولوي عبدالعلي دیوبندي، قاضي مولوي سید محمد( مولوي پاسنی) شیخ التفسیر مولوي عبدالسلام، مولوي عبدالودود، ثاني مولوي عبیدالله، مولوي غلام حیدر، شیخ الحدیث مولوي عبدالحکیم، شیخ الحدیث مولوي عبدالغني، مولوي عزیزالله، مولوي سدوزی.

هلمند: مولوي محمد خواص، مولوي عبدالروف، مولوي عبدالواحد، مولوي محمد، مولوي مطيع الله.

زابل: مولوي عبدالغفور سناني، مولوي عنايت الله غبرګوي، مولوي سيف الرحمن اخنداده، مولوي محمد نعمان او لسګونه نور

غزنی: مولوي محمد ابصر، مولوي حيات الله (کاکا)، مولوي عبدالباري، مولوي فيض الله، مولوي عبدالستار، مولوي رضاخان، مولوي عبدالبصير(ريس)، مولوي علم ګل، مولوي محمد غيور، مفتي رحمت الله ديوبندي.

ميدان: يوسف خېلو اخنداده صيب، مولوي رفيع الله موذن، مولوي محمد ملوک.

کابل: شيخ الحديث مولوي تره خېل، مولوي نورمحمد ثاقب، مولوي احمدالله، مولوي عبدالله جان، مولوي عبدالقدوس.

پکتيکا: مولوي حميدالله فايض، مولوي محمد فريد محمود، مولوي محمد يعقوب، مولوي محمد عمر، مولوي راز محمد.

پکتيا: مولوي خليل الله فيروزي، مولوي فضل الرحمن، مولوي حمدالله نقشبندي، مولوي اعظم ګل.

خوست: مولوي عبيدالله صبری، مولوي سيد وسيم، مولوي عبدالرحيم بلالي، مولوي عاقل محمد ځنيخيل.

لوګر: مولوي موسی جان، مولوي فضل احمد، مولوي محمد مير، شيخ الحديث مولوي محمدنعيم، مولوي محمد صادق، مولوي فرقاني، مولوي شهاب الدين دلاور.

**ننگرهار: مولوي عبدالقادر، مولوي قاري محمود شاه، قاري الهام الدين، مولوي عبدالرشيد، مولوي عبدالباقي، مولوي سيد رسول.**

**کنړ: شيخ عبدالقادر اسعد ابادي، مولوي نورجلال.**

**لغمان: مولوي سعيدالرحمن**

**هرات: مولوي خدای داد، مولوي جليل الله مولوي زاده، حسن وثيقي (داهل تشيع يوتن عالم)**

**فارياب: مولوي عبدالرحمن**

**بلخ: مولوي عبدالصمد**

**فراه: مولوي نجيب الله**

**کندوز: د ګجرو اخندزاده صيب**

**بغلان: مولوي محمد مسلم**

**باميان: مولوي محمداسلام**

**دا هغه نومونه دي چې زما په حافظه کې تر اوسه پاتې وو. په دې غونډه کې د هېواد د ټولو برخو جيدو او نامتو علماوو ګډون کړی و.**

**په جنوب کې د حکمتيار له پلويانو سره بيا نښتې**

**په تېر ژمي کې د پکتيکا په ارګون او سروبي کي د حکمتيار له مهم قومندان خالد فاروقي سره جګړه وشوه. هغه ماتي وخوړه له هغه وروسته په پکتياکې د مولوي محمديونس خالص د اسلامي حزب قوماندان "پري ځدراڼ" سره جګړه وشوه. هغه وتښتېد وسله او مهمات يې طالبانوته په لاس ورغلل. د طالبانو**

ځواکونو د ملابورجان په مشرۍ په ځاځیو کې د سیاف د وسلو ډیپوګان او په سپینه شګه کې د حکمتیار مرکز او وسایل ترلاسه کړل. د حکمتیار او سیاف له مرکزونو ډېره زیاته اندازه وسله ترلاسه شوه، چې په غرونو کې ځای پر ځای شوې وه. له سپینې شګې د حکمتیار هغه د چاپ ماشین هم ترلاسه شو، چې حزب اسلامي غوښتل خپلې افغانۍ کرنسۍ پرې چاپ کړي، ځکه دا وخت دوه ډوله نورې افغانۍ هم چلېدې، چې یو د رباني د رژیم له خوا روسیه کې چاپېدې اوبل یې د دوستم له خوا چاپیدې چې جنبشي پیسې بلل کیدې، نو ځکه حکمتیار هم غوښتل خپلې جعلي پیسې چاپ کړي.

د کابل د نېولو لپاره د ملابورجان اخند ستراتیژي خورا بریالۍ وه. نوموړي دښمن په خورا پراخه سیمه کې په جګړه کې ښکېل کړ، په پای کې یې دې ته وادار کړ چې په هر استقامت شکست ومني. هغه خپله د پکتیا له مرکز ګردېز څخه حرکت پیل کړ. د میرزکه او ځاځي احمدخیل ولسوالۍ یې تصفیه کړې چې تردې مهاله د سیاف او حکمتیار د کسانو په لاس کې وې. ورپسې یې ځاځي اریوب او سپینه شګه ونیول او له هغه ځایه دلوګر په ازره او حصارک ورغلل.

د ملا بورجان په مشري ځواکونو د خپلو عملیاتو په پیل کې د پکتیا او خوست په هغو سرحدي او غرنیو سیمو کې چې د ښاغلي حکمتیار، سیاف او نورو تنظیمونو وړو یاغي قوماندانانو پرېښودې وې، تصفیوي عملیات وکړل چې له امله یې په پراخه کچه وسله او مهمات ترلاسه کړل. د دولت او حکمتیار ترمینځ د پاکستان د جماعت اسلامي د مشر قاضي حسین احمد په مینځګړتوب مذاکرت پیل شول چې د می په میاشت کې د غو مذاکراتو رنګ راووړ او د می د میاشتې په په ۲۴مه د رباني حکومت او حکمتیار ترمینځ د ګډ حکومت او اتحاد تړون لاسلیک شو. له څلور کاله مخالفته او د لسګونو زرو

افرادو له وژولو وروسته ښاغلي حکمتيار يو ځل بيا د رباني تر مشرۍ لاندې حکومت کې د ګډون فيصله وکړه.

**حکمتيار مخ پر کابل، طالبان مخ پرننګرهار**

۱۹۹٦ کال د می د مياشتې په ۲۴مه د پاکستان د جماعت اسلامي د ګوند مشر قاضي حسين احمد په مينځګړتوب د حکمتيار او رباني ترمينځ د روغې او د طالبانو پر ضد د اتحاد تړون امضاء شو. حکمتيار ته پرته له کومه امتيازه هم هغه زړه دنده ورکول شوه چې هغه اول نه وه منلې او په مخالفت کې يې نږدې درې کاله له مسعود سره خونړۍ جګړې وکړې چې تقريبا د کابل ښارپنځوس زره عام ښاريان په کې قربانيان شول. دا مهال بېرته هم هغه مسعود ته څلور کاله وروسته کابل ته ور روان شو، په دا سې حال کې چې رباني يې د واکدار جمهور رييس او مسعود يې د دفاع وزير په توګه ومنل.

د جون د مياشتې په ۲٦مه حکمتيار د موټرو په يوه ستر کاروان کې د سروبي له لارې کابل ته روان شو، چې پلويانو يې تر کابله فاتحانه شعارونه ورکول. د کابل په دولتي هوټلونو کې څو هفتې د حزب د مېلمه کاروان مسافرو اړولي وو. د جولای د مياشتې په لومړيو کې حکمتيا رته د منل شويو څو وزارتونو وزيرانو د وزارت لوړې وکړې.

دا وخت د مشرقي شورا په مشرۍ د ننګرهار له والي حاجي عبدالقديرسره د رباني حکومت خبرې روانې وې چې له مرکزي دولت سره يو ځای شي او د طالبانو پر ضد د کابل او نږدې ولايتونو دفاع وکړي. دا وخت د کابل په دوو مهمو دروازو کې -د لوګر له پلوه چاراسياب او د ميدان وردګو له طرفه د ميدان ښار په حدودو کې د طالبانو نظامي ځواکونه ځای پرځای وو، خو يواځينۍ لار د کابل-جلال اباد وه چې د رباني او حکمتيار له اتحاده وروسته تر سروبي پورې له

دولت سره وه. په سروبي کې د حزب اسلامي قوماندان زرداد و او بیا تر جلال اباده  لویه لاره له مشرقي شورا سره وه.

طالبانو د ملا بورجان په مشرۍ د جنوبي سیمو له تصفیې وروسته مشرقي سیمو ته پام واړاوه. دا وخت له یوې خوا د حکمتیار او مسعود له اتحاده وروسته له سروبي نه تر ننګرهاره سیمه د دولت اکمالاتي او ستراتیژیکه سیمه شوه، له بله پلوه د مشرقي ځینې قوماندانان له دولت سره په تماس کې وو، خو ځینې مهم قوماندانان بیا له طالبانو سره په تماس کې وو او ننګرهار ته یې نه یوازې د طالبانو پټ هرکلی کاوه، بلکې د مرستې ډاډ یې هم ورکاوه، ځکه هغوی هم د ننګرهار او ټول مشرقي له یو درجن پاچاهیو او بدمعاشیو تر پوزې راغلي وو.

طالبان له یوې خوا له مشرقی نه په وېره کې وو او له بلې خوا د کابل د محاصرې لپاره مشرقي لور ته پرمختګ ورته اړین ښکارېده. په لوګر کې د ملابورجان په مشرۍ د جلال اباد لپاره لښکر تیار شو او د حاجي قدیر او ملګرو له خوا زرکسیزه ځواک حصارک کې د دې لپاره ځای پرځای شو چې د لوګر له ازرې د ورتلونکو طالبانو سره جګړه وکړي.

دا وخت د حاجي قدیر کورنۍ پر مولوي محمد یونس خالص زور راوړ، چې پر طالبانو له خپل جهادي نفوذه کار واخلي، چې د ننګرهار خوا ته رانه شي. مولوي صیب ته یې دا ذهنیت ورکړی و، چې که هغوی ننګرهار ته راشي نو ښار کې به زیاته خونریزي وشي. بناء د ستمبر د میاشتې په نیمایي کې موږ کندهار کې وو، چې د ملا محمد عمر دفتر ته د مولوي محمدیونس خالص مرحوم لیک راغي چې لیکلي یې وو، که د ننګرهار پر لور طالبان پرمختګ وکړي، د ناوړه عواقبو مسئولیت به یې پر خپله غاړه وي، خو مشرتابه پوهېده چې دا د حاجي قدیر او دین محمد فرمایش دی.

خو بیا وروسته څرګنده شوه چې مرحوم مولوي خالص د خپلو دوو مشاورینو په واسطه طالبانو ته ننګرهار ته د ورتللو دعوت ورکړی و.

طالبان د لوګر له خوا د ملا بورجان په مشرۍ د ازرې په سیمه کې حصارک ته خپل ستر پوځي کاروان په محتاط ډول روان کړ. شپه پر لار په دوهمه ورځ په حصارک کې د ننګرهار له منتظره زرکسیزې قطعې سره مخ شول.خو د قطعي مشر له طالبانو سره په اړیکه کې و، طالبانو ته یې لاره ورکړه. د ستمبر په ۱۰مه د مشرقي شورا د قوماندانانو د موټرو یو لوی قطار د تورخم او جلال اباد ترمینځ د قوماندان شمالی خان د ورور "منجي " له خوا په دا سي حال کې تر برید لاندې راغی، چې تورخم ته روان وو، منجي او ډلې یو ناڅاپه برید پرې وکړ او په بې رحمانه ډول یې شهیدان کړل. په دې کې د انجینر محمود او سازنور په ګډون یو شمېر قوماندانان او د هغوی افراد وو، چې له طالبانو سره یې لا له وړاندې اړیکه وه. له بریده وروسته منجي پاکستان ته وتښتېد.

له پکتیا نه د طاالبانو دغه فاتحانه عملیات د ملا بورجان په جنګي قومانده او د ملا محمد رباني په طرحه اوپلان ترجلال اباده پرمخ روان و، دلته هم د هرات د فتح په څیر ملا محمد رباني د جنګي پلان ګذاري اصلي طراح و. ملابورجان د کاروان په مخکي د قومندان په حیث خو ملارباني د کاروان ترشا د نظم، ظبط او اکمال چارې پرمخ وړلې او د هر نوي برید د پلان طرح هم د ده په هدایت جوړیده.

طالبان د ستمبرپه ۱۱مه د جلال اباد ښار ته ننوتل. د جلال اباد ښار له هر ډول جنګ جګړې پرته په ارامه د طالبانو تر واک لاندې راغی. د طالبانو لښکرې د کونړ او لغمان مرکزونو ته پسې وخوځیدې، هلته هم مقاومت ونه شو. خلکو طالبان استقبال کړل او طالبانو هر وسلّه‌وال د وسلې له تسلمولو وروسته وباښه، خو وسله عامو او کشرانو طالبانو ته خورا مهمه وه. کنړ ته په ننوتلو د

کونړ د اسعد اباد ښار په مینځ کې قومندان ملک زرین د دوو بې ږیرو هلکانو مینځ کې روان و. پر اوږه یې روسي کیرینکوف (کلاشنکوف ته ورته روسی وسله) و. یو ځوانکي طالب ته یې ملګري ورغږ کړ. محمدانشا! هغه ده، هغه ټوپک چې ستا خوښېده! د ټوپکي قوماندان غاړه کې ده. دغه زلموټی طالب پر ځان پوه نه شو او پر ملک زرین یې ورټوپ کړل اوله غاړې نه یې په یوه برید ټوپک وویست. د قوماندان بې ږیرې ماشومان هم له وېرې وتښتېدل. د ملک صیب موډ خراب شو او ملابورجان ته په شکایت راغی. ملا بورجان ځوانکي طالب ته وویل "کیرینکوف" بېرته راکه په مقابل کې یې پیسې واخله. طالب امر ومانه خو پیسې یې قبولې نه کړې او په مروره لهجه یې وویل دا مې خپل غنیمت و. په اخیرت به یې پوښتنه کوم.

قافله روانه شوه خو چې سبا طالبان له لغمانه د سروبي پر لور کوزېدل. ملا بورجان کاروان ودراوه. او په موټرو ګرځېده چې هغه طالب پیدا کړي چې پرون یې د قیامت اخطار ورکړی و. اخیر یې طالب پیدا کړ. ورته ویې ویل ستا خبره خو ماته ګورم (اندېښنه) اچولای، وایه په څه مي ببښې؟ همدا ټوپک بل در پیداکړم او که که نقدي تاوان؟ طالب خجالت شو ورته ویې ویل، دا تاسو چې ما پسې راغلئ دا زما لپاره هر څه دي ما درببښلی.

د ننګرهار له نیولو وروسته په کندهار کې د مشرتابه دفتر د ننګرهار لپاره د والي په توګه د مولوي محمد طاهر انوري په نوم مکتوب تیار کړ، خو طاهر انوري چې په حاجي مدیر یې شهرت درلود، د دې کار له قبلولو انکار وکړ او دلیل یې دا وایه چې دا یوه پیچیده دنده ده، دی یې وړتیا نه لري. ملا محمد عمر په غوسه شو چې زه دې وړ ګڼم او د امیر په حیث امر درته کوم، انوري وویل په دې ځایي کې ما معذور وګڼه.

مولوي محمد طاهر انوري د پکتیا د زرمت اوسېدونکي و او له شهید مولوي نصرالله منصور سره نږدې پاتې شوی و. کله چې مولوي نصرالله منصور د پکتیا والي و دا وخت انوري د ګارنیزون مدیر و، چې له همدې امله په طالبانو کې په مدیرصیب مشهور و. انوري زاهد او عابد سړی و، ساده لباس او ژوند یې خوښاوه. له واکمنۍ اومسولیت سره یې نه لګېده، خو بیا هم د کابل له نیولو وروسته د مشر په تاکید د اداره امور مشر شو. له هغه وروسته د څه وخت لپاره د مالیې وزیر و او اخیر کې د پلان وزیر شو. انوري له علمي استعداد سره سره په اداري کارونو کې پوهه او تجربه هم لرله.

د طاهر انوري له انکار اوعذر غوښتلو وروسته د لوګر والي مولوي عبدالکبیر د ننګرهار د والي په توګه غوره شو. او لوګر کې مولوي عبدالحکیم والي وټاکل شو، چې بیا وروسته مولوي عبدالکبیر د ننګرهار د والي ترڅنګ د ختیځ زون تنظیمه رییس هم شو او اخیر کې د امارت تر سقوطه د ننګرهار والي، ختیځ زون تنظیمه رییس او وزیرانو شورا مرستیال پاتې شو چې له ملا محمد عمر نه وروسته په مقتدر ترینو چارواکو کې راته او ملا محمد عمر ته ډېر زیات باوري و.

# درییم څپرکی

**د کابل فتح۲٦ستمبر**

**د لغمان په دوه لارې سرخکان کې د حزب او شورای نظار د متحدو ځواکونو له ماتې وروسته، طالبان د ملابورجان په مشرۍ له لغمانه د سروبي لور ته لاړل. پر سروبې د عملیاتو له پیل سره د طالبانو ستر پوځي قوماندان ملابورجان د متحدو قواوو د یوه ۸۲ملي متري توپ په ګولۍ ولګېد او شهید شو. طالبان د دې لپاره چې دښمن مورال پیدا نه کړي د ملابورجان د شهادت خبر یې له عامه خپراوي او میډیا نه د کابل تر نیولو پورې پټ وساته. ملا محمد عمر د ملابورجان پرشهادت دومره ودردید چې دکابل لور ته پرمختګ یې هم دغه خپګان کم نکړای شو، دا له ملا محمد اخوند نه وروسته دوهم ستر قوماندان و چې مرګ یې پرملا محمد عمر ډیر دروند و.**

**دا وخت چې طالبان له څلورو لوریو کابل ته ګوابښ شول، د مسعود او حکمتیار متحدو قواوو سخت روحیات له لاسه ورکړل. طالبان د میدان‌ښار له لوري پر کابل برید ته له وړاندې لا تیار وو. همداراز د چاراسیاب له لوري، ورسره د ازرې له خوا د کابل لور ته څه قوه روانه شوه. په سروبې کې  متحدو قواوو له پرله‌پسې سخت مقاومت نه وروسته پښې ټینګې نه کړای شوای او ۲۵م ستمبر یعنې د جلال اباد له نیولوڅوارلس ورځې وروسته د سروبي ولسوالۍ د**

طالبانو تر واک لاندې راغله. له متحدو قواوو زيات شمېر وسله اوعرادهجات پاتې شول. دې سره پر کابل له څلورو خواوو عمليات پيل شول. د مسعود ځواکونو د طالبانو د يوې مياشتې پرلهپسې پرمختگونو له امله د جنگ روحيه بايللې وه. مسلسل تعرض د مسعود تاکتيکي هنر گډوډ کړ او د نوي پلان جوړولو فرصت يې نه شو موندلای.

د طالبانو لښکرې د نويو پرلپسي پرمختگونو او د وينو له بهېدو پرته د درېوو مشرقي ولاياتو فتحو په رواني لحاظ پر ځان باوري کړي وو. د سيمې د خلکو پراخ ملاتړ او په کابل کې د عامو خلکو هرکلي، د مسعود او متحدانو روحيات نورهم وځپل. پر کابل له څلور اړخيزو پرلهپسې بريدونو نه وروسته چې د ستمبر له ۲۵مه پيل شو او د۲٦م تر ماښامه په پرلهپسې ډول روان وو، مسعود او پلويانو يې په ښار کې د نور مقاومت چانس کم وگاڼه او د ۲٦ م ستمبر په شپه کې يې خپل پوځې قطعات د شمال لور ته له کابله ويستل. دغه تېښته کې د هغوی مسئولين او قوماندانان په ډېره وارخطايۍ له کابله وتښتېدل چې د سيمې د خلکو له قوله ډېرو يې په پنچرو ټايرونو او لغړو ويلانو موټرونه زغلول.

د کابل په شمالي کې ځينې ځايي خلکو له کابل نه تښتېدونکو پنجشيريانو ته لاره نيوله او د هغوی کورنۍ يې لوټلې. مسعود او قوماندانان يې لومړی وتلي وو. سياف، حکمتيار او رباني وروسته وتلي وو، چې بيا په پنجشير دره کې سره يو ځای شوي وو. کله چې طالبان د پنجشير خولې ته ورسېدل نو رباني، حکمتيار او يو شمېر نور زاړه چارواکي تاجکستان ته لاړل.

د ستمبر په۲٦ مه نيمه شپه کې طالبان کابل ته د ننه شول او د ۲۷م په سهار يې نجيب له وژلو وروسته پر اريانا چوک را ځوړند کړ.د کابل ښاريانو له اوږدو جگړو وروسته په لومړي ځل د کابل فضا ارامه احساس کړه، چې له همدې امله يې طالبانو ته خوشحالي کوله او د ښار په ځينې برخو کې خلگو پر طالبانو

ګلونه وشیندل. د نجیب د وژلو مشوره کابل ته تر داخلېدو وړاندې شوې وه چې ملاعبدالرزاق، ملا یارانه، عبدالسلام راکټي او یو شمېر نور قوماندانان په دې مشوره کې وو. دوی فکر کاوه که نجیب پرېږدي، ښایي نړۍوال اوسیمه‌ییز فشارونه یې ترې وژغوري، چې دا به د ملت د یو ستر قاتل ژغورل وي. طالبانو د نجیب په اړه دا دریځ لاره چې هغه د پردي یرغل په چوپړ کې د خاد درئیس په توګه لسګونه زره مسلمان افغانان په خپله خوښه او پریکړه وژلې چې له امله یې هغه د مسلمان ملت یو بربنډ قاتل دی، کنه طالبانو د خپل تحریک په دښمني اسیران نه اعدامول. تورن اسماعیل خان په مخامخ جګړه کې تر زرو تنو زیات طالبان وژلي وو، خو طالبانو د اسارت پروخت کله هم د هغه د اعدام او مرګ اراده نه دې کړې، بلکې تر دریو کالو د طالبانو په زندان کې هغه په موقت ډول اسیر و، ځکه چې اسماعیل د طالبانو مخالف و، خو ملي قاتل نه و!

طالبانو په کابل کې د ملګرو ملتونو له دفتره د نجیب د راوستلو لپاره طالبان موظف کړل. نجیب یې را وویست، لاره کې یې په توپانچه باندې وواژه او بیا یې پر اریانا څلورلارې ځوړند کړ.

### د کابل سوبه، د طالب واکمني او نړۍوال غبرګونونه

د کابل له نیولو یوه ورځ وروسته د ملا محمد عمر له خوا د کابل واک د ملا محمد رباني په مشري شپږ کسیزې شورا ته وسپارل شو چې په دې کې ملا محمدحسن، ملاعبدالرزاق، سیدغیاث الدین اغا، ملا محمدغوث اوملا عبیدالله وو.

ملا محمد رباني د نوې ادارې د مشر په توګه په کابل کې د لومړي مطبوعاتي غونډې په وړاندي په لنډ ډول د خپل نظام پالیسي اعلان کړه. په دې کې د مکمل اسلامي نظام نفاذ، په نړۍ کې د افغانستان له سفارتونو او کونسلګریو د پخواني رژیم سفیران شړل، د ځان او وسلې د سپارلو په صورت کې

مخالفينو ته عمومي ببښنه، د عمومي لارو خلاصول، د نجيب او ورور د اعدام دفاع، ظاهر شاه ته د يوه افغان په توګه د راتلو هرکلی، له دوستم سره د سوله‌ييزو خبرو اعلان او دې ته ورته خبرې وې.

دوه ورځې وروسته اکثر هغه رئيسان چې په کندهار کې وو کابل ته د سرپرستو وزيرانو په توګه واستول شول او د خپلو ادارو بندې دروازې يې پرانيستې.

د کندهار د اطلاعاتو اوکلتور رئيس ملا اميرخان متقي د اطلاعاتو او کلتور سرپرست وزير په توګه. په کندهار کې د خارجه ارتباط مسئول ملا محمد غوث د خارجه وزارت سرپرست په توګه. د کندهار ولايت اداري رئيس مولوي محمد طاهر انوري د چارو د ادارې د مشر په توګه. د کندهار د اوقافو رئيس مولوي عبدالشکور د اوقافو د سرپرست وزير په توګه. د کندهار د مخابراتو رييس ملا الله داد د مخابراتو د سرپرست وزير په توګه. د کندهار د قول اردو قوماندان ملا عبيدالله د دفاع د سرپرست وزير په توګه. دعالي تحصيلاتو رئيس مولوي حمدالله نعماني د لوړو زدکړو د سرپرست وزير په توګه. د کندهار د استخباراتو رئيس ملا خاکسار د استخباراتو د سرپرست وزير په توګه، خو د وخت په تېرېدو نوي بدلونه راغلل او په ډېرو وزارتونو او معينيتونو کې نوي کسان مقررشول. لکه قاري احمدالله (غزني) داخله وزير، مولوي محمد طاهر انوري (پکتيا) ماليه وزير، قاري دين محمد حنيف (بدخشان) د پلان وزير، مولوي عبدالرقيب (تخار) د مهاجرينو وزير، مولوي عبدالباقي (ننګرهار) د شهيدانو اومعلولينو وزير، مولوي رستم (لغمان) د شهرسازۍ وزير،مخدوم عبدالسلام (بدخشان) دکار او اجتماعي امورو وزير، بوکس وهونکي عبدالشکور مطمئن (کابل پغمان) د اولمپيک د عمومي کميټې رئيس او داسې نور...

اول کې عامه روحیه دا وه چې دا واړه وزیران موقتي او سرپرست دي. د هېواد له مکمل کنټرول نه وروسته به وزیران د نوې ادارې د پالیسۍ له مخې ټاکل کیږي، چې په هغو کې به د طالب غورځنګ پخوانی غړیتوب شرط نه وي. وروسته د داخلي جګړې اوږدوالي او نړۍوالو ستونزو دا امکانات کم کړل.

ملا محمد رباني د سرپرستو وزیرانو د شورا مشر و، چې د سرپرستۍ شورا مشر به یې باله. د طالبانو نوې سرپرسته کابینه ټوله له طالبانو جوړه وه، خو مرستیالان، مشاورین او اداري چارواکي او مامورین یې اکثره د زاړه نظامونو مسلکي خلک ورسره مقرر کړل. له همدې امله هغوی ته اداري او مسلکي ستونزې ډېرې نه پېښېدې.

د کابل له نیولو سره د سیمې او نړۍ نبغ نظر د هېواد نوي حکومت ته واوښت. په رسنیو کې خپاره شوي ځیني مهم نړۍوال او سیمه‌ییز غبرګونونه په لاندې ډول وو:

د کابل د نیولو په لومړۍ ورځ د روسیې د بهرنیو چارو وزارت اعلامیه خپره کړه. په اعلامیه کې راغلي وو چې د کابل سقوط د افغانستان مسئله نوره هم پېچلې کړه، ملګري ملتونه دي طالبان یوه پراخ بنسټه حکومت ته وهڅوي.

د کابل د فتحې په دوهمه ورځ د امریکا د بهرنیو چارو د وزارت ویاند له ویس اف امریکا سره په مرکې کې وویل: واشنګټن د نجیب په دارول د خواښیني وړ عمل ګڼي. طالبان دې د ملي روغې جوړې لار خپله کړي. دوی دې د مخدره موادو د قاچاق او د وران کارو د ټریننګ د مرکزونو مخنیوی وکړي. د رسمیت پېژندلو خبره لا تر وخت مخکې ده، خو امریکا دا فغانستان په بیا ودانولو کې مرستو ته ژمنه ده.

په همدې ورځ د ملګرو ملتونو د امنيت شورا په يوه خپره شوې اعلاميه کې د نجيب اعدام غندل شوی و او د جنګ له دواړو غاړو نه د جګړې پر ځای د خبرو غوښتنه شوې وه او له نورو هېوادونو يې د افغانستان په چارو کې د نه مداخلې غوښتنه کړې وه.

په همدې ورځ د بښنې نړۍوال سازمان (ايمنسټي انټرنيشنل) د نجيب وژل په يوه اعلاميه کې وغندل.

تاجکستان، ازبکستان او قازاقستان د طالبانو واکمني د تشويش وړ وګڼله. ترکمنستان بې لوري دريځ اعلان کړ او طالبان يې د خپل هېواد لپاره بې خطره وګڼل. ترکيې د بې طرفه دريځ له نيولو سره سره د طالبانو او مخالفينو ترمينځ د سوله‌ييزو خبرو د کوربه‌توب وړانديزهم وکړ.

ايران د طالبانو راتګ او واکمني په سختو الفاظو وغندله. پاکستان مثبت دريځ اعلان کړ او ترڅنګ يې د طالبانو او مخالفينو د روغې ملاتړ او همکاري هم اعلان کړه. سعودي عربستان او خليجي هېوادونو پاکستان ته ورته دريځ درلود. د پاکستان اکثرو مهمو اشخاصو د خپل حکومت د دريځ ملاتړ وکړ. مولانا فضل الرحمن د پاکستان له حکومته د طالبانو د حکومت د رسميت پېژندلو غوښتنه وکړه. هغه د پاکستان جنګ ورځپاڼې ته وويل که امريکا د طالبانو د حکومت په مخ کې خنډ جوړ کړي، د ټولې اسلامي نړۍ اسلامي غورځنګونه به د امريکا پر ضد لاس يو کړي. د جماعت اسلامي مشر قاضي حسين احمد سوړ غبرګون وښود او په طالبانو يې نيوکې وکړې، چې ښايي له رباني او حکمتيار سره د دوستانه اړيکو له امله وې.

د افغانستان په جهادي مشرانو کې مولوي محمدنبي محمدي او مولوي محمد يونس خالص د نجيب د اعدام هرکلی وکړ او پر ولس يې د طالبانو د اسلامي حکومت د ملاتړ غږ وکړ. پير سيداحمد ګيلاني د نجيب مرګ سم وګاڼه خو

زیاته یې کړه چې باید له محکمې وروسته اعدام شوی وای. ښاغلي ګیلانی وویل طالبان د ولس په مرسته واک ته ورسېدل اوس باید د ملګرو ملتو په مرسته یوه ممثله جرګه را وغواړي.

حکمتیار د اکتوبر په څلورمه له امریکا غږ سره په مرکه کې وویل طالبان د انګرېز غلامان دي او د امریکا خلک دي. موږ له دوی سره په کابل کې سم جنګ نه دی کړی، موږ به هغوی ډېر ژر له کابله وشړو.

د اکتوبر په لسمه پخواني واکمن برهان الدین رباني د تخار له مرکز تالقان نه له بي بي سي پښتو سره په مرکه کې طالبان د پاکستان لاس پوڅې وګڼل او دعوه یې وکړه چې که زه په واک پاتې وای، ما به عام انتخابات تر سره کړي وای. په داسې حال کې چې رباني د اهل الحل والعقد په نامه له یوې مصنوعي شورا د دایمي مشرتوب جواز پیدا کړی و او د واک پرېښودو کومه سوله‌ییزه اراده یې نه لرله.

د کابل شمال ته د طالبانو تېز پرمختګ

د کابل نیولو نه یو ورځ وروسته طالبان په پروان کې له مخالفینو سره مخ شول. له لنډې جګړې وروسته هغوی پنجشېر ته وتښتېدل. د ستمبر په دېرشمه طالبانو د جبل السراج په ګډون د سالنګ تر تونله ټوله سیمه تر واک لاندې راوسته او د ګلبهار بازار له نیولو وروسته د پنجشېر درې خولې ته ورسېدل. دا وخت طالبانو پنجشېر ته د ننوتلو پر ځای د سالنګ طرف ته توجه وکړه چې د بغلان، پلخمري، کندوز او تخار لور ته پرمختګ وکړي. د سالنګ ها غاړې ته د دوستم ځواکونه پراته وو. طالبانو هغوی ته خبر ورکړ چې موږ ته لار راکړئ، خو هغوی لار ورنه کړه او طالبانو نه غوښتل له دوستم سره جګړه پیل کړي.

که په همدې ورځ طالبانو د پنجشېر لور ته پرمختګ روان ساتلای وای، نو ښايي د مسعود مورال بايللي جنګيالي نه وای ټينګ شوي. د وخت په تېرېدو مسعود له يوې خوا د پنجشېر درې خوله په سترو کاڼو بنده کړه چې له غره يې را رغړولي وو او د طالبانو موټرو نه شوای کولای چې درې ته ننوځي. بل پلو يې د کابل په شمالي کې د طالبانو پر ضد چريکي جګړه ترتيب کړه چې د خلکو له کورونو، باغونو او فصلونو د طالبانو پر روانو کارانونو يو ناڅاپه بريدونه وکړي او د هغوی ترمينځ د وصل په له مينځه وړلو د هغوی لوی شمېر محاصره کړي.

د اکتوبر په پينځمه طالبان د پنجشېر درې ته دننه شول خو وړاندې لار د عبور قابله نه وه او مسعود په ځان پورې بنده کړې وه. د غرونو له سرونو د مسعود جنګاليو له خوا د سترو وسلو ګذارونه هم روان وو، له دې سره سره بيا هم طالبانو په هرحال درې ته ننوتل غوښتل.

د مسعود سرګروپانو په شمالي کې د جبل السراج او ورسره سيمو کې د طالبانوله غفلته په استفادې د اکتوبر په اتمه ناڅاپي بريدونه پيل کړل. طالبان په سيمه او اراضي کې نابلده وو او دغسی عمل يې نه وو اټکل کړی، نو ځکه يې قواوې دوه ځايه شوې او ترمينځ يې د مسعود وسلهوال ننوتل، چې د خلکو له باغونو او کورونو يې زيات شمېر طالبان په نښه کړل. طالبانو په مقابلو ډزو کې کورونه نه شوای په نښه کولای. ډېر طالبان ټپيان او لوی شمير ژوندي د مسعود ځواکونو ته په لاس ورغلل. د وخت په تېرېدو د مسعود د پلويانو له خوا د طالبانو له ساده رويې نه ګټه پورته شوه او د شمالي په خلکو کې د قومي تعصب تبليغ وشو. رنګارنګ تبليغاتو دغه سيمه د طالبانو پر ضد مسعودته نږدې کړه. په داسې حال کې چې د کابل شمالي سيمه کې تر پنجشېره پراته خلک له دې نه وړاندې د جهاد په وخت د مسعود د ډېرو مخالفو قوماندانو پلويان وو او مسعود په کې ډېر کم نفوذ درلود، آن چې له کابله د مسعود له

تبنتېدونکو پلویانو نه د شمالي خلکو موټرې او مالونه په زور ګرځول. تر ټولو بده دا چې له زنانه‌وو یې په زور زېورات خلاصول، خو اوس دلته یوه دستوري قومي نغاره غږول شوې وه. د خلکو ذهنیت سرچپه و. په مقابل کې طالبانو د هیڅ مثبت تبلیغ او ذهن سازۍ هڅه ونه کړه او دوی فکر کاوه چې د دې سیمې خلک به هم د نور افغانستان په څېر زموږ له عملي کړو وړو موږ وپېژني او هرکلی به مو وکړي.

دلته دومره دعوت او سپیناوي ته اړتیا وه چې د خلکو زړه ته لوېدلې وای چې طالب رښتیاهم په کوم قوم پورې اړه نه لري او نه قومي تعصب ته اهمیت ورکوي. د دې سیمې مجاهدین او علماء یې مخ ته کړي وای، بلکې د سیمي واک یې هغوی ته پرېښی وای.

وروسته ورو ورو حالات دومره خراب شول چې بار بار د خلکو له باغونو او کورونو برېدونو طالبان هم د سیمې پر خلکو بدګمانه کړل او په څو میاشتو کې څو ځله دغې سیمې د مسعود او طالبانو ترمینځ تبادله شوې. د جګړې کټلو جذبې طالبان د باغونو سوځولو او د ځینې سیمو د خلکو جبري جلا وطنۍ ته اړ کړل چې دا نو بیا یو ناورین او شرماوره معضله وګرځېده.

د شوروي ضد جهاد په دوران کې د نور افغانستان په څېر په دغه سیمه کې هم د ژبې او قوم تعصب نه و، د دې سیمې خلکو په ډېره مېړانه او متانت جهاد وکړ او د کابل کمونیستي رژیم یې په خپلو ګذارونو لړزولی و.د پنشیر له څنډو د کابل ښار تر دروازو جنګیدونکي زړور او مشهور قوماندانان او جهادي څیرې هغه تاجکان وو چې د مسعود مخالف وو او اکثره یې د حکمتیار په مشري له اسلامي حزب سره تړلي وو لکه: د سالنګ صوفي پاینده، استاد صبور فرید، د پروان استاد فتح محمد، د جبل سراج انجینر طارق، د پروان الماس، د قرباغ کریم، د کلکان حاجي داود، د کلکان صوفي نعیم، د میربچه

کوټ حاجي قادر او داسې نور... دا ټول تاجکان وو او د حکمتیار په مشري حزب اسلامي سره يې اړه لرله. د دې په مقابل کې ډیر پښتانه قوماندانان د رباني په مشري جمعیت اسلامي سره وو لکه: د شکر درې انور ډنګر، د فرزې صوفي رسول، د قرباغ قاري محب او د پروان قوماندان شاهین. دا ټول پښتانه قوماندانان وو خو له جمعیته سره ول. احمدشاه مسعود په دې سیمه کې د قومي تعصب زیږون د ځان ضرورت ګاڼه او د دې لپاره يې په لوی لاس کوشش وکړ چې د دې سیمې خلکوته د طالبانو لخوا زیان واوړي ترڅو په قومي تعصب له ده سره ودریږی، په مقابل کې طالبانو دغه نزاکتونه درک نکړای شول او د سیمي د خلکو په وړاندي يې له نامشروع جرائت نه کار واخیست، چې د خالق او مخلوق دواړو د ناراضي سبب شو.

### د کورنیو لېږدول او د باغونو سوځول

د کابل په شمال کې ځو ځله طالبانو د پنجشېر تر درې پرمختګ وکړ. ولې بېرته د کورونو او باغونو له مینځه پرې یو ناڅاپي بریدونه پیل شول چې له امله یې نیم محاصره او نیم شاته راغلل. په دې ډول طالبان ځو ځله له درنو تلفاتو سره مخ شول.

کله چې پوځي قوماندانانو او د دفاع وزارت مشر ملا محمد عمر ته وړاندیز وکړ چې د دې سیمو ډېر خلک د مسعود په پلوۍ کې له باغونو پر موږ حملې کوي، موږ ته اجازه راکړئ چې هغه یو شمېر باغونه چې لویې لارې ته نږدې دي او دښمن زموږ پر ضد ورنه د سنګر کار اخلي له مینځه یوسو. مشرتابه ورته ځواب کې وویل چې زه امر نه شم درکولای، خو که علما جواز درکوي نو بیا مو زه نه منع کوم.

خبره د سترې محمکې دارالافتاء او د علماوو شورا ته لاړه. هغوی مشروطه اجازه ورکړه چې که له کومه باغه ربښتیا د زیاتو تلفاتو خطر یقیني وي او تاسو پرې شاهدي ولرئ نو له مینځه یې وړلای شئ. دا فتوا هم د سترې محکمې له مشرتابه او یو ځو نورو علماوو پرته، د اکثرو علماوو له خوا تایید شوې نه وه. دفاع وزارت ته نو همدومره اجازه په کار وه، نور یې پیل پرې وکړ، خو د شمالي پر جنګې کربنه دا وخت ځینې داسې طالب مشران او قوماندانان هم وو، چې د دې کار مخالفت یې کاوه. لکه د ختیځ زون مشر او د ننګرهار والي، مولوي عبدالکبیر چې بیا وروسته د وزیرانو شورۍ مرستیال هم شو. مولوي عبدالکبیر چې له مشرقي زون نه یې له ځانه سره دوه زره جنګیالي د کابل شمال ته د جګړې لپاره راوستي وو. د دفاع وزارت له دې اقدام سره یې مخالفت وکړ.هغه کندهار ته لاړ او ملا محمد عمر ته یې وویل چې د باغونو د

سوځولو اوخلکو د شړلو حکم ستا له خوا دی؟ مشر ورته وویل چې نه! ما یواځې ملاعبیدالله ته دومره اجازه ورکړې چې له علماوو فتوا وغواړي. مولوي عبدالکبیر ورته وویل: نو بیا خو زه مکلف نه یم، ملا محمد عمر ورته وویل چې زما امر نه دی، که درته درست نه ښکاري مه یې کوه!

همدا و چې مولوي عبدالکبیر خپل کسان منع کړل او له دې وېرې چې کسان یې د چا د باغ انګور ونه خوري، خپلو جنګالیو ته یې د ملا محمد عمر په اجازه د یوه سترباغ حاصلات د شپږو یا اوو زرو ډالرو معادل افغانیو په بدل کې واخیستل چې جنګیالي یې له همدې باغه انګور وخوري.

د باغونو او ځینې کورونو سوځول داسې فاجعه وه چې نه یواځې په دې سیمه کې یې طالبانو ته پرمختګ سخت کړ، بلکې مخالفینو ته یې ډېره تبلیغاتي او پوځي مرسته ورسوله، د سیمې خلک په دې اعمالو نور هم د طالبانو پر ضد شول.

تر ټولو بده یې دا چې د طالبانو غوندې یو ولس منلي غورځنګ په لومړي ځل د عامو خلکو د شتمنۍ او عامه ژوند په وړاندې دومره ستر جرئت وکړ، چې عامو خلکو ته په کې په ډېره ناوړه توګه دروند مالي زیان واوښت.

د کورنیو د انتقال پروسه له دې نه هم لړزونکې وه. که څه هم طالبان د خلکو د عزت او دودیزو نزاکتونه په اړه د سخت دریځۍ تر بریده محافظه کار او محتاط وو، خو د کورنیو دا ډول انتقال په خپله د افغانانو په طبیعت کې یو ډول تحقیر امیزه او نادوده عمل و. له دې سره چې د یوه اسلامي غورځنګ له خوا دا یوه ښکاره ظلم و. تر شا یې ډېرو ناوړه تبلیغاتو ته هم لار هواره کړه چې په دې اړه به د طالبانو مخالف لوري ډول ډول زړه بوږنوونکې اوازې، فرضي کیسې او پروپاګند هم خپرول چې د طالبانو د سختې بدنامۍ سبب وګرځېدل.

له شکه پرته چې دا د توجیه وړ عمل نه و چې له امله یې د تحریک په مینځ کې هم ډېر مخالفین لرل. د وخت په تېرېدو له یو شو پوځي قوماندانانو پرته نور ټول تحریک ورسره ښکاره مخالفت درلود، چې اخیر کې د چارواکو له مینځه یو شمېر مهمو خلکو ملا محمد عمر ته احتجاج وکړ. لکه ملا محمد رباني، مولوي عبدالکبیر، مولوي عبدالطیف منصور، ملا امیرخان حقاني،ملا محمد گل نیازی، مولوي وکیل احمد متوکل.

کندهار ته د کابینې یو شمېر وزیرانو او پوځي قوماندانان بار بار سفرونه وکړل او له ملا محمد عمر سره یې دغه ناوړه صورت حال شریک کړ. ملا محمد عمر د دې کار اصلاح ته بډې را ووهلې او مثبت بدلونونه هم راغلل، خو دا وخت ډېر څه شوي وو. فضا او وضع دومره خرابه وه چې نور یې رغول د دوو- دریو کالو کار نه و او نه هم د دې سیمو په خلکو کې باور ترلاسه کول نور دومره اسانه وو.

له دوستم سره د جگړې پیل

د کابل له نیولو نږدې لس ورځې وروسته د اکتوبر په اوومه د مزارشریف په ښار کې د شړل شوي جمهور رئیس برهان الدین رباني او دوستم ترمینځ لیدنه وشوه او پر ایتلاف خبرې وشوې. د خبرو تر شا د ازبکستان، تاجکستان، روسیې او ایران هڅې وې، چې د طالبانو د واکمنۍ پر وړاندې درې باغي ډلې شورا نظار (جمعیت)، حزب وحدت او د دوستم ملېشه په درې گوني جنگي ایتلاف بدل کړي. له دې ملاقات نه درې ورځې وروسته د مسعود، کریم خلیلي او دوستم ترمینځ د افغانستان د دفاع د شورا په نوم د یاغي ملېشو یو بل ایتلاف اعلان شو او د خنجان په ولسوالۍ کې په دې اړه په یوه غونډه کې درې واړو لورو یو تړون امضاء کړ. له دوی سره په پلخمري کې منصور نادري او په بغلان کې د حکمتیار پلوي قوماندان بشیر بغلاني هم ملاتړ اعلان کړ.

د حکمتیار زوم غیرت بهیر مطبوعاتو ته وویل د دوی ګوند د خنجان د تړون برخه نه و او نه وربلل شوی و، نو ځکه دوی د دې ایتلاف غړي نه دي.

د اکتوبر په دیارلسمه جنرال دوستم او رباني په سالنګ کې یوه بله غونډه وکړه چې سیاف او د حزب اسلامي مشرانو هم ورکې ګډون درلود. پر کابل د یرغل لپاره یې په ټولو سره نوی هوډ څرګند کړ. په همدې ورځ د دې تړون په مخالفت کې د مسعود درې تنه قوماندانان عبدالقادر، نثار احمد او محمد نظیر له مرکزي حکومت سره یوځای شول او طالبانو یې پراخ هرکلی وکړ.

له دې نه څو ورځې وروسته د دوستم ملېشې هم د کابل په شمال کې د طالبانو پر ضد جنګي کرښه جوړه کړه او د اکتوبر پرشپږویشتمه د دوستم جیټ الوتکو د طالبانو لومړۍ جنګې کرښې بمبارکړې. په سبا یې د بادغیس په بالامرغاب ولسوالۍ کې د طالبانو پوځي مرکزونه بمبارکړل. له دې سره دوستم په دواړو جبهو کې له طالبانو سره په جګړه کې کېووت.

د متحدې جبهې (دفاع شورا) په استازیتوب قوماندان مسعود طالبانوته خبرداری ورکړ چې کابل دې خوشې کړي، که نه په زور به یې ونیسي. همدارګز یې د ملګرو ملتونو ادارې ته وړاندیز وکړ چې کابل دې غیر نظامي شي او د طالبانو، دوستم ، حزب وحدت او شورای نظار قواوې دې کابل په ګډه اداره کړي. دېرو کارپوهانو دا وړاندیز پر کابل د زړو جګړمارو ملېشو د دوبار تپلو دسیسه وګڼله. ځکه چې دغه ډلې ټپلې تر طالبانو وړاندې تل پخپل مېنځ کې سره جنګیدلې وې او دوې کله هم یو باوري او رښتیني اتحاد نشوای کولای اونه یې په هیواد کې واحده اداره اونظام راوستلای شوای ،دوې یواځې د سخت مجبوریت پر وخت د طالب په وړاندې د نورو هیوادونو په منځکړتوب موقت اتحاد کاوه، خو خپل منځي رقابت به یې ترمینځ پاتې و، هغوې په جګړه کې هم یو پربل حتی پر خپلو افرادو باوري نه ول، چې کوم ښار به یې ونیو نو

د مشرانو  تر راتګ وړاندې به يې ورو سرګروپانو او عامو افرادو د خلکو دوکانونه، کورونه او شتمنۍ لوټ کړې وه، لکه د جنرال ملک له تيښتې او د دوستم له دوهم ځل راتګ سره چې د مزار ښار د وحدت او متحدينو مليشو چور کړ.

طالبانو د کابل ښار د دفاع لپاره له لويې پکتيا نه د مولوي جلال الدين حقاني په مشرۍ او له لوی ننګرهاره د مولوي عبدالکبير په مشرۍ زرګونه جنګيالي د کابل د شمال جنګي کرښو ته راوستل او د ياغيانو يرغلونه يې پرشا وتمبول. دا وار يې بيا تر جبل السراج او ګل بهاره پورې ورسول، خو جنګي کرښې بيا تر پايه په يوه حال پاتې نه شوې.

تر دې مهاله طالبانو يوازې د رباني او متحدينو پر ضد د جګړې فتوا لرله، خو د دوستم له لوري د پرلهپسې يرغلونو وروسته د اکتوبر په دېرشمه د طالبانو د شورا او ديني علماوو له پرېکړې وروسته طالبانو رسما د دوستم پر ضد د جګړې اعلان وکړ.

له دې وروسته د دوستم له مليشو سره د هېواد په لويديځ شرقي ولاياتو غور، بادغيس او فارياب کې د طالبانو مخامخ جګړې وې. ان چې د جنرال عبدالمالک له خوا پر دوستم کودتا وشوه او دوستم له هېواده وتښتېد، خو د مالک له بېرته ماتې او دوستم له دوباره برې وروسته بيا د شمال تر ورستۍ فتحې له دوستم سره خونړۍ جګړې وشوې.

له دوستم سره له جګړې وروسته د هند او ايران استازيو مزارشريف ته سفرونه وکړل او له دوستم سره يې د پوځي او سياسي مرستې ژمنه وکړه. په دې لړ کې د نومبرپه نهمه د ايران مرستيال خارجه وزير"علاءالدين بروجردي"

په مزار کې له دوستم سره وليدل او د نومبر په شپاړسمه د هند مرستيال خارجه وزير "گونات" ورسره وليدل.

د ۱۹۹۷ کال په جنورۍ کې دوستم د طالبانو له پرمختګه په وېره کې شو. د کابل په شمال کې د سالنگ تونل شمالي برخه يې لږ ونړوله او د تونل هغه لورى يې د طالبانو د پرمختګ د مخنيوي لپاره په نړولو بند کړ.

د دوستم پر ضد د جنرال عبدالمالک او طالبانو اتحاد او خونړۍ پايلې

عبدالرشيد د عبدالرحيم نامي بزگر پلارنه او د "انبارشا" نامې مور نه په ۱۳۳۱ لمريزکال د جوزجان ولايت په خواجه کوه ولسوالۍ کې زيږيدلی؛ د ازبک ټبر سره اړه لري؛ د داودخان د واکمني پرمهال د شبرغان د گازو د څاهگانو د کندلو يو عام کاريگر و. د شوروي يرغل نه وروسته د پيسو په بدل کې د کمونيستي او شوروي قواو ملاتړی جنگيالی و چې د سختې جگړه‌مارۍ له امله لومړی د يوه کنډگ قوماندان شو او بيا وروسته يې نوي پلويان جلب کړل او يوه بې رحمه جنگي مليشه وگرځيده. د شوروي په دفاع کې يې پر خلکو هر ډول تېری مجاز گاڼه. هغه خپل تخلص له دې امله دوستم کېښود چې د روسانو له يرغل سره د روسي عسکرو يو عام شعار دا و چې کوم کلي ته به ننوتل نو عامو خلکو، ماشومانو، تورسرو او بوډاگانو ته به يې همدا يوه فارسي جمله کاروله چې "دوست يا دښمن". تر هغو به يې د ټوپک شپېلۍ پر تندي ور نيوله چې ترڅو به يې د دوست او يا دوستم کلمه ورته ونه يله!

چې له دې امله به ډېر کله تورسرې، ماشومان يا هم لويو سړيو له وارخطايۍ نه د دوست پر ځای "دښمن" توري وکاروه او له ژونده به بې برخې شول. دا کار تر ډېره په پښتني سيمو کې شوی.

عبدالرشيد له روسانو سره د زياتې وفادارۍ ښودلو لپاره پر ځان"دوستم" تخلص کېښود او روسانو به هم هغه د وفاداري له امله دوستم "زمونږ دوست" باله. د دوستم ملېشې ته د ګيلم جم (ټغر ټولوونکي) ملېشه هم وايي، ځکه چې د دې مليشي جنګيالي به چې هرې سيمې ته ورغلل نو له جګړې وروسته به يې کلي او کورونه لوټول.

جنرال ملک يا مالک د دوستم د جوړ شوي ګوند "جنبش ملي" د خارجه اړيکو مسئول و. د دوستم او ملک ترمينځ دښمني هغه وخت پيل شوې وه، چې د جنرال ملک ورور "رسول پهلوان" چې د بې رحمۍ له امله به د سيمې خلکو "رسول بې خدا" هم باله- د دوستم لخوا د يوې جنسي موضوع پر سر شخړه کې ووژل شو. ملک د انتقام لپاره فرصت لټاوه او له بلې خوا دا هم و يل کيږي چې د ايران، احمدشا مسعود او جنرال ملک ترمينځ د يوه بل پلان تياری هم نيول شوی و، چې هم دوستم له صحنې وباسي، هم طالبانو ته د سترو تلپاتو دسيسه جوړه کړي او هم به ملک له دوستم نه دخپل ورور انتقام واخلي.

د ۱۹۹۷کال په لومړيو مياشتو کې د جنرال دوستم او طالبانو ترمينځ له څو لارو مستقيمې او نا مستقيمې خبرې روانې وې چې يو هم پاکستانی چاينل و. په اسلام اباد کې د دوستم له نماينده عبدالباقي ترکستاني او د جنبش د بهرنيو اړيکو مسئول جنرال عبدالمالک سره د پاکستان د حکومت په توسط طالبانو څو ځله ناستې وکړې چې له دوستم سره له جګړې پرته لانجه حل شي. بالاخره د مۍ په مياشت کې د دوستم څو پياوړو قوماندانانو عبدالمالک، ګل محمد پهلوان، غفار پهلوان او نورو د دوستم په خلاف پاڅون وکړ او دوستم يې د جنبش له مشرۍ لېرې اعلان کړ.

د دواړو خوا وو قواوې سره په جګړه شوې، د ملک استازو اسلام اباد کې د کرنل رياض او څو نورو پوځي او ملکي مامورينو په توسط له طالبانو سره د

اتحاد او یو کېدو لپاره مذاکرات شروع کړل. د طالبانو مرکچي خارجه وزیر ملامحمد غوث و، چې تر ډېره یې د دغه جریان جزیات له مشرتابه نه پټ ساتل. ملک د طالبانو د باور ترلاسه کولو لپاره د طالبانو یو بل مهم مخالف قوماندان د هرات پخوانی والي تورن محمد اسماعیل خان هم طالبانو ته وسپاره، چې په پټه له ایرانه له طالبانو سره د چریکي جګړې لپاره افغانستان ته را اوښتی و او له دوستم سره په ګډه یې د طالبانو پر ضد عملیات کول.

د ۱۹۹۷م کال د مۍ په شپاړسمه د جنرال مالک، د هرات والي ملاعبدالرزاق او خارجه وزیر ملا محمد غوث ترمینځ داسې یو تړون امضاء شوی و چې د شمال د هغو ولایتونو مسئولیت به چې د حنبش په لاس کې دي، جنرال مالک ته ورکول کیږي، خو په دې ولایاتو کې به اسلامي شریعت نافذیږي او ټول قانون به د مرکزي دولت وي او وسله‌وال طالبان به دغو ولایاتو ته ورځي او داسې نورې خبرې...

لومړی به د دوستم پر ضد متحده جګړه کوي. له دې ټول جریان نه، نه ملا محمد عمر خبر و، نه دفاع او داخله وزارتونه او نه هم د استخباراتو لوی ریاست.

ملاصیب ته داسې اطلاع ورکول شوې وه چې مالک بې شرط او قیده له طالبانو سره یو کیږي. وسلې او مهمات ټول تسلیموي، چې دلته اوله درجه بې اطاعتي او له حکومتي اصولو سرغړاوی ملا محمد غوث کوي او دوهمه درجه ملاعبدالرزاق ورسره شریک دی. دوی فکر کوي چې که جزیات مشرتابه ته وړاندې کړي، ښایي دا تړون ببرته مات شي نو که یو ځل شمال له دوستمه تصفیه شي بیا به دوی ملا محمد عمر قانع کړي، خو دې تصور لوی ناورین وزېږاوه.

ملا محمد عمر دې ته هيڅکله نه و اماده چې په ايتلافي شکل زاړه مستبد خلک پر ولس واکمن پريږدي، بلکې هغوی به سيمه او واک لومړی سپاري، بيا به هغوی ته مقام ورکول کيږي، ځکه چې د تحريک د پيل هدف د دغو ځانځانيو او مقامي پاچاهيو او استبداد خاتمه وه، نه د قدرت لپاره د چا په ظلم او وحشت سترګې پټول.

د مې له اتلسمې د طالبانو او جنرال مالک د قواوو ګډ عمليات د دوستم د ملېشو خلاف پيل شول. د مې په نولسمه جنرال مالک له مطبوعاتو سره د جنرال دوستم پر ضد د پاڅون او له طالبانو سره د پيوستون لاملونه بيان کړل. هغه بې بي سي سره مرکه کې وويل: "د جنبش ملي اسلامي له پرېکړې او د ملت له هيلو سره سم مې جنرال دوستم له دې کبله د ګوند له مشرتابه لېرې کړ چې له افغانستان سره يې خيانت وکړ او د ډېرو مسلمانانو وينې تويې کړې. شورا يي ملي اسلامي داسې تصميم نيولی دی، چې له طالبانو وروڼو سره يو ځای د ملي يوالي او شرعي نظام د راوستلو په خاطر د ورستيو کمونستانو د ويستلو لپاره پاڅون وکړي".

هغه په خپلو پلويانو کې د دوستم د مرستيال مجيد روزي، غفار پهلوان، ګل محمد پهلوان او دسمنګان والي مولوي عبدالقدوس نومونه هم ياد کړل.

ورپسې غفار پهلوان دې ته ورته خبرې مطبوعاتو ته وکړې او اعلان يې وکړ چې له طالبانو نه يې د لس زره پياده قواوو د کومک غوښتنه کړې او طالبانو هم موافقه کړې. هغه وويل کومکي طالبان لا اکثره په فارياب کې دي، خو يو شمېر يې شبرغان ته هم رارسېدلي دي.

د مې د مياشتې په څلورويشتمه د شبرغان او مزار ولايتونو سقوط وکړ او دوستم ازبکستان ته واوښت. دا وخت ملاعبدالرزاق د الوتکو له لارې زرګونه

طالبان په دې نيت خالي لاس مزار ته واستول، چې بيا به يې په مزارشريف کې مسلح کړي. دا د ناورين د لوبې پيل و.

ماښام مولوي وکيل احمد متوکل پرته له دې چې د تړون له جزياتو او نورو نزاکتونو ځان خبر کړي، ملاعبدالرزاق يې د بلخ تنظيمه رئيس او جنرال مالک يې د خارجه چارو د وزارت مرستيال اعلان کړ.

د مزار ظاهري فتحې د سيمې او نړۍ پام طالبانو ته واړاوه. ډېرو افغانو روڼاندو او د سيمې هېوادونو دا سوبه د افغانستان لپاره مثبت ګام او د جګړو پای ونوماوه. هر چا فکر کاوه چې نور په افغانستان کې واحد حکومت رامينځته شوی. د امريکا خارجه وزارت په يوه اعلاميه کې د جګړې ښکېلو غاړو نه د اوربند او پراخ بنسټه حکومت غوښتنه وکړه. په بهر کې د افغان سفارت يو شمېر ديپلوماتانو د طالبانو ملاتړ اعلان کړ، لکه سعودي عرب، پاکستان او ايټاليا. په ايټاليا کې د افغانستان شارژدافير محمد نعيم مسلميار سره له ټولې عملې سره د طالبانو ملاتړ اعلان کړ. د امريکا حکومت په واشنګټن کې د افغانستان سفارت له دې امله وتاړه چې يوه سکرتر سراج جمال د طالبانو ملاتړ اعلان کړ او بل سکرتر يارمحمد د رباني ملاتړ اعلان کړ.

بل لور ته طالبانو د باميان لور ته پرمختګ وکړ او د کابل په شمال کې يې يو ستر کاروان مزار ته د مرستې لپاره چې د مهمو وزارتونو ځينې وزيران هم په کې و تيار کړ. په سالنګ کې د مسعود قوماندان بصير سالنګي طالبانو ته تسليم شو. طالبانو د بغلان ځينې سيمې هم ونيولې. نور په سيمه او نړۍ کې عام ذهنيت داسي شو، چې ښايي دا به ورستۍ جګړه شي.

له همدې امله د مۍ په پينځه ويشتمه پاکستان د طالبانو حکومت په رسميت وپېژاند. په سبا سعودي عربستان د طالبانو حکومت په سميت وپېژاند. په

دریيمه ورځ د مۍ په اووه ویشتمه عرب اماراتو د طالبانو حکومت په رسمیت وپېژاند. نورو ځینو هېوادونو هم تیاری نیولو، چې د مۍ په دېرشمه د دې ظاهري سوبې پاڼه سرچپه شوه. د مۍ په اته ویشتمه د وحدت او مالک ملېشو پر طالبانو برید پیل کړ. زرګونه طالبان لا بې وسلي وو چې له هر لوري پرې بریدونه پیل شول. کوم چې وسله‌وال وو هغوی ته ملاعبدالرزاق اجازه نه ورکوله. عبدالرزاق دا وخت له جنرال مالک سره یرغمل و، خو طالبان له اصلي وضعیته ناخبره او حیران وو. د مالک له خوا ورته ویل کېدل چې دا بریدونه د حزب وحدت قواوې کوي.

دا وخت د مزار د اداري د سمبالېدو لپاره له کندهاره راغلي مشران هر یو ملا اخترمحمد منصور د هوانوردۍ وزیر، ملا محمد صادق د عالی شورا غړی، د هوایي ځواک قوماندان پیلوټ جیلاني خان، حاجي فضل محمد او ځو نور د مالک له خوا یرغمل شول. له خونړیو جګړو وروسته له جوزجان، سرپل او فاریاب ولایتونو مسلح طالبانو ووتل او یو لوی شمېر مسلح او تقریبا د درېوو یا څلورو زرو شاوخوا نامسلح طالبان د وحدت او مالک ملېشو ژوندي ونیول.

مولوي احسان الله احسان د ملي بانک رئیس او د طالبانو مشهور داعي په مخامخ جګړه کې شهید شو او ملا محمد غوث ځو اونۍ ورسته کندهار ته راورسېد. ویل یې د سیمې په هزارګانو کې پټ شوی و او بیا یې ځان په تاکتیک تر کابله راورساوه. ږیره یې خریلې وه او د شمال د خلکو اوږد ډبل کمیس یې اغوستی و. پر سر یې د ستمال تړلی و. د هغه سور مخ او وږو شنو سترګو له دغه ډول لباس سره رښتیا هم هزاره‌ګانو ته ډېر ورته‌والی درلود.

بل لور ته بصیر سالنګي بېرته احمدشاه مسعود ته واوښت او د سالنګ لاره یې ونیوله. د مسعود قواوو یو ځل بیا د طالبانو له دغه حالته په استفاده د کابل په شمال کې پرمختګونه وکړل، ځکه چې دا وخت د کابل په شمال کې یوازې

سلگونه وسله‌وال طالبان پاتې وو، خو له کابل او اطرافو کومکي ځواکونو د کابل د شمال کرښې ټينګې کړې او د مسعود ملېشو څخه يې بېرته يوشمېر سيمې ونيولې.

په بغلان کې د طالبانو محاصره قوه چې ملادادالله او اميرخان حقاني او يو شمېر نور قوي قوماندان په کې وو، په دې وتوانېدل چې پلخمري سيمه تر واک لاندې راولي، خو وروسته بېرته بغلان ته راشا ته شول. په بغلان کې بشير بغلاني د حکمتيار په هدايت غوښتل طالبان بې وسلې کړي او مشران يې متحدې جبهې ته وسپاري، خو طالبانو په ډېره هوښياري سره ځانونه بېرته مضبوط کړل او څه موده وروسته د جون پر نولسمه د يو تاکتيک په نتيجه کې د سيمه‌ييزو قوماندانانو په همکارۍ کندوز ته ننوتل او ورو ورو يې پر کندوز واک ټينګ کړ. له هر لوري پر کندوز کېدونکي يرغلونه يې په حيرانوونکي ډول شنډول چې په دې کې د ملا دادالله او ملا اميرخان حقاني سخت مقاومت شهرت پيدا کړ.

د جون په دوهمه د مزار په ښارکې د جنبش، حزب وحدت، شورای نظار او د محسني حرکت ترمينځ د جبهه نجات ملي افغانستان په نامه نوې جبهه جوړه شوه چې له طالبانو سره په ګډه جګړه وکړي. د جون په شپږمه د ايران مرستيال خارجه وزير علاء الدين بروجردي مزارشريف ته راغی او نوې جبهې ته يې د مبارکۍ ترڅنګ د همکارۍ ډاډ ورکړ.

د جون په شپږمه يوه باري الوتکه چې له تاجکستانه يې احمدشا مسعود ته وسله لېږودوله د کابل پر خواجه رواش هوايي ډګر ښکته شوه. پيلوټ ډګرمن عبدالصبور او مرستيال يې ډګرمن محمد نادر له تاجکستان او ايرانه مسعود او حزب وحدت ته د وسلو او مرستو په اړه ډېر اسناد طالبانوته ورکړل. په دوهمه ورځ د فراه د "داني اباد" په سيمه د مخالفينو يوه ډله له درنې وسلې سره

ونیول شوه، چې له ایرانه را اوښتې وه او دوه ایراني نظامیان هم په کې وو چې په دې سره د ایران او تاجکستان بربنډه پوځي مداخله نوره هم طالبانو ته څرګنده شوه.

طالبانو د کندوز هوايي ډګر ورغاوه او د پوځي ترانسپورتي الوتکو له لارې يې له کابل سره اړيکه ټينګه کړه چې په دې سره يې هم محاصره ماته کړه او هم طالبان په کندوز کې د ټول شمال لپاره په يوه کلک مرکز جوړولو قادر شول. هغوی ته وسله، تازه دمه قوه د هوا له لارې راتله او هم يې خپل جنګي ټپيان او ستړي طالبان کابل ته دهوا له لارې استول.

لیلې دښته د زرګونو ځوانانو هدېره

له هراته تللي طالبان چې پوره نام نويسي يې نه وه شوې يواځې څو زره يې معلوم وو، خو څو زره داسې هم وو چې د نومونو لېست يې نه و، چې مجموعا خبره له اتو تر لسو زرو رسېده. دا اکثره د مدرسو نوي ځوانان طالبان او حافظان وو. په دې شوق راغلي ول چې نور به هېواد له دايمي جګړې خلاصون مومي او دا به ورستۍ جګړه وي. وسله ورسره نه وه. څوک په ښار کې وويشتل شول او څوک يې ژوندي ونيول بيا له زندانه هره ورځ ويستل کېدل، په کانتينرونو کې يې اچول، د شبرغان ليلې دښته کې يې په ګوليو غلبيل کول او د ګازو په څاګانو کې يې غورځول. څوک يې تر خاورې لاندې کول او يو لوی شمېر يې همداسې لمرونو ته پراته وو.

د جنرال دوستم له بيا واکمنيدو سره د څو زرو کسانو مړي راڅرګند کړای شول او ځينې بهرنيو ادارو هم ډله‌ييز قبرونه معاينه کړل، زرګونه طالبان چې لاسونه يې په شا پورې تړلي ول په کې مړه پراته وو.

د بېلابېلو مدارکو او شواهدو له مخې په دې پېښه کې تقریبا ټول ټال دیارلس زره او دوه سوه طالبان شهیدان او تری تم شول. په دوی کې یواځې زر تنه وسله‌وال ول، دا نور ټول خالي لاس د مالک د مرستې لپاره د مالک په دعوت راغلي وو او د مالک مېلمانه ول.

## د اسماعیل خان اسارت او تېښته

کله چې د ۱۹۹۷م کال د مۍ په اتلسمه د افغانستان په شمال کې د جنبش پر مشر عبدالرشید دوستم خپل یوه جنرال، عبدالمالک کودتا وکړه. د جنرال ملک استازي په اسلام اباد کې د افغانستان د بهرنیو چارو وزیر ملا محمد غوث سره داسې یوې موافقې ته رسېدلي وو، چې مشرتابه یې له پوره جریانه خبر کړی نه و. مالک د باور جوړونې لپاره په فاریاب کې اسماعیل خان د ۱۳۷۶لمریزکال د غوایي په اته ویشتمه چې د ۱۹۹۷میلادي کال د مۍ له اتلسمې سره سمون خوري، طالبانو ته په لاس ورکړ.

اسماعیل خان لومړی د لویدیځ زون مشرتابه ته وسپارل شو او له هغه ځایه کندهار ته راوړل شو. په کندهار کې د ملي امنیت د ریاست په خصوصي زندان کې ساتل کېده. په سبا ملا محمد عمر امر وکړ، چې یو کس دې له اسماعیل خان سره تفصیلي خبرې وکړي. ټولې پوښتنې دې ورسره مطرح کړي او بیا دې ریکارډ شوې کیسټ ما ته راوړي. زه او د کندهار د اطلاعاتو او کلتور رییس سید محمد حقاني  د استخباراتو د تحقیق ریاست ته ورغلو. د کندهار د ملي امنیت مشر قاري حمید ګل ته لا له وړاندې د مشرتابه له دفتره تیلیفون شوی و. د تحقیق ریاست په یوه خونه کې لومړی موږ کېناستو. لږ وروسته تورن اسماعیل خان په داسې حال کې چې زولنې یې په پښو کې وې راوستل شو. تورن صیب کیناست خو په څېره کې یې د ژور خپګان او اندېښنې نښې له ورایه ښکارېدې. رنګ یې الوتی و او ډېر زهیر معلومېده.

مور چې دغه ضعيف البدن سپين ږيرى وليد، زړه مو په دې خپه شو، چې بايد زولنې يې پښو کې نه واى، ځکه چې دا د سړک د غاړې پوسته يا محبس نه دى، بلکې يو فعال رياست دى. لږه تر لږه له مور سره د ملاقات پر وخت يې بايد په پښو کې زولنې نه واى. ترمينځ دسترخوان وغوړول شو. د تازه زردالو قابونه پرې کېښودل شول. مور لومړى له تورن اسماعيل نه د سترې مشۍ او روغبړ په دود د صحت او طبيعت پوښتنه وکړه، بيا مو ورته د زردالو خوړو وويل. ده راغبرگه کړه چې هيڅ نه خورم او هېڅ ته مې زړه نه کيږي. بيا مې خپله غوښتنه ورته وړاندې کړه، چې څه پوښتنې درنه کوو او ريکارډ کوو يې. ده تيارى وښود.

لومړى مې ترې وپوښتل، د طالبانو په اسارت کې څه ډول احساس کوئ؟

له اوږده اسويلي وروسته يې وويل: ډېر افسوس کوم چې د روسانو پر ضد مې دومره جهاد وکړ او نن د خپلو مسلمانو ورونو او علماوو په اسارت کې د يو مجرم په توگه بندي يم.

ما ورغبرگه کړه: تاسو خو زرگونه طالبان په جگړو کې شهيدان کړي دي او اوس هم د بيا جگړې په تياري بوخت واست ايا تاسو د دغو اعمالو د سزا مستحق نه ياست؟

له دې پوښتنې سره د اسماعيل خان اواز تغير وکړ، ولړزېد او ويې ويل:

-زه مجرم يم، خو د اميرالمومنين رحم او کرم ته مې همدومره اميد دى چې زما ټول گناهونه به راوبښي.

داسې معلومېده لکه دى چې هم په دې پوه وي، چې زما دا خبرې به ملا محمد عمر اوري او مور ته هم فضا معلومه وه، چې داسې کسان کم نه وو، چې د

اسماعیل خان د اعدام فکر یې په دماغ کې درلود. له همدې امله ما په لوی لاس هڅه وکړه چې له یو څو ضروري سوالونو علاوه نور داسې مسایل راپورته کړم چې فضا نورماله کړي.

ورپسې پوښتنه مې د نیول کېدو په اړه ترې وکړه، هغه وویل جنرال مالک ورته دسیسه جوړه کړې وه، خو دا یې هم ورسره زیاته کړه چې ګورئ پر مالک باور مه کوئ، دا یو ډېر مکار او بې باوره شخص دی. زما په ګومان همدې خبرې هم وروسته د فضاء په نورمالیدو کې له اسماعیل خان سره څه ناڅه مرسته وکړه.

د ده او مسعود ترمنځ اختلافات مې وپوښتل. په ځواب کې یې راته وویل: مسعود د شورای نظار تسلط په ټول جمعیت غواړي او استاد رباني یې بې صلاحیته کړی، ځینې فاشستي افکار لري، زه چې د رباني کلک پیرو وم، مسعود زما د ځواک او اختیار مخالف و، دې ته ورته نورې خبرې یې هم وکړې، چې د ده او احمدشاه مسعود ترمنځ ژور اختلاف ترې څرګندېده.

د سوالونو په تسلسل کې مې د تېر جهاد خاطرو ته خبره ورسوله، دا نو هغه پوښتنې وې چې اسماعیل خان پرې ایله د ارام سا واخیسته. په دې لړ کې یې د هرات په ښار کې د جهاد پر مهال د یوه اوږده خندق کیندلو کارنامه بیان کړه. ورپسې یې د خپل زوی په اړه خپله خاطره بیان کړه، چې دی په جهاد کې و او زوی یې شوی و، ده شپږ کاله وروسته په داسې حال کې ولید چې زوی یې دی نه پېژاند، چې دا مې پلار دی او ده هم خپل زوی نه پېژند!

له دې کیسې سره اسماعیل خان په ژړا شو! ډېر سخت یې وژړل؛ پر سپینه ږیره یې ډېرې اوښکې راغلې، موږ هم څو شېبې خاموش وو. اسماعیل خان په معذورانه لهجه په غربو نیولې اواز زیاته کړه، زه ډېر افسوس کوم چې ما په

جهاد کې دومره ستونزې ګاللي دي او نن د خپلو مجاهدينو ورونو په بند کې د سزا انتظار کوم. زه د اميرالمومنين رحم ته اميد لرم چې ما وبښي او په نظام کې رانه د يوه تجربه کار پوځي قومندان په توګه کار واخلي.

ما سمدلاسه ورغبرګه کړه: تاسو به اميرالمومنين څنګه مطمئن کړئ چې بيا به د طالبانو پر ضد وسله نه اوچتوئ؟

اسماعيل خان په هيله منو سترګو راوکتل او زياته يې کړه: زه به کلک عهد وکړم، دروند ضمانت به ورکړم، په الله به قسم ورته وکړم، چې د ژوند تر وروستۍ سلګۍ به ستاسي مخالفت ونه کړم او که تاسو له ما د يو مسلمان مجاهد په توګه کار اخلئ، نو زه به د طالبانو په صف کې د تېر جهاد په څېر کارنامې پرېږدم.

په لسګونو دا ډول پوښتنې مې له اسماعيل خانه وکړې او ثبت شوې کيسټ مې مشر ته ورواستوله. ملا محمد عمر په دقت سره د خپل موټر په ټايپ کې دغه مرکه واورېده او چې د جهاد د خاطرو ځای راغی، په خاص ډول د اسماعيل خان له خوا د زوی کيسه، نو د مشر سترګې هم له اوښکو ډکې شوې، ځکه چې مشر ته د جهاد په لاره کې تکليف ډېر ارزښت درلود او دا ډول کارنامې هغه ته ډېرې ارزښتمنې وې.

له همدې وروسته د مشر پرېکړه دا وه، چې د نظام تر بشپړ ټينګېدو دې اسماعيل خان په زندان کې وي، خو مشقت او تکليف به نه ورکول کيږي، هدف يې ښايي دا و، چې کله فضاء مطمئنه شي، نو د يوه عهد او تضمين په صورت کې به يې ازاد کړو.

پنځه مياشتې وروسته د همدې کال په اکتوبر کې مې اسماعيل خان يو ځل بيا هغه مهال وليد، چې پاکستانی ژورناليست رحيم الله يوسفزی مې وروستی و.

دا ځل اسماعیل خان ډېر ارام و، حالت او څېره یې نورماله وه، له ما یې یوه غوښتنه وکړه، چې ماته دې د قلم او کاغذ اجازه راکړل شي، چې زه خپل خاطرا ت ولیکم. ما د ده پیغام مشرتابه ته ورساوه، بیا پوه نه شوم چې اجازه ورکول شوه او که نه.

له رحیم الله یوسفزي سره د اسماعیل خان د مرکې غټ ټکي چې د بي بي سي د پښتو سرویس په ماښامنۍ خپرونه کې د همدې کال د اکتوبر په درېیمه خپاره شوي وو، په دې ډول وو:

"طالبانو پر ما هېڅ سختي نه ده کړې او نه یې په زندان کې ځورولی یم. موږ ته پکار دا وه چې د دوی ملاتړ مو کړی وای، خو افسوس پر دې چې مقابلې ته یې راووتو او ورسره وجنگیدو. دوی به په افغانستان کې د شرعي نظام په راوستو کې بریالي کیږي، ځکه چې بری مدام د حق په برخه وي."

شاوخوا درې کاله اسماعیل خان د طالبانو په زندان کې و، چې څارنه او ساتنه یې د کندهار د استخباراتو د رییس قاري حمید گل په غاړه وه.

قاري حمید گل د استخباراتو په برخه کې کومه سیستماتیکه تجربه او وړتیا نه لرله. تر ډېره به په هغو کارونو بوخت و، چې په ده پورې یې اړه نه لرله، خو څرنگه چې حمید گل د روسانو پر ضد جهاد کې د مجاهدینو لپاره د ښار په مینځ کې د یوه عادي مخبر دنده ترسره کړې وه، نو ځکه ځینو هغو طالب مشرانو ته د اعتماد وړ و، چې ده یې د شوروي پر ضد جهاد کې پېژاند.

حمید گل د کابل تر نیولو وړاندې د استخباراتو په څانگه کې کارمند و، خو چې کله کابل ونیول شو، دی د کندهار لپاره د استخباراتو رییس وټاکل شو. حمید گل به د روسانو د وخت د مخبرۍ اکټونه دا وخت هم کول. د کندهار په ښار کې به پر موټر سایکل گرځېده. د کورونو بامونو ته به یې کتل، چې کوم نابلده

انتن خو به پر کوم بام نه وي ولاړ او بې ضرورته به په ځینو مسایلو کې ښکېل و. خپل مقام او دنده يې په سمه توګه نه پېژندله، علمي استعداد او ديني پوهه يې هم نه لرله، ځکه به اکثره په نامشروع ډول تعذيب او ظلم کې لتاړ و.

بل پلو ته هغه مزاجاً سمت پرست و، د استخباراتو له مرکزي رئيس قاري احمدالله سره يې هم له همدې امله کلکه رخه لرله، چې تل به يې د هغه په اړه منفي تبليغات کول. پر هغه يې تور دا و، چې احمدالله په رياست کې کمونستان پرېښي او له خلکو سره بې ضرورته نرمي کوي، خلک نه مجازات کوي، ځکه نو د دې دندې اهل نه دی.

کله چې قاري احمدالله د اسماعيل خان له تيښتې نږدې يوه مياشت وړاندې، د مشرتابه دفتر ته خبر ورکړ، چې موږ ته دقيق راپور رسېدلی چې د اسماعيل خان د تښتولو منظم پلان جوړ شوی، که تاسو اسماعيل خان د ساتلو لپاره موږ ته وسپارئ،موږ به يې ساتنه وکړو. مشرتابه دې خبرې حيران کړ او دا يو ډول مبالغه ورته ښکاره شوه.

سمدستي يې د خپل دفتر يو مهم غړی ملا غازي حميد ګل ته واستاوه او ورته وې ويل: مشر وايي ته نور ټول کارونه پرېږده، تنها د اسماعيل خان ساتنې ته پاملرنه وکړه. چې دا يو ډول تاکيد و. په دې خبره حميد ګل نور هم قاري احمدالله سره رخه زياته کړه او ځينې نورو پلويانو يې هم د احمدالله له لورې دا يو ډول تور وګاڼه، خو چې مياشت پوره کېده يعنې د ۲۰۰۰م کال د مارچ په شپږويشتمه اسماعيل خان د شپې په وروستۍ برخه کې له زندانه د هغه د ساتونکو له لارې وويستل شو او حميد ګل او همکاران يې سهار د نهو بجو په شاوخوا کې خبر شول.

دا وخت نو تورن اسماعيل د منظمې تېښتې په ټولو امکاناتو برلاسی شوی و. د مشرتابه له خبرېدو سره د هېواد ټولې سترې لارې وتړل شوې. هر لورته سخته تالاشي او تفتيش روان و، خو اسماعيل خان له يوې داسې کليوالې او ريگستانۍ لارې چې تفتيش يې ناشونی و، په ځو ورځو کې ايران ته ورسېد.

د هغه سورلۍ موټر د لارې په اوږدو کې پر ماين هم وربرابر شوی و، چې له امله يې د اسماعيل خان پښه هم زخمي شوې وه. وروسته معلومه شوه، چې د هغه يوه ساتونکي د يوه کال په اوږدوکې د يوې اوږدې پروسې له لارې د اسماعيل خان له کورنۍ سره د زياتو پيسو په بدل کې د هغه د را ويستلو موافقه کړې وه او بيا يې د دې لپاره گډ منظم پلان وار له مخه ترتيب کړی و.

څرنگه چې د اسماعيل خان د ساتنې طريقه دوديزه اوساده وه او حميد گل تر ډېره بې ظرفيته او د باريکو پېښو د درک له استعداده محروم سړی و، بل پلو يې شخصي ډلگۍ مخلوط او بې باوره خلک وو، چې په دې کې همدغه ساتونکي هم د ده اعتمادي کس بلل کېده، نو ځکه د پېښې ټول عامل په خپله حميد گل و. حميد گل د تفتيش لپاره زندان ته واچول شو، مرستيال يې حاجي قاهر د لټون په بهانه غوښتل ايران ته وتښتي، چې د هرات او کندهار ترمينځ ونيول شو.

### طالبان يو ځل بيا د شمال پر لور

طالبانو د کندوز له لوري يو ځل بيا د ۱۹۹۷م د ستمبر په اوومه د سمنگان ولايت د تاشقرغان ستراتيژيکه ولسوالي ونيوله. په نهم ستمبر يې د مزارشريف هوايي ډگر ونيو. ملا محمد عمر طالبانو ته اعلان وکړ چې ښار کې دې جگړه نه کوي چې عامو خلکوته زيان ونه رسيږي او له مخالفينونه يې وغوښتل چې له جگړې لاس واخلي او طالبانو ته د ښار د کنترول مخه ورکړي. د سيمې د ځينې قوماندانانو په همکارۍ طالبانو د ښار نورو لوريو ته پرمختگ

کړ، خو مشکوکو الوتکو د تاجکستان له لوري بمبار وکړ. طالبانو پر تاجکستان رسمي تور پورې کړ چې له خپلو هوايي ډګرونو زموږ پر ضد بمبار کوي.

د ستمبر په دیارلسمه د ازبکستان سرحد ته څېرمه حیرتان ښار ګوتې طالبانو ونیو. د جنرال مالک او جمعیت ځواکونه له مزاره شبرغان ته په شا شول. یواځې حزب وحدت مقاومت کاوه. دا جګړه یوه اونۍ روانه وه چې اخیر د اکتوبر په څلورمه یوځل بیا جنرال دوستم له ازبکستانه راواوښت او له نویو پلوي وسلهوالو سره یې د حزب وحدت ترڅنګ له طالبانو نه د بلخ ولایت د چمتال او چاربولک ولسوالۍ او د مزار شریف هوايي ډګر بیرته ونیول. په دې سره دوستم له څلور میاشتو وروسته بیا صحنې ته راغی او د مالک قواوې له سیمې ووتلې.

د اکتوبر په اوومه طالبانو حیرتان بندر او په یوولسمه تاشقرغان ولسوالۍ بېرته له لاسه ورکړل. پر مزار د مالک پرځای بېرته دوستم واکمن شو.

د مزار ښار د دوستم او وحدت د ملېشو له خوا چور شو. د خلکو دوکانونه او کورونه وسلهوالو ولوټل او بې عزتۍ یې وکړې، چې په شاړسم اکتوبر د حزب وحدت ملیشو مشر محمد محقق رسنیو ته دغه چور او تالان ومنل. هغه وویل چې موږ په جګړه مصروف وو، ځینې خلکو زموږ په ناخبرۍ کې چور ګډ کړی و.

د ایران په مینځګړتوب د دوستم او جنرال ملک ترمېنځ بیرته روغه وشوه او د اکتوبر په ۱۴مه جنرال ملک بیرته مزار ښار ته راغي او هوډ یې وکړ چې په ګډه به له طالبانو کندوز ښار نیسي.

څه موده وروسته یې بیا ترمینځه شخړې راغلې. مالک او ورور یې فاریاب کې د دوستم پر ضد فعالیت پیل کړ چې بیا د نومبر په دوهویشتمه جنرال دوستم له جنرال مالک او ورور یې ګل محمد پهلوان نه د هغوی وروستی مرکز میمنې

ښار او شیرین تګاب ولسوالۍ ونیوله. مالک ایران ته وتښتېد او د طالبانو پینځه لوړ پوړي زندانیان یې په بادغیس کې د طالبانو جنګي کربښې ته نږدې خوشې کړل. دغه بندیان ملا اخترمحمد منصور، ملا محمد صادق، حاجي فضل محمد، ملا عبدالرزاق او د هوایي قواوو د قوماندانۍ مشر پیلوټ جنرال جیلاني خان نورزی و. دوی لومړی په بادغیس کې طالبانو ته ځانونونه ورسول او بیا هرات ته را ورسول شول.

ترکمنستان نه د ګازو نل لیکه او نړۍوالې کمپنۍ

پر افغانستان د شوروي یرغل له ماتې او د روسي قواوو له وتلو وروسته چې پخواني شوروي سره تړلیو د مینځنۍ اسیا یو شمېر جمهوریتونو خپلواکي ترلاسه کړه. د سیمې هېوادونه او د لویدیځ ستر شرکتونه له مینځنۍ اسیا سره د هند بحر له لارې د تجارت او هم د طبعي منابعو د صادرولو په فکر کې وو. له همدې امله له ترکمنستان نه د ګازو صادرولو پروژه په ۹۰ ۱۹کې تر پلان او سروی لاندې وه. په دې اړه روسانو نه غوښتل چې دا کار د دوی له حضور پرته د لویدیزو کمپنیو له خوا وشي. بل پلو ایران دې ته ښه کاندید و.

په ۱۹۹۲ کې د نجیب حکومت نسکور شو. هېواد په څو ډلو ووېشل شو، بیا هم دا پلان یواځې د تصور او نقشې تر کچې پاتې شو. پاکستان له مینځنۍ اسیا سره د رباني د حکومت د کندهار و هرات والیانو ګل اغا شیرزي او اسماعیل خان په توسط قراداد وکړ چې د دوی تجارتي مالونه به د کندهار او هرات له لوري تورغونډۍ ته صادروي او هم به له هغې خوا دا کا رکیږي، خو په سیمه کې د اړي ګړي له امله دغه کاروانونه تر کندهار ښاره هم ونه رسېدل، بلکې وړو وړو قوماندانانو چې د والي وس پرې نه رسېده، کاروانونه چور کړل.

د طالبانو له خوا د جنوب غربي سیمو له نیولو وروسته د سیمې هېوادونه یو ځل بیا مایوسه شول او دغه کار په ټپه ودرېد. کله چې طالبانو کابل ونیو څو

میاشتې وروسته د دې پروژې لپاره درې اړخیزه مجلسونه پیل شول. په ترکمنستان، پاکستان، سهیلي او شمالي امریکا کې د دې پروژې د اقتصادي او تخنیکي کار لپاره پروګرامونه جوړ سول، خو بیا هم کوم لیکلی قرارداد ونه شو. یوازې په هغه وخت کې د ارجنټاین یوې کمپني "بریډاس" په ترکمنستان کې د تفحصاتو او یو څه داخلي صادراتو په فعالیت پیل کړی و.

په سیمه کې سټلایټ او مسلکي سروې ښودلي وه چې د افغانستان په شمول دا سیمه د طبیعي معادنو په ځانګړي توګه نفتو او ګازو څخه ډکه ده. همدا وجه وه چې د لویو هېوادونو رقابتونه همدې سېمې ته راوړسېدل او د همدې موخې د لاس ته راوړنې په خاطر یې د خپل برخلیک لپاره ګړندۍ هڅې پیل کړې.

بل خوا د ترکمنستان نوي ازاد شوي هیواد غوښتل چې خپل طبعي منابع له روسانو په ازاده توګه، په خپل اختیار وکاروي او نړیوال بازار ورته ومومي، روسانو غوښتل چې د روسیې د چیچن او داغستان په حدودوکې تیرشوي پیپلاینونه د ترکمنستان دګازو لپاره لاره وګرځوي او دغه ګاز د روسیې له لارې اروپا ته تیرشي، ترڅو روسیه د ترکمنستان د ګازو ترانزیتي لاره شي.

د بریډاس د ارجنټایني کمپنۍ مشر کارلوس بلغیرونيCarlos Bulgheroni) ) د نوییمو کلونو په سرکې د ترکمنستان له ولسمشر نیازوف ترکمن باشي سره د تیلو او ګازو داستخراج په قراداد بریالی شوی و او خپل فعالیت یې پیل کړی و، خو بریډاس له مالي اړخه ځواکمنه کمپنۍ نه وه، ځکه یې سعودي چارواکي خپل پاټنران وګرځول، دوي د سعودي مالي مرستو ته اړتیالرله . خو دنل لیکې غزولو په اړه لاهم کوم تړون نه و شوی او یوازې خبرې پرې روانې وي، د سعودي د استخباراتو مشر ترکي الفیصل ترکمن باشي او بریډاس دواړوته دا اطمنان هم ورکړی و، چې دوي به د نل لیکي په غزولوکې پر افغانستان او

پاکستان خپل اغيز وکاروي. د مجاهدينو د حکومت پر وخت پاکستان او سعودي دواړو همدا هڅې پيل کړې، خو داخلي جګړې او دکار ابتدايي حالت لا د دې نه و، چې د نل ليکې غزولو پلان ترتيب شي، د ۱۹۹۴ په پای کې د طالبانو پاڅون په جنوب کې سر راپورته کړ او په ۱۹۹۵ کې چې طالبانو ډيرې سيمې ونيولې، بريډاس د رباني له دولت، دوستم او طالبانو درې واړو سره اړيکې ساتلې، چې په همدې وخت کې د يوې بلې امريکايي کمپنۍ لخوا له ترکمنستان سره خبرې پيل شوې. دا د "يونيکال" په نامه کمپنۍ وه چې مرکزيې د امريکا په ټيکساس ايالت کې و.

د يونيکال مشر "مارټي ميلر" د همدې کال په مينځ کې ترکمنستان ته سفر وکړ او په عشق ابادکې د امريکا د سفارت په مرسته يې د ترکمنستان مشر نيازوف ترکمن باشي دې ته تشويق کړ، چې له بريډاس کمپنۍ سره خپل کړی تړون لغوه کړي. ځکه چې د ميلي په وينا دا قرار داد د ترکمنستان لپاره په تاوان دي چې د ګټې ۷۵ فيصده به بريډاس شرکت ترلاسه کوي او ترکمنستان ته به ۲۵ فيصده ګټه ورکوي، دا د امريکا هغه تړون ته ډير ورته و، چې د شلمې پيړۍ په لومړی نيمايي کې يې له سعودي عربستان سره د تيلو د صادارتو په اړه کړی و. ميلر ترکمن باشي ته دا مشوره هم ورکړه چې که بريډاس له تړونه نه په شا کيدو، نو تاسو په ټيکساس کې د طبعي زيرمو د نړيوالو شخړو په محکمه کې ورباندې عريضه وکړې، هلته قاضيان زموږ خپل خلګ دي، پريکړه به ستاسي په حق کې وکړي، که چيري بريډاس خپل لګښتونه غوښتل نو دغه مبلغ به موږ ( يونيکال) ورکړو.

بل پلوته يونيکال د پاکستان حکومت ته د زياتې برخې منافعو په ورکړه، پاکستان هم له يونيکال سره مرستې ته تشويق کړ، کله چې د ۱۹۹۶م کال په پای کې طالبان د هيواد پر پلازمينه واکمن شول، نو دا و خت ورسره د دې موضوع

په اړه خبرې نيغې پيل شوې، طالبانو وويل موږ يوازې د ترانيزيتي هيواد په توگه د هر هغه چاسره همكاري كوو چې تركمنستان او واريدوونكې هيوادونه ورسره موافقه وكړي او زموږ هيوادته زياته گټه راكړي.

د ۱۹۹۷م كال د مى د مياشتې په څلورمه د بريډاس مشر د طالبانو په واكمني كې له افغانستان سره له تركمانستانه د وارېدېدونكي گازو په اړه د يوه قرارداد توافق ته ورسېد، چې له تركمانستانه به د دوه نيم ميليارده ډالرو په لگښت د دولس سوه كيلومترو په واټن د طبعي گاز نل ليكه وغځوي، خوتوافق نامه لا امظا شوې نه وه. په دې پروژه كې د بريډاس كمپنۍ رقيبان "يونيكال" امريكايي كمپنۍ او "ډلټا" سعودي كمپنۍ وې.

بل لور ته له دې لس ورځې وروسته د مى په څوارلسمه په عشق اباد كې د گډو گټو د هېوادونو (ايكو)غونډه وشوه. د غونډې غړي هېوادونه: تركمنستان، قزاقستان، تركيه، ازبكستان، ايران، پاكستان، كرغيزستان، تاجكستان، ازربايجان او افغانستان وو. په غونډه كې پينځلس فقريز پرېكړه ليک اعلان شو، چې په كې د ټولو غړو هېوادونو ترمينځ د اورگاډي د پټليو، پخو لارو غځول او له عشق اباده تر ايران او پاكستانه د تيلو او غازو نل ليكې، د برېښنا واردول او خپل مينځې تجارت اصلي ټكي وو.

د مى په پينځلسمه امريكايي رسنيو خبر وركړ چې د پاكستان او تركمانستان له خوا د گازو د نل ليكې تړون د يونيكال او ډلتا كمپنيو سره لاس ليک شوى چې هركال به تركمانستان پاكستان ته د گازو شل مليارده مكعبه متره گاز واردوي. دا به په ۲۰۰۲ كې څلوېښت مليارده مكعبه مترو ته ورسيږي. امريكا د پاكستان په توسط طالبانو ته وړانديز وكړ چې د پيپ لاين تېرولو پروژه دې يونيكال امريكايي كمپنۍ ته وركړي.

دا وخت نور د هیوادونو او کمپنیو رقابت زور واخیست! د جولای په دوه ویشتمه د یونیکال او ډلتا د شرکتونو غړو په مزارشریف کې د شمال ټلوالې سره وکتل، چې د شمال له لارې د پایپ لاین په تېرېدو کې ورسره مرسته وکړي. د مزارښار د مخالفې ټولوالې لخوا خپله پلازمینه نومول شوې وه، د ټلوالې غړو د کمپنیو هیئت ته ډیر تود هرکلی وکړ، په سنګارشویو اولباسي انجنو یې د خپلې پلازمینې په انګړکې هیئت استقبال کړ.

په دوهمه ورځ درې‌ویشتم جولای په اسلام اباد کې د درېوو هیوادونو پاکستان، افغانستان او ترکمنستان ترمینځ د ګازو د نل لیکې د تېرېدو په اړه، د معادنو وزیر مولوي احمدجان، د پاکستان د مواصلاتو وزیر او د ترکمنستان د تیلو او ګازو د وزیر  تر مېنځ ناسته وشوه.

د اګست په اته ویشتمه د افغانستان حکومت یو ځل بیا هیله ښرګنده کړه، چې د بریډاس له کمپنۍ سره به ډېر ژر له ترکمانستانه د ګازو د نل لیکې قرارداد لاسلیک کړي.

 مولوي احمدجان چې  دا وخت یې په دې اړه  ارجنټاین ته سفر لاره، له هغه لورې سعودي ته راغي او د سعودي له چارواکو سره په ناسته کې د سعودي د استخباراتو  یو لوړ رتبه مقام ورته ویلي و چې تاسو د بریډاس سره تړون امظا کړئ! ځکه چې بریډاس کارکول غواړي او یونیکال د کار ځنډول غواړي او که چیرې تاسو له یونیکال سره تړون وکړئ، نو امریکا یو طاقت دی، هرڅه به د فشار له لارې درباندي مني او  د یو ازاد پاټنر حثیت به نه درکوي، هغه په مثال کې خپل هیواد یاد کړ چې اوس د امریکا له خوښې پرته د تیلو په قرادادونو کې هیڅ  څه نشوای کولاي .

د طالبانو مشرانو ترکمنستان او پاکستان ته بیا بیا په همدې موضوع سفرونه وکړل. له بهرنیو کمپنیو سره یې ناستې وکړې، خو د یونیکال او بریډاس

مسابقه د کار د پیل خنډ وه. ترکمنستان داوخت له یونیکال سره قرارداد ته میلان لاره او پاکستان هم ورسره موافق و. د دغو دواړو هېوادونو له توافق پرته افغانستان هېڅ هم نه شوای کولای، ځکه چې افغانستان یواځې د یوه ټرانزیټي لارې په توګه د دې پروژې غړی و.

مولوي احمدجان وایي د سعودي چارواکې داخبره چې یونیکال کار ځنډول غواړي تر ډېره حده رښتیا شوه، د احمدجان په وینا یونیکال تر ډېره یوه استخبارتي پروژه وه چې له یوې خوايې یې غوښتل چې د ترکمنستان تیلو اوګازو طبعي زیرمې د امریکا له نفوذه خارجې نشي اوله بلې خوايې غوښتل چې د طالبانو په واکمني کې د ګازو پیپلاین د افغانستان له لارې ونه غزول شي،چې له همدې امله ترهغه وخت په میدان کې ول چې ترڅويې د بریډاس کمپنۍ له میدانه ویسته، بیایې خپل دفترونه په افغانستان کې وتړل.

کله چې د یونیکال شرکت په نوې بڼه په یوه اتحاد کې راوړاندي شو نو ترکمنستان یې هم ملاتړ وکړ، ترکمنستان دا وخت د بریډاس نه په ټیکساس کې د یونیکال په مرسته دعوه ګټلې وه او بریډاس شرکت یې له میدانه ویستلی و آن تردې چې د څه مودې لپاره یې د بریډاس په استازو د ترکمنستان ویزې هم بندې کړې.

د ۱۹۹۷م د اکتوبر په درېویشتمه د معادنو او صنایعو وزیر مولوي احمدجان په چورلکه کې د ترکمنستان پلازمینې عشق اباد ته لاړ او د ترکمنستان له خارجه وزیر شیخ مرادوف سره یې وکتل. مرادوف د شرکتونو له دې نوې اتحاد سره ګډ کارته افغان حکومت هم دعوت کړ، د طالبانو په مشري افغان حکومت فکر وکړ چې بله لاره نده پاتې،ځکه یې هوکړه وکړه.

د اکتوبر په پینځه‌ویشتمه ترکمنستان د شرکتونو له دغې سترې اتحادیې (international semposium) سره د تړون لاسلیک اعلان کړ، چې په دې

اتحادیه کې د امریکا یونیکال، د چاپان هونډا، د سعودي عربستان ډلټا او د جنوبې کوریا هونډایي کمپنېو ګډون درلود او د روسیې د "ګازپروم" شرکت ته هم لس فیصده برخه په کې ټاکل شوې وه، خو روسانو په دې قردادکې له ګډون نه انکار کاوه. د قرارداد له مخې د ګازو نل لیکه به لومړی د پاکستان ملتان او بیا هند ته تېرېده، امریکا او پاکستان هم په دې نوي ترړون موافق و.

د همدې کال د ډسمبر په لومړیو کې د افغانستان د حکومت یو هیئت د معادن او صنایعو وزیر مولوي احمدجان په مشری د یونیکال کمپنی د مشر په بلنه د امریکا ټیکساس ایالت بوسټن ښار ته سفر وکړ او د کمپنی له مشرتابه سره له اوږدو ناستو وروسته راستون شو.

له یونیکال او بریډاس سره چې کوم قراداد لاسلیک کېدو ته چمتو و ، هغه دافغانستان لپاره خورا ګټور و. د معادنو وزارت د سرچینو له قوله د دې قرارداد څه مادې په دې ډول وې:

۱- په دې ستره پروژه کې کار کوونکي به له مسلکي کسانو پرته نور ټول افغانان وي چې په دې توګه به شپېته زرو کسانو ته د کار کولو زمینه برابره شي.

۲- نل لیکه به تر دېرشو کلونو پورې د پروژه تطبیقوونکي شرکت ملکیت وي، افغانستان ته به د هر متر مکعب پر سر ټرانزیټ فیس ورکوي چې دکال بیه یې ۳۵۰ میلیون ډالرو ته رسېږي.

۳- افغانستان کولای شي د دې نل لیکې له لارې خپل ګاز بهر ته صادر کړي، البته دېرش کاله وروسته به نل لیکه په بشپړ ډول د افغانستان ملکیت وي.

۴- له نل لیکې سره شاوخوا په دېرش کیلومتری کې پرتو ټولو کلیو ته به ګاز ورکوي او د ضرورت په ځایونو کې به د انرژی د تولید توربینونه نصب او له هغو څخه به نیږدې سیمو ته انرژي تقسیم شي.

٥- له شبرغان څخه به یوه نل لیکه له دې عمومي نل لیکې سره وصلیږي، او له دې نل لیکې نه د داخلیدونکې ګاز په اندازه ګاز په د کندهار په حدودکې په نویو فرعي نل لیکوکې د هېواد نورو ښارونوته ورکول کیږي.

٦- افغانستان سره به د نفتو او تېلو د ځاګانو په بیا رغونه او پاکولو کې مرسته کوي، د شبرغان د ګازو تصفیه خانې به ترمیموي او همدې ته ورته نورې په لس ګونو وړې او عام المنفعه پروژې به په کار اچوي.

د ۱۹۹۸ کال په لومړیو کې له افغانستان سره د کوم تړون له امضاء کېدو وړاندې یونیکال په کابل او کندهار کې خپل دفترونه خلاص کړل او د دې پروژې د تطبیق پلان ګذاري یې پیل کړه.

له یونیکال سره د همکارۍ مزی هغه وخت سست شو، چې د اسامه بن لادن پر سر له امریکا سره لومړۍ ناندرۍ پیل شوې. له شکه پرته په دې شرکت کې هغه افغانان کم نه وو چې له سي آی اِې سره یې تړاو درلود او ډېری یې د امریکا له یرغل سره پر کلیدي پوستونو واکمن شول، لکه د سترې محکمې پخوانی مشر عبدالسلام عظیمي، خلیل زاد ،حامدکرزي او لسګونه نور.دغه افغانان څوک د عظیمې غوندي د کمپنۍ رسمي مامورین وو، څوک ناظرین ول او څوک مشاورین وو.

د سي آی اې په خپرو شویو اسنادو کې دا هم راغلي چې په ۱۹۹۷م کال کې د یونیکال کارکوونکو دوی ته په کندهار کې د اسامه بن لادن د شتون او ګرځېدو راګرځېدو په اړه معلومات ورکول، چې له دې سره د دې شرکت اهداف او اغراض نور هم مشکوک ګرځي (د ګوسټ وار په نامه کتاب نه).

بالاخره د امریکا له خوا د کروز توغندیو له برید سره چې د ۱۹۹۸په اګست کې تر سره شو، یونیکال د نل لیکې د ځنډولو رسمي اعلان وکړ، چې بیا د امریکا

له خوا پر افغانستان د بندیزونو له اعلان سره یونیکال خپل دفترونه په افغانستان کې وتړل.

د یونیکال له خوا د ځنډ له اعلان نه وروسته ښکیلې غاړې مجبوره شوې چې یو ځل بیا د بریډاس شرکت ته مخ واړوي، دا وخت بریډاس په یونیکال باندې په نړۍواله محکمه کې دعوه دایره کړې وه، خو تردې وړاندې یونیکال په ټیکساس کې په یوه بله محکمه کې د بریډاس شرکت د ترکمنستان په توسط محکوم کړی و.

د ۱۹۹۹ م کال د اپریل په نهه‌ویشتمه د پاکستان پلازمېنه اسلام اباد کې د افغانستان د معادن او صنایعو وزیر احمدجان، د پاکستان د د تېلو او طبعي منابعو وزیر چوهدري نثارعلي خان او د ترکمنستان د صدر اعظم د مرستیال ترمینځ یو ځل بیا د ګازو د نل لیکې پر تړون له سره بحث و شو.

د همدې کال د ستمبر په میاشت کې د معادن اوصنایعو وزیر احمدجان له ترکمنستان او پاکستان سره د یوې چینایي کمپنۍ د ممکنه تړون خبر ورکړ چې د بریډاس او یونیکال په عوض به دغه کمپنۍ د نل لیکې غځولو پروژه اخلي، همدارازیې د مالیزیا له پیټروماس شرکت سره هم خبره روانه کړې وه، خو په نومبر کې د امنیت شورا له خوا د بندیزونو لګېدلو دا هر څه په ټپه ودرول.

ښاغلی ملاعبدالسلام ضعیف صیب چې د معادن او صنایع مرستیال وزیر پاتې شوی ګمان کوي چې د امریکا د بندیزونو اصلي علت له یونیکال سره د قر داد نه کول دي. هغه په ۲۰۱٦ کې په دې اړه د ټاپي پروژې په مناسبت په خپله ځانګړې لیکنه کې لیکلي:

په ۱۹۹۹ ز کال کې هغه وخت چې زه د معادن او صنائع وزارت معین وم، موږ په عشق اباد کې د دې پروژې په اړه مجلس درلودی. درې ورځې موږ د درو هېوادونو استازو خپلمینځي او دا رنګه د هغو کمپنیو استازو سره مجلسونه درلودل چې په دغه پروژه کې یې د اشتراک لېوالتیا لرله. که څه هم تر دې وړاندې یو ځل ما په دې اړه سفر کړی و او د دې پروژې اړوند ډېرو نورو مسؤلینو هم سفرونه او مجلسونه کړي وو، مګر زموږ د ۱۹۹۹ کال ناسته وروستۍ وه. د دې مجلس په دوهمه ورځ د یونیکال کمپنۍ په رول باندې ډېرې خبرې وسوې. پاکستان په دې باندې زیات ټینګار کاوه چې دا پروژه باید یونیکال مخته یوسي، ترکمنستان یونیکال سره لیوالتیا نه ښودله او د بریډاس کمپنۍ ته یې تر یونیکال ترجیح ورکوله. موږ په اوله مرحله کې د پاکستان لوری ونیو. د شپې لپاره د ترکمنستان ترکمن باشي یوازې موږ ته یو خاص دعوت راکړ. د ډوډۍ د خوړلو په وخت کې هغه د افغانانو د احسان د یادونې سربېره درې مهمې خبرې موږ ته وکړې. تر ډېره دا هغه اسرار وو چې هغوی په عام مجلس کې نه سو ویلای:

لومړی: هغه وویل چې موږ د افغانانو د احسان پوروړي یو. دا چې ترکمنستان ازادي واخستله او موږ به کله هم د دې بدله ورنه کړای سو. هغه وویل زما له خوا به د تحفې په توګه دوه کاره افغانانو ته خامخا کیږي. اول دا چې زه به تر هغه ځایه چې وتوانیږم د افغانستان ځینو سیمو ته برق ورکوم او دا به زما سوغات وي؛

دوهم: که دغه د ټاپي پروژه هر څومره هم ځنډیږي دا به اخیر د افغانستان له لارې کیږي که څه هم ځینې هېوادونه دا کار نه غواړي؛

دریم: هغه وویل تاسو ته به دا حساسیت معلومیږي یا نه؟ خو موږ ته پوره معلومیږي هغه دا چې موږ یو کوچنی او بې دفاع هېواد یو. تر اوسه هم موږ د روسانو تر تاثیر او نفوذ لاندې یو، روسان په هیڅ قیمت نه غواړي چې د امریکا پښې دې همدې منطقې ته راداخلې سي، نو که تاسو هم د پاکستان غوندې د یونیکال غوښتونکي سئ بیا موږ ته دا په ګټه ده چې دا پروژه ځنډیږي، ځکه چې زموږ بقا او امنیت زموږ ملي موضوع ده. په سبا ورځ موږ

هم د ترکمنستان وړاندیز تایید کړ او د بریډاس کمپنۍ سره مو یو تفاهم لیک یا Memorandum هم لاسلیک کړ، کوم چې امریکایان یې په غوسه کړه.

**دا چې امریکا دې یوازې د یوې کمپنۍ پر سر دا دریځ نیولی وي، زما په نظر یو سطحي تعبیر او محدود فکر دی. په دې کې شک نه شته چې د منځنی اسیا طبعي منابع د امریکا لپاره هدف و او دی، خو د دې ترڅنګ امریکا په سیمه کې ډېر نور اهداف هم لرل، چې په وړاندې یې د طالب د حکومت سستم او کلکه دیني بڼه خنډ وه. امریکا د مجاهدینو له بري وروسته د تل لپاره افغانستان د روسانو لپاره بایللې او د ځان لپاره ګټلې مړۍ ګڼله چې د مجاهدینو خپل مینځي کشمکش دا کار نورهم اسانه کړی و، خو د طالبانو کلکه اسلامي واکمني، له امریکا کرکه او له غربه بې پروایي امریکا ته د لیدلیو خوبونو سرچپه تعبیر وو چې په هېڅ ډول یې نه شوای زغملای. که څه هم طالب له امریکا سره د دښمنۍ سوچ او اراده نه لرله خو سر یې هم نه ورته ټیټاوه.**

**د ملا دادالله بې وسلې کول او پر کور کېنول**

**د طالبانو له خوا د کابل له نیولو وروسته چې کله  د ملا بورجان، ملا مشر او ملا محمد په څېر اوسپنیزو خو معتدلو قومندانانو نه طالبان محروم شول، دا وخت د کابل په شمالي کې د جګړې نامتو قومندانان ملافاضل او ملا دادالله وو. که څه هم د ملا نعیم، ملاعبدالرزاق نافذ، ملابرادر، ملاعبیدالله، امیرخان حقاني، مولوي جلال الدین حقاني او ملاسیف الرحمن منصور په څېر تکړه قومندانان هم تر چا کم نه وو، خو د کسانو تعداد او شهرت د دغو دوو قومندانو ډېر و، چې یو ملا دادالله او بل یې ملا فاضل و. دوی ډېرې کمې دیني زدکړې کړې وي، خو په جګړه کې خورا زړور او د کلک هوډ خاوندان وو. د دوی په وسله‌والو کې د مدرسې د طالبانو ترڅنګ د خپلو سیمو عوام هم زیات وو.**

ملا دادالله اخوند د زياتو ملګرو له لاسه ورکولو او پرلپسي جګړو له جنګ سره ډېر عادي کړی و، چې له امله يې سخت زړی، بې پروا او مغرور مزاجه قوماندان و.خو د دې ترڅنګ هغه په طالبانو کې د يوه فولادي جنګي قايد او فاتح سرلښکرپه توګه هم پيژندل کيده، چې شتون يې طالبانو ته د جګړې د بري په معنا و، له همدې امله دادالله فکر کاوه چې همدی دی چې جګړه ګټلای شي.

له دې وړاندې هم څو ځله ملا محمد عمر ته د ملا دادالله د سرکشۍ او خودسرۍ خبرونه رسېدلي وو. د تحريک له اصولو سرغړونه او پر رحم نه کولو تورن و، خو چې کله يې د ۱۹۹۸م کال په په پسرلي کې د کابل ولايت د يوې ولسوالۍ ولسوال په عام محضر کې وډباوه، ملا محمد عمر ته نور د هغه چلند يقيني شو. سمدستي يې دفاع وزارت ته امر وکړ، چې دادالله په څو ساعتونوکې بې وسلې کړئ.

دا يوه داسې خبره وه چې هغه وخت ظاهرا ناشونې ښکارېده. دفاع وزير ملا عبيدالله د جګړې لومړۍ کرښې ته له وسله‌والو سره ورغی، ملا داد الله پر يوې غونډۍ ناست و، د جګړې قومانده يې سمبالوله.

ملا عبيدالله ورته په ساده الفاظو وويل: انډيواله ستاسي جهاد او مېړانه هر څه ما ته معلوم دي او زما انډيوال يې، خو ملاصيب امر کړی، بله خبره په کې نه ځايېږي، ډېر کم وخت لرئ، انډيولان دې بايد سمدستي وسلې راوسپاري او ته کندهار ته خپل کور ته ځان رسوه. دا د مشر امر دی!

د ملا دادلله بڼه بدله شوه. له يو څه فکر او غور وروسته يې پر خپلو وسله‌والو غږ کړل: ملاصيب امر کړی، ټول وسلې او موټرونه وزارتِ دفاع ته وسپارئ.

يو ساعت کې دننه د هغه ټول وسله‌وال بې وسلې کړای شول او سلګونه نقليه وسايط هم ترې تسليم کړای شول.

**ملا دادالله د خپلې اورپ توپانچه هم وسپارله!**

**په سبا موږ په کندهار کې د هغه موټرونو د اوږده قطار ننداره کوله چې يواځې يو يو ډرايور په کې ناست و، او د مشرتابه دفتر ته يې تسليمي ورکوله.**

**هغه ستر سرای چې دغه موټران په کې درول کېدل، داسې ښکارېده، لکه د مستعملو موټرانو يو ستر نندارتون، چې ستر او واړه مستعمل موټران په کې ولاړ وي.**

**تقريبا له شپږو مياشتو وروسته، د امارت د ستر مفتي مولوي عبدالعلي ديوبندي په مشرۍ د علماوو يوه وفد ملا محمد عمر ته د دادالله د ښښلو وړانديز وکړ. ملا محمد عمر د علماوو خبره په مشروط ډول ومنله. ملا دادالله يې په دې شرط وبانښه چې اينده به هيڅ خودسره حرکت او بې له اجازې اجراءات نه کوي.**

**ملا محمد عمر قومندانانو ته دا خبره ډېره کوله؛ هرڅوک چې کبر اوغرور کوي اسلام هغه ته ضرورت نه لري، ځکه خو موږ هم د مغرورو او کبرجنو خلکو جهاد او ميړانې ته اړتيا نه لرو.**

**د شمالي ولايتونو وروستۍ او ربنتينې فتحه**

**د ۱۹۹۷ کال د مې د مياشتې سترې ماتې او زرګونو تلفاتو طالبان بيا هم د شمالي ولاياتو له فتحې را ونه ګرځول. د همدې کال په ستمبر کې طالبانو دوباره مزار ښار ته دننه شول خو د دوستم د قواوو له خوا بېرته شاته کړای شول. طالبانو د ۱۹۹۸ م ميلادي کال تر جولای پورې د کندوز له مرکزه پر شمال ځان يوه ستر بريد ته چمتو کړ اوهم يې د لويديځ شمال په کرښه کې د هرات او بادغيس له خوا خپل جګړه‌ييز پلانونه منظم کړل.**

د ۱۹۹۸جولای د میاشتې په دولسم (۱۳۷۷د جنگابښ یوویشتمه) غرمه د کندهار له دود سره سم د خوب په خونه کې ویده وم، چې د کندهار ښار پر فضا د جیټ الوتکو د ټیټ پرواز تیز غږ له خوبه راویښ کړم. دا د هغو دوو پیلټوټان همېشنی فساد و چې د کومې سترې فتحې پرمهال به یې د ښار پر سر خپلې الوتکې دومره ټیټې کړې چې د غوږونو پردې به یې ولړزولې او مشرتابه ته به یې اشاره ورکړه چې مبارک دې شه!

پوه شوم چې د الوتکو ټیټ پرواز د کومې سترې سوبې زیری راوړي. په چټکۍ مي خپله وړه مخابر په زوره کړه چې د مشرتابه له مرکزي مخابرې راباندې چیغې وهل کېدې. عبرت، عبرت (د مخابرې کوډ مې و) زما له ځواب هغوی پوه شول چې ویده وم. د مشرتابه د مرکزي مخابرې مشر حاجي لالا راغبرګه کړه! یارانو دې فاریاب لاندې کړ اوته خوبونه کوې!

سمدستي دفتر ته لاړم د تلفونونو شرنګهار وو. د میډیا استازو او ادارو معلومات غوښتل. تر ماښامه مو رسنیو ته جزیات ورکړل. سبا ته مو د مشر له خوا د هغه په هدایت یوه اعلامیه خپره کړه چې تاجکستان او ازبکستان ته یې خبرداری ورکړ چې له خپلو هوایي اډو د ټلوالې الوتکو ته د بمبار اجازه ورنه کړي.

د مشر دوهمه اعلامیه دا وه چې طالبان دې له جنګي اسیرانو سره هیڅ ډول ناوړه چلند نه کوي.

طالبانو د فاریاب یو شمېر مهمې سیمې تصفیه کړې او د ولایت په مرکز کې یې د امنیت مسئول او نور چارواکي وټاکل. څو ورځې وروسته د همدې میاشتې په اتلسمه د دوستم او متحدینو قواوو د فاریاب "جمعه‌بازار" سیمه بېرته لاندې کړه. د دوستم الوتکو سخته بمباري جاري ساتلې وه چې ګمان

کېده له ګاونډي هیواده یې پرواز کاوه. طالبانو د ستڼګر توغندیو مسلکي له څو توغندیو سره د جګړې کربښې ته واستاوه. پر سبا یې د دوستم یوه جیټ الوتکه د بمبار په حال کې په نښه او رانسکوره کړه چې له دې سره بمبار نور ډېر کم او محدود شو. طالبانو بېرته د جمعه بازار سیمه ونیوله او پرمختګ ته یې دوام ورکړ.

د جولای په شپږویشتمه د غور او فاریاب ترمینځ غرنۍ سیمه کې د حکومت د مخالفو وسلهوالو یوه لویه ډله طالبانو ته تسلیم شوه چې شمېر یې پنځو سوو تنو ته رسېده.

د جولای په دېرشمه طالبانو د فاریاب پاتې مهمې ولسوالۍ دولت اباد، فیض اباد او خواجه موسی ونیولې.

د اګست په دوهمه له خونړۍ جګړې وروسته طالبان د جوزجان مرکز شبرغان ته دننه شول. له مزارشریف نه د خارجي موسساتو کارکوونکي او د ایران د سفیر مرتضی حدادي په مشرۍ د ایران ټول دیپلوماتان په الوتکو کې ووتل.

د اګست په دریمه طالبانو پر بلخ ولایت د کندوز او شبرغان له لوري غبرګ تعرضونه پیل کړل. دا وخت موږ د مشر له خوا اعلامیه خپره کړه چې د وسلې سپارلو په صورت کې ټولو مخالفینو ته عمومي عفوه ده. خو له بده مرغه ورسته بیا دا خبره معلومه شوه چې د مشر له فرمان نه په سرغړاوي د عبدالمنان نیازي او څو نور و وړو قوماندانانو له خوا د دښتې لیلي د انتقام په جذبه په جګړه کې له نیول شویو جنګالیو نه د پام وړ شمېر جنګي اسیران قتل شوي وو.

د اګست په شپږمه د بلخ ولایت دولت اباد ولسوالي ونیول شوه او طالبانو د ښار لور ته پرمختګ جاري وساته. د اګست په اتمه (د زمري اولسمه) طالبان د

تاشقرغان او دولت اباد له لوري د ملابرادر او ملا محمد فاضل په پوځي مشرۍ مزار ښار ته دننه شول او د سهار په اتو بجو د مزار ټول ښار د طالبانو تر واک لاندې راغی.

د اګست په یوولسمه له یوې ورځې پرلهپسې جګړې وروسته د تخار ولایت مرکز تالقان ښار ته له کندوزه د ملا محمد نعیم په مشرۍ طالبان ننوتل چې په دې سره طالبانو د شمال ټول مهم ولایتونه بادغیس، فاریاب، سرپل، جوزجان، بلخ، سمنګان، بغلان، تخار او کندوز تر خپل واک لاندې راوستل او د امریکا تر یرغله ورباندې کلک واکمن پاتي شول، چې مخالفینو یې بیا د امریکا تر یرغله سر پورته نه کړای شو.

په دیارلسم ستمبر د ملابرادر اخوند په مشرۍ طالبانو د بامیانو مرکز ونیو او څو ورځې ورسته یې پاتې سیمې هم تصفیه کړې.

د جنرال دوستم یو شمېر قوماندانان چې له فاریاب او جوزجانه سرپل ته تېښتېدلي او هلته پټ شوي وو، طالبانو په سرپل کې د هغوی پلټنه پیل کړه چې د اګست په لسمه یې همدغه د دوستم درېدېرش جنګي قوماندانان په چادریو کې ونیول او زندان ته یې یوړل.

د مزارشریف د نیولو په شپه د ایران کونسلګرۍ نه یوولس تنه ایرانیان ویستل شوي وو او ورک وو. ایران د پاکستان او ملګرو ملتونو د سازمان په توسط د خپلو کسانو د موندلو غوښتنه کوله. د مشرتابه په امر د دې کسانو په اړه لټون او څېړنه پیل شوه. له څو اونیو وروسته یوه کنده کې یوولس موندل شوي مړي، همدغه ایرانانیان وختل چې له امله یې ایران د افغانستان پر ضد د ښکاره دښمنۍ اعلان وکړ او د افغانستان په سرحدونو کې یې د جګړې په دود نظامي قطعات ځای پر ځای کړل او جنګي مانورې یې پیل کړې.

د ستمبر په لسمه د ایرانیانو مړي وموندل شول او د ستمبر په یوولسمه د افغانستان حکومت یوولس وژل شوي ایرانیان ایران ته رسما وسپارل.

### د فتوحاتو له پراخیدو سره د مسلکي او وړ کدرونو کمښت

د مزار له ورستۍ فتحې وروسته طالبانو تقریبا دا افغانستان تر ۹۰ فیصده په زیاته برخه واکمن شول. یو درجن نوي ولایتونو والیانو،امنیه قوماندانانو،ملکي ریسانو، قاضیانو او د ولسوالیو ولسوالانوته اړتیالرله، چې طالب مشرتابه د تلپاتي عادت له مخې ډیر ژر ټاکل. خو په مسلکې اداروکې د کار ماهیت او معیار په ډیرو برخو کې ستونځې لرلې، د والي، امنیه قوماندانانو او قاضیانو په برخه کې طالبانو اساسي ستونځې نه لرلې، ځکه چې طالب چارواکو په دغو دندوکې وړتیا لرله، خو په ملکي ادارو او مسلکې ارګانونو کې طالبانو د انتخاب لپاره دقت نه کاوه، اکثره وخت به په نویو مفتحو سیمو کې د زون مشرانو او والیانو خپل عادي ملګري مسلکي ادارو ته ټاکل، چې بیا به یې په مسلکې چارو کې د پخوانیو حکومتونو په تجربه کارو مامورینو پرده کیده، چې دا د حکومتولۍ په برخه کې وړوکې اشتباه نه وه.

بل خوا د شمال په نویو نیول شویو ولایتونو کې به اکثره نظامي کیفیت پر ملکې حکومت داري غالبه و.که له دې ور هاخوا د هیواد پلازمینې ته پام واړوو؛ نو هلته هم د کابل پرده په یو څو ذهینو طالب چارواکو خوندي وه. لکه په لوړ پوړو چارواکو کې مولوي عبدالکبیر، مولوي سید محمد حقاني او مولوي متوکل او یا هم د معینانو او منځني کچ چارواکو په کچه د صحت عامه مرستیال وزیر ډاکټر فضل رباني او د خارجه وزارت معین شیر عباس ستانکزی، یا کابل شاروال حمدالله نعماني او ځینې نور، چې له اداري او مسلکې چارو سره عیار

**او بلد و او یا یې د خپل ذهانت پر مټ په کمه په موده کې ځانونه عیار کړای شول.**

**مولوي عبدالکبیر د منظم اداري چوکاټ د رعایتولو او په کار کې د لوړ ابتکار او ذهانت په لرلو په طالب اداره کې طاق سړی و، د چارو د ادارې له مرستیال محمد حسین مستسعید نه مې اوریدلي چې د پیچیده دولتي کارونو په اړه به مسلکي مامورین د نورو مشرانو په پوهولو ستړي کیدل، خو له مولوي عبدالکبیره به بیا مامورین په په ویره کې و، ځکه هغه مسلکي چارې دقیقې تعقیبولې او په هرڅه به وار له مخه خبر و. مولوي عبدالکبیر پر یوه وخت د وزیرانو شورا مرستیال، ننگرهار والي او مشرقي زون مشر و، خو پر دې برسیره کله چې دفاع وزیر زخمي شو، نو ملا محمد عمر د څه وخت لپاره مولوي عبدالکبیر پر یادو دندو برسیره په موقت ډول د دفاع وزارت سرپرست هم وټاکه، کله چې یې د دفاع وزارت دسنبالیدو ورته وویل، نو مولوي عبدالکبیر پر تلفون ملا محمد عمر ته وویل: «کومې دندې چې دي راله غاړې کړې، نو پر هغو مې هم خلک نه زغمي، دفاغ وزارت که راکړې نو هسي نه زړونه نور هم راته تنگ شي» (اشاره یې ځینې سمت پرسته طالب چارواکوته وه). ملا محمد عمر ورته وویل مولوي صیب! ترڅو چې زه یم، بې فکره اوسه! ربښتیا هم ترڅو چې ملا محمد عمر په صحنه کې و او مولوي عبدالکبیر ورسره اړیکه کې و، نو مولوي عبدالکبیر یو باصلاحیته او واکدار طالب مشر و، خو چې ملا محمد عمر له صحنې غایب او اړیکه یې محدوده شوه، نو مولوي عبدالکبیرته له هر لوری د خنډونو رامخه شوه، چې له امله یې له ذهني او رواني ستوماني سره مخ شو. خو بیاهم د غره په څیر په خپل ځای  او موقف دروند پاتې شو او کله یې هم د اختلاف او انحراف کومه  وړه جمله له خولې ونه وته! مولوي کبیر په طالب حکومت کې د منظم اداري چوکاټ، اقتصادي پروژو**

لکه د لویو لارو پخول او همدا راز د ولسي شوراګانو د جوړولو پلان جوړونکي ګڼل کیده، خو د هغه د تصور او ابتکار د پلي کیدو په وړاندي عملي خنډونو ول.

ذهین طالب چارواکې اکثره د مدرسو ځوان فارغین ملایان و، دوي پر دې علاوه له دیني او روحاني اړخه هم د ډاډ وړ وو. طالبانو په پخپل حکومت کې هغه دینې فارغان ډیر کم لرل، چې له افغانستان او پاکستان نه پرته یې په نورو هېوادونو کې زده کړې کړې وي. د بیلګې په توګه د ګوتو په شمار د سعودي عربستان د دیني جامعو فارغین وو چې ښه رول او ښه دیني صبغه یې لرله، همداراز د مصر د الازهر د پوهنتون یو شمېر لیسانس لرونکي هم په ټیټو ځوکیو کې وو، چې اکثره یې د حرکت انقلاب اسلامي د تنظیم له خوا د افغان شوروي جګړې پر مهال مصر ته استول شوي و. خو له بده مرغه د الازهر شریف ستر نړیوال دیني مرکز ته د افغان جهاد پر مهال د سیاسي روابطو پر مټ په رعایتي بورسونو تللي افغانان د ازهر علمي استازولي نشوای کولای. دغه ډله ازهریان چې په طالب حکومت کې یې کار کاوه، د مصر د کوڅو له عامیاني عربي، د اسکندریې د چکرونو او د اُم کلثوم له سندرو ورها خوا یې دازهر کومه علمي صبغه نه تمثیلوله او نه پکې د ربښتینو دینې رجالو دیانت او روحانیت تر سترګو کیده. د دغه حرکتي ازهریانو مشر د مولوي محمد نبي زوي محمد شریف و، چې له ازهر نه له راتګه وروسته یې له یوې مشهورې افغان سندر غاړې سره له ځو کاله یارانې وروسته واده وکړ او د ازهر ملګري یې قاسم حلیمي او رحیم الله حنفي هم ورسره په دې راز اوجریان کې ول!

قاسم حلیمي او رحیم الله حنفي د طالبانو د حکومت د خارجه وزارت په چوکاټ کې د رئیسانو په توګه دندې لرلې.

په ټولیزه توګه د طالبانو په اداروکې له مسلکي ضعف سره سره په حیرانوونکې ډول نسبي اداري شفافیت او مسئولیت ترسترګو کیده، چې ښایي لامل به یې د چارواکو شخصي دیانت او ورسره د مشرتابه کلکه محاسبه وه.

# څلورم څپرکی

**امریکا سره د شخړو پیلامه، اسامه بن لادن او القاعده**

**اسامه بن لادن چې پوره نوم یې "اسامه بن محمد بن عوض بن لادن" دی، د سعودي د یوې یمني الاصله بډایه کورنۍ غړی و. د جدې د ملک بن عبدالعزیز پوهنتون نه یې په اقتصاد کې ماستري کړې وه. په افغانستان کې د شوروي یرغل په خلاف د افغان جهاد له بهرنیو مسلمانو ملاتړو و او د مشهور فلسطیني مفکر عبدالله عزام سره یو ځای یې د پاکستان په خاوره کې د عربو ځوانانو د تربیت مرکزونه او دفترونه لرل. د هغوی اصلي مشر عبدالله عزام و چې د یوې توطیې په ترڅ کې له خپلو غبرګو زامنو سره په پېښور کې ترور کړای شو. اسامه هغه وخت یو مهاجر ځوان و او د افغانستان په داخل کې یې د روسانو او روس پلوه نظام پر ضد جګړو کې په خپله هم برخه اخیسته.**

**هغه وخت د افغانانو مرستې ته راغلي خارجي مجاهدینو د عبدالرب الرسول سیاف لوري ته ډېر میلان درلود، ځکه چې سیاف د دوی د خوښې شعارونه ورکول او د دوی تر منځ یې پراخ نفوذ پیدا کړی و. بل پلو ته د سعودي استخباراتو او مرسته کوونکو ټولنو هم پر سیاف پانګوونه کوله.**

**کله چې د شوروي ضد جهاد له اختتام سره اسامه خپل وطن سعودي ته وګرځېد، نو د ۱۹۹۰ کال داګست پر دویمه صدام پر کویټ برید وکړ. سعودي له امریکا مرسته وغوښته. امریکا ستره پوځي بحري قوه د سعودي حدودو**

کې ځای پر ځای کړه چې په دې سره د سعودي ځینو علماوو او غرب دښمنه طبقې د سعودي پر حکومت اعتراض وکړ، چې امریکايي قواوې د سعودي خپلواکي تهدیدوي.

د دې خلکو په سر کې اسامه بن لادن هم و چې حکومت ته یې وړاندیز وکړ چې دوی به د سعودي د دفاع لپاره د عربو مجاهدینو یو ځواک ترتیب کړي. سعودي دې امریکايي قواوو ته د راتګ دعوت او اجازه نه ورکوي چې دا به بیا د تل لپاره د سعودي په حدودو کې پاتې شي، چې د اسامه دا خبره بیا ربښتیاهم شوه. سعودي حکومت اسامه له خپلې خاورې وشاړه او د هغه ډېرى ملګري او علماء یې بندیان کړل.

اسامه سوډان ته لاړ. د سوډان حکومت له اقتصادي پلوه کمزوری و. اسامه هلته اقتصادي پروژې پیل کړې چې په دې کې د لویو لارو جوړل هم شامل و. کله چې پر سوډان د سعودي او امریکا له خوا فشارونه زیات شول، اسامه افغانستان ته مخه کړه. د ۱۹۹۶م کال په پسرلي کې د ننګرهار څو تنه قوماندانان سوډان ته په یوه کانفرانس کې د شرکت لپاره لاړل. په دې کې د استاد سیاف قوماندان سازنور، د حزب قوماندان فضل الحق مجاهد او د مولوي خالص قوماندان انجنېر محمود او د فضل حق مجاهد ترجمان صفت الله قانت و.

دوی په سوډان کې له اسامه سره ولیدل او سازنور هغه ته له سوډانه د شړلو په صورت کې د سیاف له خوا دعوت ورکړ چې افغانستان ته راشي. له دې سفره وروسته د رباني او سیاف په مشوره او امر د اریانا افغان الوتکه چې هند ته یې پرواز درلود، له هنده ستنېدو کې سوډان ته ولېږل شوه. اسامه یې سره له کورنۍ او ملګرو جلال اباد ته راوړ او د جلال اباد په هوايي ډګر کوز شول. هغه ته د سیاف قوماندان سازنور هرکلی وکړ، خو وروسته د مولوي

محمدیونس خالص له خوا د هغه قوماندانانو د هغه د ساتنې او همکارۍ دنده پرغاړه لرله.

یوه خبره چې د اسامه نږدې کړیو ته منسوبه ده هغه دا وه چې سیاف اسامه ته حال وراستولی و چې موږ ته امریکایانو ستا د نیولو یا وژلو وړاندیز کړی. موږ دا کار نه کوو خو ته موږ ته یو لوی مبلغ پیسې راکړه چې موږ پرې ستا امنیت هم وساتو او خپل دولتي اعضاء هم راضي کړو. اسامه ورته ځواب کې ویلي زه هغه پخوانی اسامه نه یم. لاس مې خالی دی او تش یو بې وزله مهاجر یم، دومره ستر مبلغ نه شم ادا کولای. کله چې یې د سیاف او رباني له لوري سخت غبرګون لیدلی و نو د ځان خلاصولو لپاره یې ورته ویلي وو چې زه به هڅه وکړم ما ته وخت راکړئ.

دا وخت ځینې نور علایم داسې وو چې سی آی اي د کوم بل هېواد او د رباني رژیم په وسیله ځان اسامه ته نږدې کاوه ،چې یا یې ژوندی ونیسي یا یې ووژني. له همدې امله د مولوي خالص ځینې قوماندانانو لکه انجنیر محمود او معلم اول ګل د اسامه د ساتنې لور ته فوق العاده توجه اړولې وه او د هغه د اوسېدلو ځای یې له عام محضره پټ ساتلی و. د هغه له راتګه څو میاشتې وروسته طالبانو ننګرهار ونیو او د اسامه د ترور یا نیولو دسیسه هم ناکامه شوه.

د طالبانو له خوا د کابل له نیولو وروسته په ننګرهار کې له اسامه بن لادن سره څو تنو طالبان مشرانو ولیدل او هغه ته یې اطمنان ورکړ چې د دوی له خوا ورته ستونزه نه شته. له دې وړاندې اسامه ځینې کړیو له طالبانو سخت وېرولی و. یوه حزبي قوماندان ورته طالبان د امریکا خاص خلک معرفي کړي وو، ځکه خو دا وخت اسامه بیا هم پر طالبانو شک کاوه او له طالبانو سره په اړیکه کې د شک او تردد ښکار و.

د اسامه په اړه طالبانو ډېر تفصیلي تعریف ته ځان اړ نه ګاڼه. فقط همدومره کافي وه چې د روسانو پر ضد مجاهد پاتې شوی؛ عرب دی او دلته مهاجر او مسافر دی. دا هغه څه وو چې د طالب غورځنګ مزاج په خپله غېږه ورکوله، مګر تر شا یې درنې خبرې لا طالبانو نه وې درک کړې. اسامه د طالبانو د راپیدا کېدو پر سیمه کندهار او ورسره تړلیو سیمو کې کله هم قدم نه و ایښی، خو عرب مجاهدین د جهاد پر مهال له کندهاري مجاهدینو سره په جبهاتو کې وو.

د هغوی جګړه او مېړانه کندهاریانو هم لیدلې وه، چې له همدې امله یې دیني رغبت او مینه ورسره لرله. بل پلو په کندهار کې د مولوي محمد یونس خالص د سترو جهادي جبهو قوماندانان له طالبانو سره یو ځای او د لوړو مقامونو څښتنان وو او له مولوي خالص سره یې اړیکه وه او د مولوي خالص قوماندانان یې هم پېژندل، نو د اسامه په اړه طالبانو له همدې امله هم منفي ذهن نه شوای خپلولای.

د ۱۹۹۷میلادي کال په فرورۍ کې اسامه کندهار ته وبلل شو او د مشر له خوا په افغانستان کې د پاتې کېدو او اوسېدو په اړه اطمنان ورکول شو. ملا محمد عمر ورته وویل دا چې تا خپل وطن هم نه پرېږدې، بل وطن دې هم نه پرېږدي، زموږ مسلمان ورور یې. دا دې خپل وطن دی، خو د امارت د ځو نورو مسولینو له خوا په همدې سفر کې اسامه ته دا خبره هم وشوه چې د سعودي عرب په وړاندې دې داسې څه نه وایي چې د سعودي حکومت پرې ناراضه شي. اسامه ظاهراً په دې خبره هوکړه وکړه.

دا وخت امریکا سره د اسامه لانجه دومره سرسري وه چې په طالبانو کې هیچا فکر نه کاوه چې دا به یوې لویې دښمنۍ او مقابلې ته رسیږي.

اسامه چې له کندهاره بېرته ننګرهار ته راغبرګ شو، څو ورځې وروسته یې له طالبانو سره د خپلو امنیتي ستونزو په اړه خبره شریکه کړه. خبره مشرتابه ته

ورسېده. ملا محمد عمر فکر وکړ چې هسې نه جلال اباد کې د دوستۍ په جامه کې څوک اسامه ته زیان ونه رسوي چې دا به بیا د طالبانو د بدنامۍ لامل وګرځي. له همدې امله یې هغه کندهار ته وروغوښت او د څو تنو مشرانو تر نظارت لاندې د اوسېدو وړاندیز یې ورته وکړ. اسامه او ملګری یې په دې خبره خوشحاله او ډاډه شول. د مارچ د میاشتې په لومړیو کې اسامه او ورسره مهم ملګري له کورنیو سره له ننګرهاره کندهار ته انتقال شول او په یوه پر امنه سیمه کې یې واړول.

د مارچ په دوه‌ویشتمه له افغانستانه د اسامه بن لادن لومړۍ مطبوعاتي مرکه د لندن انډیپنډینټ ورځپاڼې خپره کړه چې سعودي عرب او امریکا دواړو ته یې په کې ګواښ کړی و. دا مرکه کندهار ته له انتقالیدو وړاندې جلال اباد کې شوې وه.

همدې نه د اسامه لانجمنه دوره پیل شوه. ملا محمد عمر ته ځینې مشرانو وویل چې له یوې خوا نړۍ د کابل له نیولو سره موږ د یوه حکومت په حیث نه پېژني او مخالفین هم راپسې د بدنامولو نغارې ډنګوي. که اسامه له سعودي سره له دې ځایه لانجه پیل کړي نو د سعودي په څېر مهم اسلامي هېواد به مو هم دښمن شي. ملا محمد عمر اسامه د مارچ په پینځمه را وغوښت او ورته یې وویل موږ له بې شمېره ستونزو سره مخ یو. له سعودي سره لانجه موږ ته درنه ده. په تشو اخطارونو سعودي مه خپه کوه. تا ته هم ګټه نه کوي، ته نور د سعودي پر ضد څه مه وایه. اسامه بیا هم دا خبره ظاهرا ومنله خو دا یې ورته ونه ویل چې د امریکا پر ضد څه مه کوه ځکه چې دا وخت اسامه هیڅ عملي توان نه درلود او نه هم په طالبانو کې چا فکر کاوه چې اسامه به په درېیم هېواد کې د چا په وړاندې څه کوي.

میډیا د اسامه مرکه ډېره وشاربله چې له امله یې د مشر او اسامه له ملاقاته یوه ورځ وروسته د مارچ په شپږویشتمه د امارت د دفتر سمبالوونکي مولوي وکیل احمد متوکل له مطبوعاتو سره د اسامه په اړه لومړۍ څرګندونې وکړې. د هغه هغه مرکه چې له بي بي سي سره یې لرله. غټ ټکي یې دا وو.

"اسامه بن لادن ته مو ویلي: چې زموږ له خاورې د چا پر ضد کار مه اخله او د سعودي پر ضد تبلیغات مه کوه. له صدام حسین نه نور سعودي ته کوم خطر نه شته، نو ځکه باید امریکایي ځواکونه نور د سعودي عربستان له حدودو ووځي".

له دې وروسته اسامه ته اجازه ورکول شوه چې خپلو ملګرو سره د ځان ساتنې په موخه د ناستې پاستې لپاره ځایونه بدل کړي او معتمد مسلح ساتندویان زیات کړي. له هغه سره د روزمره تماس لپاره څو مشران په ګوته شول چې یو په کې ملاعبدالجلیل هم و.

د همدې کال د مې د میاشتې په اخیر کې د پاکستان او عربو اماراتو ترڅنګ سعودي هم د طالبانو په لاس جوړ شوي د افغانستان نوی حکومت په رسمیت وپېژاند. تر دې وخته لا سعودي د اسامه او ملګرو په اړه یواځې د سعودي پر ضد د څه نه کولو غوښتنه لرله، چې د طالبانو له خوا په اطمنان ورکولو هغوی تر ډېره ډاده وو، خو وروسته ستونزې ورو ورو زیاتېدې. له یوې خوا امریکا پر سعودي فشار راوړ چې طالبان د اسامه پر ضد وهڅوي او له بلې خوا د اسامه په پلویتوب د سعودي د ننه ځینې تحرکات د سعودي حکومت کشف کړل.

د اسامه بن لادن له خوا د سټلایټ تلفون له لارې د سعودي د شاهي کورنیو غړیو ته د هغو د فیکس په خاصو نمبرونو لیکلي اخطارونه ور فیکس شوي وو چې سعودیانو هم د سفارت له خوا او هم له نورو لارو رسمي شکایتونه وکړل

چې له امله یې د وزیرانو شورا غړیو او ځینو مهمو طالب چارواکو پر اسامه نیوکه وکړه، خو بیا هم اسامه دومره جدي نه ګڼل کېده.

د ۱۹۹۸م کال په فبرورۍ کې د اسامه له خوا یوه اعلامیه رسنیو ته ورسېده چې د امریکا پر ضد تونده ژبه په کې کارېدلې وه. له هغه لږ وروسته د امریکا خاص استازي رچرډسن کابل ته سفر وکړ او د سرپرستۍ شورا مشر ملا محمد رباني او نورو چارواکو سره یې اوږدې خبرې وکړې. دغه امریکایي مقام هم د اسامه موضوع ثانوي وګڼله، اصلي خبرې یې د طالبانو او مخالفینو ترمینځ د روغې او ګډ حکومت د جوړولو په اړه وې. په اخیر کې یې ملا محمد رباني ته تنها ویلي وو چې اسامه نه ستاسې په ګټه دی او نه زموږ. دا سړی له خپلې خاورې وشړئ.

په عین وخت کې په کندهار کې له څو میاشتو راهیسې داسې علایم هم لیدل کیدل چې د کندهار شاوخوا د سي آی اې افغان ایجنټان د اسامه د ترور هڅه کوي، خو استخبارت دومره قوي نه وو، چې دا ډله په دقیقه توګه کشف او تعقیب کړي.

د مۍ د میاشتې په شپږویشتمه اسامه او ملګرو یې په خوست کې د ځینې پخواني قوماندانانو او یو شمېر طالب مشرانو په همکارۍ پټه مطبوعاتي غونډه جوړه کړې وه چې د سي این این په ګډون د ګڼو نړۍوالو خبري سرچینو نمایندګان یې د مشرتابه په ناخبرۍ کې رابللي وو. دغې وینا سخت نړۍوال غبرګون را وپاروه. د طالبانو مشران یې غوسه کړل خو اسامه ظاهرا داسې تاثر ورکړ، چې دی خو طالب مشرتابه یواځې د سعودي پر ضد له څه ویلو منع کړی و، نه د امریکا پر ضد.

مولوي وکیل احمد متوکل د افغانستان د حکومت په استازولۍ رسنیو ته وویل چې د خوست غونډه د مشرتابه په ناخبرۍ کې شوې چې په دې غونډه کې د

اسامه له څرګندونو سره د افغانستان حکومت موافق نه دی، اينده به هغه ته د داسې غونډو اجازه ورنه کړو.

مشرانو د هغه د محدوديت او کنترول پرېکړه وکړه چې اينده به هيڅ سياسي او مطبوعاتي هلې ځلې په خپل سر نه کوي. نه به له داخلي او خارجي کسانو سره د امارت له اجازې پرته خبرې کوي. دې مسئلې د طالبانو مينځ کې نوي بحثونه وزيږول. عام طالبان د اسامه کلک طرفدار وو، خو چارواکي له هغه سره د مينې او همکارۍ ترڅنګ د هغه د فعاليت مخالف وو. ټولو ويل بايد د يوه مسلمان پناهنده په حيث يې قدر وکړو، خو زموږ له خاورې دې نړۍ ته ګواښ نه کوي، ځکه موږ چا سره څه وس لرو؟ ايله دا خپل هېواد له ګډوډۍ وژغورو او اسلامي واکمني په کې وساتو.

د جون په مياشت کې د سعودي د استخباراتو رييس ترکي الفيصل کندهار ته غلچکی سفر وکړ او د اسامه موضوع يې جدي ياده کړه. چارواکو هغه ته وويل د دې موضوع شرعي حل علماء را ويستی شي. د سعودي او افغانستان د علماوو ګډ کمېسون به پرې بحثونه وکړي، خو سع وديانو دا ډول کميسون ته عملي جامه ور وانه غوستله.

اسامه بيا هم په پټه لګيا و چې امريکايان په ويناوو ووېروي، خو امارت ورته جدي ګواښ وکړ چې زموږ په خاوره کې به هر څه زموږ په خوښه وي.

ترکي الفيصل په خپل سفر کې د ډېرو زياتو مرستو وړانديز هم کړی و، چې انداره يې سلګونو مېلونو ډالرو ته رسېده، خو امارت د دغو مرستو په بدل کې د اسامه د شړلو بدله شرموونکي بللې وه او دا يې يو غلط وړانديز ګڼلی و، چې په دې سره هغه اټکلونه هم ناسم ثابتيږي چې فکر کوي اسامه له طالبانو سره مالي مرسته کوله ځکه يې ساتلی و. اسامه طالبانو سره د يو ځای کېدو پرمهال

دومره شتمن نه و چې دومره ستر تحریک یا حکومت ته د پام وړ مرسته ورکړي، بلکې د دې په مقابل د سعودي مرسته دومره ستره وه چې د طالبانو لپاره یې ښایي ساری نه وای موندل شوی.

اخیر کې چې د اسامه مالي سرچیني کنګل کړای شوې، نو داسي وخت هم راغي چې د القاعده د محدودو موټرونو تېل هم د افغانستان حکومت ورکول. زه د داسې پرچو شاهد یم چې د مقاماتو له خوا به د انحصاراتو مسولینو ته لیکل شوي وو، چې د عربو مجاهدینو عرادهجاتو ته دومره لیتره تېل اجراکړئ.

پر افغانستان د امریکا د کروز توغندیو برید

د ۱۹۹۸ کال د اګست په اوومه د کینیا او تانزانیا په پلازمېنو کې د امریکا پر سفارتونو چاودنې وشوې چې موږ یې خبر هم یوه هفته وروسته ولوست او دا راته دومره د پام وړ ښکاره نه شوه، نه مو نېغ د اسامه لور ته ذهن تللو. مشرتابه د شمالي ولایتونو فتوحاتو کې سخت مصروف و چې له دې چاودنو یوه ورځ ورسته موږ د بلخ ولایت مرکز چې د دوستم ورستی مورچل و فتح کړ او مشرتابه د دغو ولایاتو په نویو تشکیلاتو او تصفیه مصروف و. امریکا لاهم د دې پېښو نېغ نسبت اسامه یا دهغه ملګرو ته نه و کړی او نه یې کوم خبر یا شواهد د افغانستان له حکومت سره شریک کړي وو.

دوه اونۍ لاپوره نه وې چې د اګست په شلمه د افغانستان پر وخت تقریبا د شپې لس بجې د خوست ولایت پر ژورې کیمپ امریکایي توغندي وار شول چې د اسامه په ګډون هیڅ یو عرب هلته نه و، بلکې یو شمېر پاکستانیان په کې له مینځه لاړل، چې د شوروي ضد جهاد له وخته دلته اوسیدل. څو توغندي خطا لاړل، چې یو د کندهار معروف ولسوالۍ کې ولګېد او یو څو یې د پاکستان په خاوره کې وچاودل، خو د معروف توغندی ناچاودلی پاتې و، چې بیا د کندهار وسلهتون ته انتقال کړای شو.

په عین وخت لس توغندي د سوډان په مرکز کې د درملو پر یوه فابریکه ولګېدل چې امریکایانو دعوه وکړه چې دا د شیمیایي موادو فابریکه وه خو د امریکا دغه دعوه هم د صدام د هستوي وسلو په څېر تر اوسه ثابته نه شوه، آن چې د سوډان حکومت هغه وړاندیز هم امنیت شورا ونه مانه چې په دې اړه یې د پلټنو غوښتنه کړې وه چې بین المللي هیئت دې د دغې فابریکې څېړنه وکړي چې ربښتیا د شیمیایي وسلو کارخانه وه او که د درملو!

له شکه پرته چې د خوست برید د کینیا او تانزانیا له بریدونو سره اړه نه لرله، بلکې دا له څو میاشتو راهیسي پلان شوي بریدونه وو. امریکا د تانزانیا او کینیا له بریدونو دوه میاشتې ورسته په نومبر کې اسامه رسما په دې پېښه کې تورن وګاڼه.

دغې حملې له یوې خوا د امریکا جدیت په ډاګه کړ او له بلې خوا یې د امریکا پر ضد په طالبانو کې کرکه وزېږوله، چې تر دې مهاله طالبانو د امریکا دښمني د پخوانیو جهادیانو په غونډو او لیکنو کې د شعار تر سرحده پېژندله خو دا چې امریکا پر افغانستان توغندي ووروي دا ورته نا اټکل شوې خبره وه، ځکه دې کار طالب ته دا روحیه ورکړه چې امریکا مو مخامخ دښمنه ده.

دې کار د اسامه په اړه د مثبت پېشرفت مخه نوره هم پیچیده کړه او طالبانو نور د امریکا دښمنان خپل دوستان وګڼل او د یوه یرغلګر انځور یې پر ذهنونو کې ځای ونیو. امریکایانو داسې وخت انتخاب کړ چې له یوې خوا طالبانو مخالفین په مخه کړي وو او بل لور ته د یوولسو دیپلوماتانو د مړینې پر سر له ایران سره اړیکې ترینګلې وې.

طالبانو د توغندویي حملې پر ضد سخت غبرکون وښود دا یې د هېواد پر حریم مغرورانه یرغل وګاڼه. پر سبا کندهار، کابل، مزار، جلال اباد او د هېواد په یو

**شمېر نورو ښارونو کې درنې مظاهرې وشوې. د طالبانو خارجه وزارت له امریکا نه د کینیا او تانزانیا په پېښو کې داسامه دلاس لرلو ثبوت او اسناد وغوښتل.**

**دا وخت د ملا محمد عمر دریځ نور هم سخت شو او د امریکا له خوا د نظامي برید او زور کې فشارونو په وړاندې یې جدي دریځ غوره کړ. یوه وجه همدا هم وه چې له امله یې  په ستمبر کې له ترکي الفیصل سره ملاقات په خپګان بدل شو.**

**کندهار ته د ترکي الفیصل راتګ او له مشر سره ملاقات**

په ۱۹۸۸میلادي کال ستمبر کې د افغانستان لپاره د سعودي سفیر سلمان العمري چې په اسلام اباد کې اوسېده، زموږ د اسلام اباد سفارت ته خبر ورکړ چې د سعودي یو لوړ پوړی او ځانګړی هیئت کندهار ته راځي. د سفر تاریخ یې معلوم کړ. د هیئت له راتګه یوه ورځ مخکې د ستمبر په اتلسمه سلمان العمري کندهار ته راغي. د کندهار مېلمستون کې یې د خارجه چارو مرستیال وزیر ملا عبدالجلیل او نور مسئولین کوربانه وو. هغه د ځانکړي تلفوني تماس لپاره د سټلایټ یوه مخصوصه انتیناهم د مېلمستون په انګړ کې ولګوله چې د ډش تبخي یا ټیکی ته ورته وه.

د ستمبر په نولسمه سهار شاوخوا نهه بجې د سعودي د استخباراتو د وزیر شهزاده ترکي الفیصل په مشرۍ هیئت د کندهار پر هوایي ډګر خپله ځانګړې الوتکه ښکته کړه چې ویل کېدل د یوه مجرم د انتقال لپاره یې ځانګړې پنجره هم لرله.

د کندهار ولایت په مقام کې یوه ستره خونه د دغو مېلمنو لپاره په قالینو، توشکو او بالښتونو فرش شوې وه. دغې خونې د مشرتابه پخواني دفتر ته هم لار لرله. دغه ستره خونه او تالار به اکثره وخت د مهمو مېلمنو لپاره کارېده. ترڅنګ یې د خوړو د برابرولو او مخصوصې ناستې لپاره دوه نورې خونې لرلې. زه د خوړو د برابرولو په خونه کې د خوراک، څښاک او تازه میوې له برابروونکو سره بوخت وم، مېلمانه رارسېدلي وو. دسترخان اوار و، وچې، تازه مېوې او چای وربانديې ایښي وو. امیرالمومنین هم له خپله دفتره لنډ دغې خونې ته د مېلمنو هرکلي ته راغلی و. ما بیړه کوله، تر هغې چې د هرکلي خبرې خلاصیږي او اصلي بحث شروع کیږي، زه باید ځان ورته فارغ کړم.

مجلس ته د پاکستان درېمانه هيئت هم راورسېد چې مشري يې "تسنيم رانا" کوله. په کندهار کې د پاکستان پخواني کونسل مېجرگل د مشر خبرې هغوی ته په انگليسي ژباړلې او د هغوی خبرې يې مشر ته په پښتو ژباړلې. پينځه دقيقې لا نه وې پوره چې د ملا صيب اواز لوړ شو. ما سر ورښکاره کړ د ملا صيب د خبرو او غږ له کيفيته چې موږ ورسره بلد و، پوه شوم چې خبره ورانه شوه. ملا صيب ميجرگل ته يې په غوسه وويل چې زما د خبرو يو يو توری به واضح واضح لکه څنگه چې زه وايم داسې ورته ترجمه کوې. دا وخت گل هم کافي ورخطا او تر رعب لاندې و.

ملاصيب طيب اغا ته وويل چې که گل کومه خبره نيمگړې او ناسمه ژباړله ما ته وايه، ځکه چې طيب اغا له انگليسي سره بلد و، فقط دومره مې واورېدل چې ملا صيب ورته وويل چې تاسو د اسلام د مرکز واکمن ياست او نيکونو مو ټولې دنيا ته د اسلامي غيرت او عزت درس ورکړی، خو نن يو مظلوم مسلمان د پرديو کفارو د خوښې لپاره نيسئ او هغوی ته يې سپارئ. پېښه په افريقا کې شوې، دښمن د امريکا دی، تاسو نور په کې څه حق لرئ؟

مجلس په پوره بې خوندۍ ختم شو. ترکي الفيصل په غوسه ولاړ او له خونې ووت، مشر هم د دفتر لور ته پر دروازه باندې له ساتونکو سره ووت. وروسته د حاضرو او شاهدو ملگرو له خولې د مکمل جريان لنډيز په دې ډول و:

مجلس چې پيل شو، مېلمنو ته د مشر له خوا په خوږه ژبه هرکلی ووېل شو. له هغه وروسته لومړی خبرې ترکي الفيصل پيل کړې. ترکي الفيصل په ډېره قاطعه لهجه او ژبه وار د واره ملا صيب ته وويل موږ راغلي يو چې ته خپله وعده پوره کړې او زموږ مجرم موږ ته لاس تړلی وسپارې. موږ يې له ځانه سره په الوتکه کې وړو. د ترکي الفيصل قاطع انداز او بيا دوه سترې غلطۍ؛ يوه دا چې له تحريک سره يې د هيڅ ډول خواخوږۍ او ملگرتيا کومه مقدماتي جمله ونه ويله او بله غلطي يا غلط فهمي دا وه چې ملاصيب له هغوی سره هيڅ ډول

داسې وعده نه وه کړې او ملاصیب په مزاج کې له وعده خلافۍ او دروغو ډېره کرکه کوله.

دا وخت له یوې خوا دروغ وویل شول او بل پلو پر ملاصیب د وعده خلافۍ ناحقه تور پورې شو، دربیمه دا چې ملاصیب د شیخ پر سر هیڅ معاملې ته ذهنا او فکرا اماده نه و. د هیئت په اړه د داسې قاطعې غوښتنې اټکل یې هم نه و کړی، ځکه خو مشر یو ناڅاپه جدي شو او نه یواځې د قاطعې غوښتنې ځواب یې قاطع ورکړ، بلکې ترکي الفیصل ته یې عار او پیغور هم ورکړ. د ملا صیب جملې دا وې چې اول خو په ما پورې دروغ مه تړئ! ما کله هم داسې وعده نه ده کړې، نه مې بل چا ته زما په استازولۍ د داسې وعدو اجازه ورکړې. دوهم دا چې تاسو ته موږ د علماوو د مشترک مجلس وعده درکړې وه، چې د دې ستونزې په اړه به غور کوي، خو د شیخ د سپارلو مو کله هم وعده نه ده کړې. تاسو د اسلام د مرکز واکمن یاست، مظلوم مسلمانان تاسې ته د مرستې او خواخوږۍ امید لري، خو تاسو سرچپه د اسلام دښمنانو ته مسلمانان سپارئ او د هغوی په امر دلته راځئ، پیښنه په افریقا کې شوې، دعوه پرې امریکا کړې ستاسې ورباندې څه حق دی؟

له دې وړاندې د سعودي حکومت ته د امارت استازو اطمنان ورکړی و، چې اسامه به د سعودي په خلاف هیڅ نه کوي او دا یې غالبا پر اسامه هم منلې وه. له همدې امله ملا صیب دوی ته وویل چې ستاسو نور وربادي حق نه شته.

ترکي الفیصل له څو ساعتونو وروسته ریاض ته ورسېد. په سبا یې په ریاض کې د افغانستان سفارت ته رسمي لیک واستاوه چې د افغانستان سفیر دې د سعودي له خاورې ووځي. سفیر را وویستل شو، پر ځای یې لومړي سکرتر د شارژدافیر په توګه او د جدې کونسل چارې پرمخ بیولې. له همدې ورځې سعودي سره د اسلامي امارت د خرابو اړیکو دور پیل شو.

**په دې خبرو او سفر کې کومو نقطو د ملا محمد عمر غیرعادي غوسه راوپاروله؟**

وړاندې ما د دې جریان رښتینی انځور روښانه کړ. اوس غواړم د دغه ترخه ملاقات پر اسبابو او اړخونو لنډه تبصره وکړم. یوه ستره غلط فهمي خو له اوله دا پیدا شوې وه، چې د مشر په استازولۍ ښایي چا د سعودي حکومت ته د اطمنان ورکولو په برخه کې غیر ضروري افراط کړی وي. د حالاتو د عادي کولو او د اړیکو د نورمال ساتلو په موخه یې د اسامه په اړه د ملا محمد عمر موقف دومره نرم او تغییرمنونکی معرفي کړی وي، چې سعودي واکمنو فکر کاوه، چې دا خو یو ډول وعده شوه. که موږ لږه قاطعه غوښتنه وکړو، کېدای شي ملا محمد عمر موږ خفه نه کړای شي او یوه انقلابي فیصله وکړي، ښایي همدې تمې به هغوی ته دومره زړه ورکړی وي.

بل پلو دا وخت چې د مزار (بلخ) له نیولو وروسته د ایراني دیپلوماتانو د مرګ پر سر ایران د برید ګواښ کړی و، له دې نه یواځې څو ورځې وړاندې طالبانو د ایراني د یپلوماتانو مړي موندلي وو او ایران د سخت غبرګون اعلان کړی و. طالبانو تمه لرله چې سعودي به یې په دې موضوع کې کلک ملاتړ وکړي. په دغه حساس وخت کې د طالبانو د امید سترګې تر ډېره سعودي ته وراوښتې، نو د ترکي الفیصل له خوا د خواخوږۍ او همدردۍ له هر ډول یادونې پرته دا ډول قاطعه او سپوره لهجه یو ډول ترخوږ ګوتې نیول وو. دا داسې ښکاره شوه چې ملاصیب دغم په غولي ناست و او ترکي الفیصل یې له دغه حالته ناوړه ګټه پورته کوله، چې له دې امله هم د مشر زړه په دې خبرو خپه شو، ځکه خو د ملا محمد عمر له خوا ورته د قاطع جواب او اضافي اعتراض لامل شوه.

بله مهمه تېروتنه دا وه چې ترکي الفیصل د یو امیر لهجه وکاروله او د نړۍ یو بې باکه او بې پروا شخصیت یې د یوه ماتحت په توګه مخاطب کړ. ښایي دا به د ترکي الفیصل لپاره نوې خبره نه وه، ځکه چې زموږ په څېر د ډېرهغو غریبو

اسلامي هېوادونو واکمنو ته چې د سعودي مالي مرستو ته حیاتي اړتیا لري؛ ښايي ترکي الفیصل دخطاب همدا ژبه لرله، خو ملا محمد عمر یو جلا تعریف ته اړتیا لرله، چې هوښیارو خلکو له هغه سره د تعامل لهجه او ژبه زده کړې وه.

په دې کې د پاکستان داخله او خارجه وزیران، دازبکستان خارجه وزیر، د ملگرو ملتونو استازی لخدار ابراهیمي او د ترکمانستان د ولسمشر مرستیال او مشاور د یادونې وړدي، چې د ملا محمد عمر د روحیاتو مطابق ژبه یې وکارولی شوه. یو یې هم د ښاغلي ترکي الفیصل په څېر له هر ډول نتیجې پرته نه دي تللي.

ملا محمد عمر مزاجا مغرور او ضدی انسان نه و. د چا د تواضع په وړاندې یې دومره تواضع کوله چې هغه به پرې د مشرتوب گمان هم نه کاوه، که چا د حق په پلوی غرور کاوه هغه یې هم زغملای شوه، خو له ناحقه مغرور او متکبر سره یې بیا سر ترغره جگ ووړ.

## د سعودي علماء د ملا محمد عمر له نظره

د سعودي د حکومت له دغه رسمي مقام سره له دا ډول ترخه ملاقات سره سره ملا محمد عمر د سعودي خلکو، قانون او ديني علماوو ته په زړه کې يو ډول درناوی درلود. هغه به په روژه کې کله نا کله د شپې له خوا د سعودي راډيو ديني خپرونې هم اورېدې. دا هم د هغه پرېکړه وه چې د روژې او اخترونو په اړه دې د سعودي اعلان کافي وګڼل شي، ځکه چې د هغه په آند هغوی د دې لپاره ښه اهتمام کوي او دغه ادارې يې د علماوو په واک کې دي، نو بايد پيروي يې وشي.

هغه په دې عقيده و، چې د حرمينو په ساتنه او انتظام کې سعودي واکمن تر بل هر چا زيات متوجه دي او ټولې چارې يې په ډېر ښه ډول اداره کوي. له همدې امله هغه په سعودي کې له هر ډول ګډوډۍ سره مخالف و او له همدې امله زموږ په رسمي نشراتو کې د سعودي پاچا ته د خادم الحرمين کلمه کارېدله. البته ځينې کړۍ او اشخاص چې د القاعده جهادي ملګرو سره يې نږدېوالی زيات و، کله ناکله به په دې برخه کې د امارت له رسمي پاليسي اوښتل.

يو ځل د مشرتابه دفتر په ځانګړې عربي مجله کې چې طيب اغا يې مشري کوله  د القاعده د کوم عرب ليکوال په ليکنه کې د عدو الحرمين کلمه تېره شوې وه، چې مشرتابه يې په خپرېدلو خواشيني ښکاره کړه، د اينده لپاره يې د داسې کلماتو د نه کارولو امر وکړ.

مشرتابه د سعودي پر ضد د هر ډول رسمي بيان مخالف و، البته کله ناکله به چې په ميډيا کې د اسامه او ترکي الفيصل موضوع ياده شوه نو زموږ دفاعي

ځوابونو به یو ډول د سعودي د مخالفت بنه خپلوله، چې دې کار به ستونزې زېږولې.

له سعودي سره د نورمالو اړیکو ارزو زموږ ټولو چارواکو لرله، خو د شیخ اسامه موضوع په دې اړه ډېره حساسه وه، ځکه خو دا کار په مکمله توګه هغه وخت ناشونی و.

له دې اخوا ملا محمد عمر له قطر، سوډان، ترکمانستان، ترکیې، چین او کرغیزستان سره د مثبتو اړیکو لېواله و. لیبیا سره یې هم اړیکې غوښتې، که څه هم د لیبیا ولسمشر قذافي د طالبانو د نظام نوعیت نه خوښاوه او ملا محمد عمر هم د قذافي د رژیم قانون او مطلق العناني نه خوښوله، خو د لویدیزو سیاستونو سره اختلاف له قذافي سره مشترکه نقطه وه.

زموږ د نورو چارواکو له خوا له ایران سره د ښو اړیکو جوړولو د هلوځلو مخالفت یې هم نه کاوه، خو په دې اړه یې ډېر محتاط دریځ درلود، چې له همدې امله یې د ایران د دوستانه اړیکو پر هلوځلو تل شک کاوه. تر مشرتابه لاندې چارواکو له ایران سره اړیکو ته ډېره تلوسه لرله او دا یې اشد ضرورت ګاڼه، خو ملاصیب په مجموع کې مخالف نه و.

زما ښه یاد دي چې کله د مزارشریف د سقوط پر مهال یوولس ایرانیان د ایران کونسلګرۍ کې ووژل شول، ملاصیب د تحقیقاتو پرمهال دومره په غوسه و، چې یوه ورځ یې په مخابره وویل که مي د دې پېښې عاملین پیدا کړل، بې محکمې یې په دار ځوړندوم! ما په لومړي ځل له هغه نه دا ډول جمله واورېده، زه په هغه ورځ پوه شوم چې دا کار طالبانو نه دی پلان کړی.

د پاکستان او عرب اماراتو اړیکې خو هغه وخت موږ ته حیاتي وې او له نړۍ سره د هر ډول تعامل یواځینۍ دروازې پاکستان او عرب امارات وو.

د شیخ زاید مرحوم کورنۍ سره له دې چې په دې اړه تر بهرنیو فشارونو لاندې وه او یو لړ نړۍوالو تړونونو ته وفاداره وه، خو بیا هم تر وروستۍ شیبې یې له طالبانو سره خواخوږي لرله. طالب مشرتابه هم ورسره پټه متقابله خواخوږي لرله. د اقتصادي بندیزونو له تشدیده وروسته یواځینی هېواد و چې موږ د هوایي ټرانسپورټ استفاده ترې کولای شوای.

د بیت المقدس د پخواني امام زوی

په اسلام اباد کې د فلسطین سمبولیک سفیر د ۱۹۹۸ م کال اوړي کې کندهار ته سفر وکړ. هغه له ځان سره فلسطیني پوځ کې پاتې شوی جنرال چې پلار یې د بیت المقدس امام پاتې شوی و کندهار ته راوستی و. دوی له ملا محمد عمر سره ولیدل. ملاقات نه وروسته ملا محمد عمر د ځوځانو په هغه کوډله کې د غرمي (خوب) قیلوله کوله، دا د کندهار او هلمند دعامو خلکو دود دی چې د ګرمۍ په موسم کې په ځوخانو پوښلې څاله اوبه اچوي او د هغه یخ شمال ته ځان له ګرمي ژغوري. ملا محمد عمر هم د خپل دفتر په انګړ کې همداسې یوه د ځوځانو ځاله جوړه کړې وه. کله چې دغرمي د یوساعت مسنون خوب لپاره دغې کوډلې ته دننه شو او خپل څادر یې پرځان راکش کړ.

د بیت المقدس  د امام زوي چې په دغه حالت کې ملا محمد عمر ولید سخت یې وژړل. هغه چې کله مېلمستون ته خپلې کوټې ته لاړ ډېر زیات متاثر و. د فلسطین سفیر هغه وپوښت چې ولې ژاړې؟ هغه وویل چې د ملا محمد عمر له خواخوږي او میني ډک مجلس نه وروسته چې هغه په خپله ځاله کې په خپل څادر کې ویده شو، ما ته د هغه اعرابي قول رایاد شو چې عمر فاروق یې فیصله وکړه او بیا یې یوه دیوال ته سر ولګاوه او ویده شو. اعرابي ورته وویل: حَکمتَ عَدلتَ اَمِنتَ فَنِمتَ (پرېکړه دې وکړه، عدالت دې په کې وکړ،امانت دارې دي وکړه او بیا ویده شوې). هغه بار بار دا جمله تکراروله او سترګې له

اوښکو ډکې وې. ما ته دغه صحنه ډېره جالبه وه او تر اوسه مې نه هیرېږي. له نېکه مرغه د دې صحنې شاهدان څو ملګري تر اوسه لا ژوندي دي.

### د ایران او افغانستان د احتمالي جګړې په اړه د ملګروملتونو رول

په مزار کې د ایراني سفارت د یوولس تنو مړي چې په لسم ستمبر په یوه کنده کې وموندل شول، د طالب مشرتابه لپاره تر ننه یوه مبهمه پېښه ده. له بار بار تحقیق سره پر چا ګمان هم ونه شو، ځکه چې دا پېښه ممکن څو عادي اشخاصو کړې وي او د موضوع له نزاکته په خبرېدو یې نوره له وېرې خوله پټه کړې وي او د ځینو په اند خو ښایي دا په خپله د ایران پالیسي وه. په لنډ ډول ویلای شو چې د دې پېښې په اړه هیڅ یو احتمال نه ردېدلای شي او نه تاییدېدلای شي.

په دې اړه ملا محمد عمر یو ورځ په مخابروي مکالمه کې د پېښو د عاملینوپه اړه ډېره سخته تهدیدي جمله وکاروله. زه هغه وخت لا پوه شوم چې په دې کار مشر ډېر سخت ټکان خوړلی او عاملین که یې ورته جوت شي نو وبه یې نه ښښي، ځکه چې موږ ملا محمد عمر پېژاند چې هغه مصنوعي تکلم او رویه نه لرله، چې څه به یې وویل همغه یې خبره وه.

ایران نه یوازې طالبانو ته د پوځي برید خبرداری ورکړ بلکې پوځي قطعات یې هم د نیمروز او هرات په سرحدونو کې ځای پر ځای کړل او جنګي الوتکې او چورلکې یې څو ځله په لوی لاس زموږ حدودو ته داخلې کړې خو مشرتابه د حالاتو د نزاکت له امله د هغوی پر چورلکو د برید اجازه ورنه کړه بلکې امر داسې و چې ترڅو یې عملي برید نه وي کړی، باید وسله‌وال غبرګون ونه ښودل شي. د امریکا ځینو ادارو هم خبر ورکړ چې ایران پر افغانستان د برید اراده لري. طالبانو هم سرحدونو ته قواووې، زغره‌وال ټانکونه او درنې وسلې ولېږدولې.

د ډېرو په اند په دې حرکتونو ایران غوښتل چې د حزب وحدت د ماتې خوړلیو قواوو پر ضد د طالبانو پرمختګونه ودروي او د ایران سرحد ته د طالبانو د پوځي قطعاتو په لېږلو پر حزب وحدت او مسعود د طالبانو پوځي فشار کم کړي. دا وخت مشرتابه له یوې خوا د ملګرو ملتونو له ادارې نه د خارجه وزارت له لارې د مداخلې غوښتنه وکړه، له بلې خوا یې د خپلو قواوو د روحیې د لوړ ساتلو او د ایرانیانو د پوهاوي لپاره تونده مطبوعاتي وینا وکړه، چې مشهورو رسنیو ټولو خپره کړه.

مشر په دې مطبوعاتي خبرو کې ایران مخاطب کړ او ویې ویل دوی (ایراني اخوندان) نه مسلمانان په اسلام ورګډوي اونه یې کفار په کفر ورګډوي. که د ایران له خوا نه پر موږ برید وشو، نو زموږ ځواکونه به دېرش کیلومتره دننه د ایران خاورې ته ننوځي. بل خوا د طالبانو له رسمي غوښتنې وروسته د ملګروملتونو خاص استازي لخدار ابراهیمي لومړی ایران ته سفر وکړ او بیا افغانستان ته راغي. کندهار کې له مشر سره د هغه په ملاقات کې موږ هم حاضر وو.

د اکتوبر په څلورم سهار نږدې نهه بجې د ملګرو ملتونو په یوه الوتکه کې لخدار ابراهیمي او د اسلامي کانفرانس مشر ابراهیم بکر کندهار ته راغلل. دوي سره څو نور بهرنیان ملګري وو. د ابراهیمي په مشرۍ دغه هیئت لومړی هغه هدیرې ته بوتلل شو چې له مزار نه د جنرال مالک له خوا د وژل شویو زرګونو طالبانو رانقل شوي جسدونه په کې خښ وو. له هغه وروسته د کندهار ولایت مقام ته راغلل. د ولایت په یو ستر تالار کې پر افغاني دود قالینې هوارې وې. توشکې او بالښتونه ورباندې برسېره ایښي وو. ابراهیمي دقیق مزاجه او موقع شناس سړی و. مشر سره یې په ډېره هوښیارۍ د هغه له مزاج سره سمې خبرې پیل کړې. هغه د افغانستان پرهوا او دود دستور وغږېد.

**وروسته اصلي بحث ته راغي. هغه د مخدره موادو او نورو لانجو ترڅنګ اصلي بحث د ايران او افغانستان پر روانه لانجه اوړکړ.**

**خبرې په نرمه فضا کې پای ته ورسېدې، خو د اسلامي کنفرانس مشر ابراهيم البکر تر پايه چوپ ناست و. بده يې لا دا چې کله ملا محمد عمر تالار ته را دننه شو نو د ښاغلي بکر وجود په رېږدېدو شو. زما ګمان دا و چې ابراهيم بکر فکر کاوه چې ښايي ملا محمد عمر به هغه هم د ترکي الفيصل په څېر په سختو جملو مخاطب کړي، چې دا د هغه تبليغ اثر ښکارېده چې ويل کېدل به چې ملا محمد عمر له عرب واکمنو کرکه کوي. حقيقت داسې نه و، بلکې د ترکي الفيصل موضوع کاملا يوه حساسه او خاصه موضوع او حالت و.**

**ابراهيمي او بکر له غرمې وروسته اسلام اباد ته لاړل. اسلام اباد کې ابراهيمي رسنيو سره په خبرو کې له ملا محمد عمر سره د ملاقات خاطرې مثبتې او مفيدې وګڼلې. د ابراهيمي د دغو مطبوعاتي خبرو جريان بي بي سي په دې ټکو کې خپور کړ:**

**"زه د ملا محمد عمر له تودې مېلمه پالنې مننه کوم. له هغه سره مې دا لومړۍ کتنه په ډېره ښه فضا او برياليۍ توګه ترسره شوه. موږ د افغان-ايران کړکېچ کمولو په لار کې پرمختګ کړی. لومړی هغې هديرې ته لاړم چې په مزارشريف کې وژل شوي طالبان په کې خښ وو او لاهم خښېدل. هلته مې داسې څه وليدل چې هېر به يې نه کړم. دا ليدنې موږ دې ته هڅوي چې هر څه مو د لاسه کيږي هغه بايد وکړو چې په دې وير لړلي هېواد کې جنګونه پای ته ورسيږي او د سيمې د ټولو وګړو ترمينځ ملګرتيا او همکاري پيدا شي."**

**د اسامه بن لادن شرعي محاکمه**

کله چې د امريکا حکومت د نومبر په څلورمه اسامه بن لادن او د هغه دوه سوه اته دېرش ملګري په افريقا کې د اګست د لومړيو بمي بريدونو عاملين وبلل، نو د هغوي پر سر يې د نيولو يا وژلو په صورت کې د پينځو ميلونو ډالرو انعام هم اعلان کړ. د هېښتيا ځای دا و چې پر اسامه د دې عمل شک په نومبر کې امريکا وکړ او رسما يې تورن کړ؛ خو هغه ته يې سزا دوه مياشتې مخکې ورکوله چې د کروز توغنديو پر بريد يې واژه، خوهغه ترې بچ شو او د سي ای اې وروستي خپاره شوي اسناد دا هم ښيي چې د ۱۹۹۶ په اخير کې جلال اباد او د ۱۹۹۷ لومړيو کې په کندهار کې سي ای اې د هغه د وژلو پر پلان کار کاوه.

طالبانو له امريکايي مقاماتو نه د افريقا په پېښو کې د اسامه د ککړتيا په اړه څرګند اسناد او ثبوتونه وغوښتل. د مشرتابه له هدايت سره سم موږ رسنيوته وويل چې اسامه د محکمې لپاره سپارل بې معنا خبره ده، ځکه چې د هغه په مرګ پسې امريکا له دې پېښو وړاندې هم ګرځېده، نو که يې سعودي يا بل هېواد ته وسپارو، بياهم له شکه پرته امريکايان هغه نيسې او تر محکمې وړاندې يې د سياسي پاليسۍ په حکم محاکمه کوي. يوائينۍ لار د افغانستان خپله محکمه ده چې د ثبوت په وړاندې کولو به له هر ډول مداخلې پرته حکم صادروي.

د مشر د فرمان له مخې د افغانستان سترې محکمې د شلو ورځو لپاره اختصاصي محکمه اعلان کړه چې په دې موده کې دې د تورن په اړه شواهد وړاندې شي، خو امريکا زموږ دغه اعلان ته هيڅ ارزښت ورنه کړ او د اسامه د نيولو او وژلو هلې ځلې يې تېزې کړې. د محکمې په اخيرو ورځو کې يې په اسلام اباد کې د امريکا له سفارته يوه ويډيو کيسټ را واستول شوه چې د اسامه بن لادن د ککړتيا ثبوت وبلل شي.

هغه وخت له خارجه وزارته پرته د طالبانو په نورو دفترونو کې د تلویزون یا وي سي ار اجازه نه وه ، په کندهار کې یواځيني ځای چې هلته مو دا کیسټ کتلې واي د راډیو تلویزون ودانۍ وه چې د ویډیو غږولو زاړه وسایل ورکې موندل کېدل. متوکل ماښام د کندهار د راډیو تلویزون ودانۍ ته له پخوانۍ ډول ویډیو کیسټې سره راغی. زماهم د لچسپي زیاته شوه چې د اسامه په اړه ژوندي شواهد په خپلو سترګو ووينو. د تخنیک مدیر صیب مو را وغوښت، ورته ومو ویل موږ ته د تلویزون د ودانۍ تړلې خونه پرانیزه چې موږ یوه کیسټ ګورو. مدیر په هېښې نظر راته وکتل په شونډو یې د حیرت موسکا خوره شوه چې په تیاره کې به دا خلک اوس کوم فلم په تنها خونه کې ګوري!.

مدیرصیب چې دا وخت د طالبانو په واکمنۍ کې په اوداسه او لمانځه ټینګ او لویه ږیره لرونکی سپین ږیری و. اول ځل یې زموږ همدا نشیطه جمله واورېده چې اوس به په تیاره کې فلم کتل کیږي. مدیر ښه ګړۍ په کیلیانو پسې ورک و. وروسته یې د زنګ وهلیو کیلیانو یوه غونچه لاس کې اړوله راوړله او یوه کیلي یې په کې لټوله. د د روازې قلف زنګونو مړ ژواندی کړی و. اخیر کې یوې کیلي کار ورکړ، د دراوزې له وازیدو سره ګردونه خواره شول. دا څو وم کال و چې له دې خونې سره د چا کار نه و. خونه کې د ډېرو توکمو له وهلو وروسته یوه زاړه زېړ ګروپ کار ورکړ او روښانه شو. هر لور ته ګردونه وو، کرسۍ، دېوالونه او فرش ټول په ګردونو لړلی و. څو کرسۍ ایښې وې. موږ دوه درېوو ملګرو ځانو ته یو دوه زړې کرسۍ پو کړې او ورباندې کېناستو. موږ ته د وي سي ار د چالانېدو چل هم نه راته. مدیرصیب ته مو سترګې نیولې وې. مدیرصیب د لرګي باډۍ والا یو زوړ روسی تلوېزون پر مېز راکش کړ. موږته یې مخامخ برابر کړ.

موږ هم غاړې ورته تازه کړې. ټول په ډېره تلوسه د یوه ډېر نوي څه تړی انتظار کوو. تلویزیون زوړ و او ښیښه یې هم په گردونو لړلې وه. متوکل کېسټ ورکړه او مدیرصیب وي سي ار ته کېسټ ورټېله کړه. تلویزیون په تته رڼا فلمي صحنه تته ښودله. لکه په اوبو کې چې څوک خپله څېره ویني؛ سکرین څپه څپه کېده. زموږ د انتظار گړۍ نورې پای ته ورسېدې، ټول خاموش یو او په رڼو او غرقو نظرو سکرین ته گورو.

فلم په سوډان کې د اسامه د ملگرو کورونه ښکاره کړل او بیا یې د هغوی ماشومان ښکاره کړل چې په یوه میدان کې لوبې کوي. د هغوی هغه مطبوعاتي ویناوې په کې وې چې هر چا اورېدلې وي. نور کومه نوې خبره نه شته خو موږ بیا هم د فلم تر پایه د نویو معلوماتو په تلوسه سترگې پر سکرین کلکې نښلولې وې. دا د سي این این یو زوړ راپور و چې د اسامه او ملگرو په اړه یې ترتیب کړی و. د همدې راپور کاپي یې موږ ته هم د شواهدو په توگه استولې وه. د فلم له اختتام سره د متوکل حوصله تنگه شوه له کرسۍ نه ولاړ شو، لاسونه یې ومروړل: "دوي د ... زامن هم په موږ پسخند (ملنډې) وهي". د دې جملې کارولو سره متوکل ترخه موسکا وکړه.

په سبا یې میډیا ته وویل چې امریکایي مقاماتو د سي این این تلویزیون له یوه راپور نه یوه کاپې موږ ته د اسنادو په نامه رالېږلې چې د افریقا له پېښو سره هیڅ تړاو نه لري او نه هم په دې اړه دې فلم کې څه شته، نو له همدې ا مله د امریکا دغه دعوه بې ثبوته ده. له دې سره د محمکې لپاره ټاکلی وخت هم پای ته ورسېده.

امریکا: که اسامه له افغانستان ووځي بیا هم طالبان نه پرېږدو

د ۱۹۹۹ فرورۍ کې د نیروبي او دارالسلام د پېښو په تور امریکا پر اسامه د انعام اعلانونه تکرارول او له بل پلوه یې درگرده پر افغانستان هر اړخیز فشارونه واردول. دا وخت اسامه او ملگرو یې د ځان ورکولو او له افغانستانه د

وتلو پلان سنجولی و. هغوی خپل نظر له مشرتابه سره د طیب اغا په واسطه شریک کړ. مشر وویل موږ ته به څه درک ولګیږي چې هغه روغ او سالم رسېدلی؟ له همدې امله یې د ځو خاصو محافظینو د ملتیا ورته وویل چې په رسېدلو کې ورسره مرسته هم وکړي او اطمنان یې هم راوړي. که بالفرض وړاندې تلل ناممکن و، نو په بېرته راستنېدو کې به یې هم حفاظت کوي.

شیخ له خپلو کسانو سر ځان غایب کړ. رسنیو ته خبره لاړه. طالبانو هم ومنله چې تللی، خو طرف یې نه دی رامعلوم. دا وخت ځینې غرضي کړیو دا خبر خپور کړ چې طالبانو د اسامه پر سر یا معامله کړې یا یې ترور کړی. د فروري پر ځوارلسمه بي بي سي رادیو په دې اړه له ملا محمد عمر سره مرکه وکړه. د مرکې غټ ټکي دا وو:

موږ ته د اسامه د اوسېدو ځای معلوم نه دی. لس تنه محافظین مو د ده ساتنې لپاره ورسره کړي، هغوی ته مو ویلي، که اسامه له افغانستانه د وتلو اراده وکړه نو په ښه توګه یې رخصت کړئ. دا وخت موږ نه پوهېږو چې دی په افغانستان کې دی، که بل هېواد ته تللی. موږ یې نه په زور شړلای شو او نه یې سپارلای شو.

کله چې رسنیو د اسامه د و تلو خبره د یقین تر حده تبلیغ کړه او نړۍوالو هم د هغه د تلو ګمان وکړ، نو د امریکا د بهرنیو چارو د وزارت ویاند"جیمز رابن" په خپله رسمي وینا کې وویل: "که اسامه له افغانستان ولاړ هم شي نو زموږ په تګلاره به کې د طالبانو په اړه بدلون رانه شي".

د فرورۍ په ځوارلسمه د واشنګټن دغه رسمي وینا طالبانو ته یوه نوې اشاره ورکړه او په دې یې خبر کړل چې له اسامه نه وروسته هم دوی نه پرېږدي. تر دې مهاله چې اسامه د امریکا یواځینی هدف ګڼل کېده، نور طالبانو فکر وکړ چې اوس د دوی ټول نظام امریکا ته هدف دی. که له دې وینا د امریکا هر

هدف و، خو په طالبانو کې یې د هغو مشرانو خولې بندې کړې چې اسامه یې د لانجې اصلي جرړه ګڼله، بلکې یو نوی ذهنیت مخ پر وده شو چې امریکا یعنې د اسلامي حکومت او حاکمیت اصلي دښمن.

دلته نو په ډېرو ځوانانو کې دالقاعده داعیه نوره هم تقویه شوه چې امریکا د اسلام او مسلمانانو نړۍوال دښمن دی. باید د دوستۍ تمه ترې هیڅکله ونه شي. زما یاد دي، په دغه ورځ زه دعامو طالبانو مینځ کې په یو لوی مجلس کې ناست وم چې یوټیټ رتبه چارواکي بل ته وویل: "وادې وربدل؟ والله که مو پرېږدي. باید شیخ ورباندي خپه نه کړو. هسي به په دنیا او اخرت ځان مختورن کړو. ښه ده چې ټول (طالبان او القاعده) په یو ځای د امریکا دښمني وکړو".

له دې وروسته بیا بیا د امریکایي مقاماتو دې ته ورته څرګندونې په رسنیو کې خپرېدې چې په عامه طالبي ذهنیت کې یې د امریکا په وړاندې د افراط تر حده کرکه زېږوله او دې کار د القاعدې ځواک او دعوت ته زیاته ګټه رسوله.

څو میاشتې وروسته مشرتابه پوه شو چې اسامه بل هېواد ته نه دی اوښتی. کله چې ملا محمد عمر نه متوکل پوښتنه وکړه چې موږ رسنیو ته څه ووایو چې چېرته دی. مشر ورته وویل دروغ نه شو ویلی. اوس خو معلومه شوه چې نه دی وتلی. بس دومره وایاست چې په افغانستان کې دی، خو موږ ته معلوم نه دی. د جولای په اوومه چې د یوه خبریال په ځواب کې متوکل همداسې وویل نو ډېرو کتونکو داسې فکر وکړ چې دا خبره خبریال د متوکل له خولې وویستله!

پر افغانستان اقتصادي بندیزونه

د ۱۹۹۹م کال د جولای په پنځمه د امریکا له لوري یو طرفه بندیزونه اعلان شول. د اکتوبر په پینځلسمه د افغانستان پر یواځیني ایرلاین اریانا افغان الوتکو له هېواده بهر پرواز بندیز ولګېد. د رباني په مشرۍ ټلوالې پر افغانستان

د اقتصادي بندیزونو هرکلي وکړ. ایران هم د بندیزونو پرېکړه وستایله. هند د طالبانو ترڅنګ پر پاکستان هم د اقتصادي بندیزونو غوښتنه وکړه. د امریکا له خوا اقتصادي بندیزونه ورو ورو سخت شول.

د اکتوبر په شپږمه امریکا د ملګرو ملتونو امنیت شورا ته وړاندیز وکړ چې پر افغانستان دې بندیزونه ولګوي. د نومبر په څوارلسمه د ملګرو ملتونو امنیت شورا هم پر افغانستان اقتصادي بندیزونه ولګول.

ملا محمد عمر مجاهد د بندیزونو په اړه په خپل غبرګون کې وویل: امریکا ته اسامه اوس تشه بهانه ده، امریکا د یو سوپر طاقت په توګه غواړي هرڅه په خپله خوښه برابر کړي. د پښتو متل دی: د زورور اوبه پر لوړه خیژي...نن هر څوک د زورور ملاتړ کوي، ټول پوهیږو چې حقایق څه دي، د امریکا بې انصافي ټولې نړۍ ته معلومه ده.

د نومبر په څلورمه چې د امنیت شورا له خوا بندیزونه ولګېدل د افغانستان په غټو ښارونو کې د پلازمېنې په ګډون درنې مظاهرې وشوې. په کابل کې د ملګروملتونو پر دفتر مظاهره کوونکو برید وکړ. د دفتر ښیښې یې ماتې کړې. د کلنټن مجسمې یې وسوځولې او د امریکا بیرغ ته یې اور واچاوه.

دغه مظاهرې دومره درنې شوې چې د نه کنترول وړه وه، خو د میډیا حضور په کې نه و، ځکه براډکاسټ نه شوې. له څو مسلسلو مظاهرو وروسته ملا محمد عمر افغانانو ته د مظاهرو درولو وړاندیز وکړ او په دې اړه یې په خپله وینا کې وویل: "بل کلنټن او د هغه ملګري نه موږ ته رزق راکولای شي اونه د الله راکړی رزق را څخه بندولای شي. افغانان دې د بندیزونو په اړه نورې مظاهرې نه کوي".

د کلنټن له خوا د بندیزونو د پرېکړې تر امضا او اعلان پورې لا نړۍ په دې نه وه خبره چې اسامه په افغانستان کې دی که وتلی دی؟ له دې دوه ورځې وروسته متوکل د هغه شتون ومانه. د کلنټن دغه تلوار هم د دې غمازي کوله چې نور ورته د اسامه موضوع جدي نه وه او د هغه دغه عمل طالبان هم مایوسه کړل. د اسامه موضوع نوره طالبانو ته هم د ستونزې اصلي جرړه نه ښکارېده.

## د ملا محمد عمر پرکور خونړۍ چاودنه

۱۹۹۹ کال د اگست د میاشتې څلورویشتم مازیگر و، د ریاست په دروازه کې ولاړ وم چې د کندهار د شپږمې حوزې امنیتي مسئول بخت محمد په خپل موټر کې له څو ملگرو سره تېرېده ما وربانديې غږ کړ. د څه په اړه مې معلومات ورنه کول. اخیر چې رخصت کېده، ما وپوښت چېرته روان یاست؟ بخت محمد وویل د ملاصیب کور سره په عمومي سړک چا باردار موټر دروله جیک ورلاندې دی، خو خلک نشته. اوس د ملاصیب د کور پیره دارانو خبر راکړ. ځمه چې ویې گورم چې د چا دی او ولې لاړ دي؟

ماسخُتن له دفتره د ولایت مېلمستون ته روانېدم چې د مشر له کور سره لگېدلی و او زموږ له دفتره تقریبا یو کلیومتر لاره وه. ما موټر د تلو لپاره ریوس کاوه چې یوې چاودنې ټول ښار ولړزاوه او په هوا کې د اور سپرغۍ پورته شوې. چاودنه دومره درنه وه چې د موټر ټایرونه یې له ځمکې وخوځول. دا وخت چې زموږ ذهن ټول د امریکا بندیزونو او د کروزتوغندیو د احتمالي بریدونو طرف ته و، فکر مي وکړ چې یا توغندویي برید وشو یا هم پر مشر د الوتکو بمبار وشو.

په همدې ورځ له پاکستان سره د افغانستان پر سرحد ناپیژاندې الوتکې لیدل شوې وې. د اکثرو چارواکو ذهن هم دې تللی وو، خو تر ټولو نه زغمېدونکی خبر د مشر د ژوند او مرگ دواړو احتمال و، چې له موږه یې نور هر څه هېرول. ما څو دقیقې انتظار وکړ چې دقیق پوه شم چې د چاودنې بمبار یا توغندي هدف د مشر کور و که بل ځای؟ د موټر پرسویچ پورډ مخابره نصب وه. به مخابره هر چا د ملاصیب د ژوند او مرگ په اړه بې تابه چیغې وهلې چې په دې کې ملاصیب غږ کړ. زه ژوندي یم خو نور کور او ملگري تر خاورو لاندي دي.

زه ژر له موټره ښکته شوم. د دفتر د لمانځه خونې ته لاړم. د شکرانې دوه رکعته لمونځ مې وکړ. بیا مې موټر د مشر کور ته وځغلاوه. دا وخت ټول مشران د مشر د کور پر خوا خوشې ول. هلته ورغلو. د هغوی د کورنۍ غړي مو محفوظ ځای ته انتقال کړل، خو بیا هم د اسمان پلو ګورو. نه پوهېږو چې حمله هوايي ده که ځمکنۍ؟ په برید کې درنه مرګ ژوبله اوښتې او عمومي دروازې خوا ته څوک ژوندي پاتې نه دي چې سمدستي د چاودنې معلومات ورکړي.

په دې کې د ملا محمد عمر د جهاد د وخت له لسو زیات خاص ملګري او دوه وروڼه یې ملاعبدالخالق او عبدالسلام هم شهیدان وو. یوه مېرمن یې سرسري زخمي وه، خو د ده داوسیدو اصلي خونې ته د چاودنې زور پوره نه و رسېدلی. د لارې دېوالونو د چاودنې زور کم کړی و چې له همدې امله دی او اونور اهل بیت یې روغ ول، خو د خاصو ملګرو شهادت هغه ته سخته ذهني ضربه ورکړه چې بیا یې تر پایه هم هېر نه شول.

وروسته چې د پېښې ځای ته ورغلو نو د استخبارات رییس له مخابرې سره ولاړ و، نورو ملګرو یې شهیدان لټول، قاري حمیدګل وویل هم هغه مازیګرني موټر له باروتو ډک و. بخت محمد او د ملا محمد عمر وروڼو غوښتل په بل موټر پسې یې وتړي او له دې ځایه یې لېرې کړي خو داسې معلومه شوه چې د ریموټ کنټرولوونکی چېرته ناست و او د موټر له بې ځایه کېدو سره یې توکمه وهلې.

د دې موټر پلان داسي و چې کله ملا محمد عمر  کورته د ننه کیږي، دوی به موټر ته انفجار ورکوي. دا ورځ د پنجشنبې وه چې په همدې ورځ به ملاصیب معمولا مازیګر له دفتره کور ته وختي تللو. هدف نیوونکو همدې وخت ته ځان برابر کړی و، خو په دې ورځ ملا محمد عمر تر دوی مخکې کور ته تللی و.

د طالبانو له واکمنۍ وروروسته دا په کندهار کې د امنیت له اړخه لومړۍ ستره پېښه وه. کندهار د امنیت په برخه کې د طالبانو په واکمنۍ کې امتیازي حثیت درلود. هیچا هم فکر نه کاوه چې دومره ستره پېښه به کیږي. تر دې وړاندې طالبانو د خپل امنیت په برخه کې هیڅ توجه نه کوله، بلکې یواځې د ولس او عامه ځایونو امنیت ته متوجه وو. خو له دې وروسته مهمو چارواکو په خپلو ادارو کې هم امنیتي تدابیرو ته څه نا څه پام واړاوه.

پر سبا د امریکا خارجه وزارت دا پېښه وغندله او له زیانمنو سره یې خواخوږي وښودله. له لنډو تحقیقاتو وروسته متوکل مطبوعاتو ته وویل چې له لومړیو تحقیقاتو جوته شوې چې امریکا په دې پېښه کې لاس نه لري. ملا محمد عمر له امریکا غږ سره په خپله مرکه کې وویل په چاودنه کې بهرنی لاس و، خو د امریکا لاس په کې نه شته، زموږ دښمنان ډېر دي. د چاودنې مسئولین نه شي ورکېدای.

د دې پېښې دقیق عاملین د طالبانو مسئولو ادارو او چارواکو تر پایه نه دي په ډاګه کړي. ځینې خبرې اورېدل کېدې خو تش شکوک ګڼل کېدای شي. د بېلګې په توګه د ایران په مرسته د هلمند د ځینې قوماندانو نومونه اخیستل کېدل. د ایران په مرسته د حکمتیار او حتی حامد کرزي نومونه هم اخیستل کېدل، خو د پلان جوړولو اصلي ځای تر ډېره ایران ګڼل کېده.

له چین سره سیاسي او اقتصادي اړیکې

د طالبانو په حکومت کې د چین څو هیئتونو افغانستان ته سفرونه وکړل، چې په دې کې هم د وزارت خارجه مامورین وو، هم د استخباراتو او هم د چینایي کمپینیو استازي وو چې په افغانستان کې یې د رغنیزو چارو په برخه کې د سرمایه ګذارۍ ارادې لرلې. دغو هیئتونو د نورو چارواکو ترڅنګ له ملا محمد عمر مجاهد سره هم لیده کاته کول.

په اقتصادي برخه کې چینايي کمپنیو د لویو لارو، مخابراتي اسانتیاو او د سیمنټو د فابریکو په فعاله کولو کې د پانګونې ارادې لرلې او ځینې تړونونه هم نهايي شوي وو چې د اقتصادي بندیزونو له امله وځنډېدل.

کله چې د ۱۹۹۸م کال اګست کې امریکا پر افغانستان توغندي وار کړل، یو ناچاودلی توغندی د کندهار د معروف ولسوالۍ په حدودو کې پرېوت چې د ستمبر په دوهمه دغه توغندی د معروف امنیتي مسئولینو پیدا کړ او د کندهار وسله‌تون ته انتقال شو. د چین د استخباراتو مامورینو د اسلام اباد د سفارت له لارې تماس ونیو چې په پټه دا توغندی معاینه کړي. څو ورځې وروسته دوو چینايي انجنېرانو د چین د استخباراتو د مامورینو په ملتیا کندهار ته پټ سفر وکړ. هغوی د کندهار د قشله جدید په وسله‌تون کې روغ پاتې شوی "کروز" توغندی تفصیلي معاینه کړ.

له دې پېښې مفتی معصوم افغاني خبر شو. هغه له دې وړاندې په اسلام اباد کې سفیر و خو دا وخت د ناروغۍ له امله پر کور ناست و او د پاکستان "ضرب مومن" اخبار ته به یې له کندهاره راپورونه ورکول. هغه د ضرب مومن اخبار د موسس مرحوم مفتي رشید احمد لدیانوي د تصوف په سلسله کې مرید و. معصوم افغاني دغه پټ خبر د چا له اجازې او مشورې پرته ضرب مومن اخبار ته واستوه. ضرب مومن اخبار چې کله دغه راز افشا کړ. چینایانو سخت خپګان ښکاره کړ او طالبان یې د استخباراتي رازونو د ساتلو وړ ونه ګڼل. بل پلو امریکایانو پر چینایانو د پوځي ټیکنالوژۍ د کاپي کولو تور پورې کړ، خو د امریکایانو اصلي اندېښنه د چین او طالبانو له اړیکو وه.

د امریکا او روس له ګډو فشارونو نه وروسته ملا محمد عمر خارجه وزارت ته رسما امر وکړ چې له چین سره په روابطو توجه متمرکزه کړي. مشر ویلي وو د دوو ستر قوتونو په مقابل کې چین زموږ لپاره یوه ښه انتخاب دی، ځکه چې

چینایان  په دماغ کې د افغانانو په اړه استعماري نظر او پالیسي نه لري او د افغانستان مهم ګاونډي دی.

د ۱۹۹۹م کال د می په نهه ویشتمه د معادن او صنایع له وزارت سره یوې چینایي کمپنۍ د کندهار ، پلخمري او هرات په ښارونوکې کې د سمنټو د څو فابریکو د جوړو لو  قراردادونه وکړل، همداراز یې دعامه تجارت او رغنیزو چارو په اړه له اړوندو ادارو سره په نورو قراردادونو بحثونه پیل کړ.

مولوي احمد جان وایي یو ستر چینایي مقام راته وویل چې تاسو له اقتصادي بندیزونو نه مثبته ګټه هم پورته کولای شوای. هغه وویل چې موږ چینایان یو وخت لویدیځو بشري او خیریه انجوګانو دې ته رسولي وو، چې د دې موسیسو لخوا د توزیع کېدونکو خوړو لپاره مو لوښي هم نلرل، بلکې په لمنو کې به یې خواړه را اچول. خو چې کله راباندي بندیزونه ولګیدل او زموږ انقلابي مشر ټولې لویدیځې خیرې ادارې له هیواده وشړلې او چینایانو پر خپل ځان اتکا، تعلیم او صنعت ته مخه کړه، نو له شلو کالو وروسته چین اتومي ځواک شو. هغه زیاته کړه  ترڅو چې په کوم هیواد کې لویدیځي خیریه ادارې وي هغه به کله هم له فقر او غلامۍ نه خلاص نشي!

له هغه وروسته طالبانو د خارجه وزارت په کچه له چین سره وفدونه تبادله کړل خو تر ډېره به خبرې له میډیا پټې ساتل کېدې.

د طالبانو د واکمنۍ ړنګېدو وروسته هیڅا هم نور د طالب د سیاسي وجود ته تمه نه لرله او د مقاومت په بڼه هم طالب دومره ځواکمن نه ښکارېده. له ۲۰۰۶م وروسته طالبانو له ګاونډي هېواده له چین سره د تماسونو هڅې پیل کړې خو دا هڅې چې کله د ګاونډي هېواد له لوري کشف شوي، نو فعالین یې د مرګ تر کچې تهدید کړل، خو د قطر دفتر له پرانیستو وروسته یو ځل بیا په

ښکاره هیئتونه لاړل، چې ورپسې له ګاونډي هېواده هم هیئتونه لاړل او چینیانو هم په ښکاره له طالبانو سره خپل روابط ومنل.

د طالبانو مشر ملا اخترمحمد منصور په اخیر کې د پاکستان او قطر له لارې چین او روسیې ته سفرونه له سي آی اي نه پټ نه ګڼل او فکر یې کاوه چې دا سفرونه یواځي سمبولیکه بڼه لري ، په حقیقت کې دغه هېوادونه هم پر دغو هیئتونو پوره باور نه کوي او نه ستراتیژیک مسایل ورسره څیړي. له همدې امله یې له قطر او پاکستانه پټ له بل لوري ځانګړي هیئتونه واستول خو د ملا اخترمحمد منصور له مینځه تللو وروسته د قطر د دفتر د غړو له خوا دغه پروسه شنډه کړای شوه.

**له پاکستان سره ترینګلي اړیکې او د مشرف کودتا**

په ۱۹۹۹کال جولای نه چې امریکا یو طرفه بندیزونه ولګول نو دا وخت د پاکستان د صدر اعظم نوازشریف له خوا پر طالبانو له دې امله سختې نیوکې روانې وې چې طالبانو سره د پاکستان د توندروه ډلو یو شمېر داسې کسان شته چې پاکستان ته مطلوب دي. دا کومه پټه خبره نه وه چې د ازبکو، تاجکو او چیچن د خلکو ترڅنګ د پاکستان جهادیان هم له طالبانو سره په مرکزونو کې وو او په سنګرونو کې یې طالبانو سره په جګړه کې هم برخه اخیسته چې اکثره یې د کشمیري تنظیمونو خلک وو او پاکستان ورسره هیڅ مشکل نه درلود. د کشمیر ي ډلو رضا کار د روسانو پر ضد د جهاد پر مهال د عربانو په څېر د مجاهدینو په جبهاتو او ټریننګ سنټرونو کې هم کم نه وو. د حزب المجاهدین، البدر او حرکة المجاهدین رضاکاران د خوست، پکتیا، ننګرهار او یوشمېر نورو ولایتونو له مجاهدینو سره بلد وو.

دغه رضا کار نه طالبانو دعوت کړي وو او نه پاکستان په رسمي ډول رالېږلي وو، بلکې د جهاد په جذبه له طالبانو سره همکار وو، نو ځکه خو طالبانو هم د پاکستان په غوښتنه د هغوی په مینځ کې د ښه و بد چاڼ او توپیر نه شوای کولای. که هغوی په پاکستان کې هر نوم درلود، خو دلته یوائې د خارجي مجاهد او مسلمان ورور په حیث اوسېدل.

د سپاه صحابه تګلارې او منشور سره ملا محمد عمر دلچسپي نه لرله. د دغه ګوند ځیني کسان له نورو کشمیري جهادیانو سره په افغانستان کې ول. کله چې په کراچۍ کې یو مشهور دیني عالم مولانا محمدیوسف لدیانوي ترور کړای شو، نو ما په مخابره کې د ملا محمد عمر خبرې اورېدې چې طیب اغاته یې ووېل دوی (د سپاه صحابه کسانو) ته ووایه خدای مو خوار کړه ستاسې د حرکاتو له لاسه د امت په کچه علماء شهیدانیږي!

د نوازشریف د توندو څرګندونو په اړه طالبانو ګومان کاوه چې د دې څو تنو موجودیت دومره خبره نه ده چې نوازشریف دومره چیغې وهي. اصلي خبره د امریکا او لویدیځ خوشحاله کول دي او په دې بهانه د پاکستان حکومت غواړي چې د لویدیځ په ملګری د طالبانو په وړاندې ودریږي او ولس هم د ځان ملګری کړي.

نوازشریف سعودي او اماراتي واکمنو ته هم په دې د طالبانو پر ضد خبرې کولې. اخیر کې د نواز شریف ورور د طالبانو او افغانستان پر ضد توندې او ترخې خبرې وکړې چې دا د پنجاب د ایالتي مشر کار هم نه و. داسې معلومېده چې له لویدیزو کړیو سره د شهبازشریف همکاري او خواخوږي تر نوازشریف هم زیاته وه. شهبازشریف اخطار ورکړ چې پر افغانستان به خپل ټول سرحدونه وتړو. دا وخت چې موږ تر نړیوالو فشارونو لاندې وو دغه ډول خبرې راته کافي د تشویش وړ وې.

کله چې د اکتوبر په دولسمه د پاکستان فوځ پر نوازشریف کودتا وکړه نو موږ هم ورته یواځې په دې خوښ وو چې د نوازشریف د حکومت تریخ دریځ به بنایي د ډېر وخت لپاره له مینځه لاړ شي او موږ ته به د یو څه وخت لپاره له پاکستانه ستونزې کمې شي.

د کودتا له اعلان او بري وروسته ملا محمد عمر ما ته په دې اړه د یوې اعلامیې د ترتیب وویل ما اعلامیه ترتیب کړه خو د اعلامیې په الفاظو کې یو ډول د دې کودتا هرکلی او تېر رژیم غندنه نغښتې وه چې کله مې مشر ته په تلفون داعلامیې متن ولوست هغه وویل د دې اعلامیې ژبه ناسمه ده. نه باید زوړ رژیم وغندو، نه د نوي هرکلي وکړو. بلکې نېکې تمناوې، دوطرفه همکاري او اسلامي اخوت باید د اعلامیې اصلي توري وي او د پاکستان د داخلي سیاست په اړه د نه مداخلې دریځ په کې روښانه وي.

اعلامیه مې بیا مرتبه کړه خو بیا مې هم دغه کودتا د پاکستان د مخالفینو په وړاندې یو ډول غبرګون ونوماوه. دوهم ځل مې مشر ته اعلامیه واوروله هغه منظوره کړه. بیا مې رسنیو ته واستوله. د اعلامیې توري په لاندې ډول وو:

د افغانستان حکومت او خلک په پاکستان کې امن، سوله او ټینګ حکومت غواړي. د پوځ له خوا پرونۍ کودتا د پاکستان خپله کورنۍ مسئله ده او له دې هېواد سره د ځینې بهرنیو کړیو د یو لړ هغو حرکتونو په وړاندې غبرګون دی چې د پاکستان د ولس، پوځ او پارلماني حکومت د غرور او خپلواکي پر ضد یې ترسره کوي.

مشرف ته د ملا محمد عمر له خوا د اسلامي نظام د نفاذ وړاندیز

کله چې مشرف کودتا وکړه نو له څه وخت تېرېدو وروسته د پاکستان د جمهوري ریاست پر څوکۍ یې هم ځان وټاکه. ملا محمد عمر هغه ته یو رسمي لیک واستاوه. دا لیک چې د ملا محمد عمر مجاهد په دفتر کې لیکل کېده، مهم ټکي یې دا وو چې پاکستان د مسلمانانو هېواد دی او ټول ولس یې اسلامي قانون غواړي، نو دا یو ښه فرصت دی چې تاسو (پروېزمشرف) دا وخت ملکي او پوځي واکونه دواړه په لاس کې لرئ او هیڅوک مو مخ ته نه شي درېدای، په اساني کولای شئ چې اسلامي شریعت د پاکستان رسمي قانون اعلان کړئ او په خپلو عالي محاکمو کې یې عملي کړئ.

د دې لیک په ځواب زه بیا خبر نه شوم. ښایي یا مشرف خاموشي غوره کړې وي یا یې معذرت او نور دلایل وړاندې کړي وي.

دا وخت چې پاکستاني علماوو او دیني طبقې د طالبانو پراخ ملاتړ کاوه نو ملا محمد عمر په دې کار کې له مشرف سره د مرستې توان هم په ځان کې لیده، خو وروسته طالبانو ته د مشرف شخصیت او تګلاره جوته شوه چې نه یواځې له اسلام او مسلمانانو او سره دلچسپي نه وه، بلکې زموږ پر ضد یې له

امریکایي یرغل سره لاس یو کړ او د پاکستان خپلواکي یې هم له ننګوونو سره مخ کړه، چې له امله یې دغه هېواد د تلپاتې نا امنۍ په غیږ کې ورکړ. هغه خپل افتخارات هم توهین کړل، خپل اتومي ساینس دانان یې هم د نورو د خوشحالۍ لپاره تهدید او تذلیل کړل.

پاکستاني حکومتونو له طالبانو سره اړیکې د یوسیاسي او تخنیکي ضرورت په توګه پاللې او په دې اړه یې نړۍ هم ځان ته اړ ګڼله، خو د پاکستان عام ولس او دیني طبقې اکثره له طالبانو سره ژور دیني او قلبي تړون درلود.

ملا محمد عمر مزاجاً د هیڅ یوه هېواد په چارو کې مداخله نه غوښتله چې په دې کې پاکستان هم و، خو د پاکستان له دیني خلکو او ولس سره یې اړیکه داسې ګڼله لکه له خپل ولس سره. که څه هم ملا محمد عمر د پاکستان د مذهبي ګوندونو کردار اوپالیسي نه خوښوله او نه یې په مروج جمهوریت کې د هغوی سیاسي رول مناسب ګاڼه، خو د پاکستاني علماوو په حیث یې د هغوی درناوی کاوه او خپل دوستان یې ګڼل.

### دیموکراسي او طالبان

د طالبانو دیني او سیاسي څېرې د جمهوریت او دیموکراسۍ په اساسي ریښو او حقیقت پسې ډېر سر نه ګرځوي. هغوی څو بنسټیزه او پام وړ تصورات لري. یو دا چې په کمزورو اسلامي هېوادونو کې چې د جمهوریت په نامه کوم څه روان دي، هغه یو ډول جعل دی. ستر قدرتونه په کې فضا د ځان په ګټه برابروي. په اقتصادي، تبلیغاتي او استخبارتي هڅو هغه څوک سر ته راباسي چې د دوی د ګټو ساتونکی وي. که هغوی د خپل هېواد کټو ته وفادار هم نه وي او داخلي پس منظر یې هر څومره خراب وي خو چې دوی ته وفادار وي. د هغوی د بري لپاره، مال، میډیا او پټې توطیې هم په کار اچوي، چې کله دغه

خلک بریالي شي نو بیا یې استعمارګر هېوادونه نړۍواله ډیپلوماتیکه ننګه هم کوي او په اړه یې مثبت تبلیغات هم کوي.

بل اساسي تصور دا دی چې د ټاکنو لپاره دروغ ویل، بې ځایه دعوې، ریاکاري، یو پر بل ناحقه الزام او تهمت پورې کول په ټاکنیزو سیالیو کې هره ډله او کاندید خپل ضرورت ګڼي. سیکولر او اسلام پال په کې یو ډول دي، نو له داسې چا نه به د سوچه اسلامي شخصیت تمه څنګه وشي چې هغه دروغ، وعده خلافي، منافقت او ریاکاري خپل معمول وګرځوي!

د داسې چا په لاس بیا د اسلام مقدس دین د یوه نظام په توګه نافذول هم له اسلام سره ټوکې دي او که دا اعمال هغوی نه کوي، نو بیا د هغوی د هغو مخالفینو انتخاباتي بریا حتمي ده چې د استعمارګرو او اسلام دښمنو قوتونو د زر، زور او میډیا همکاري ورسره وي،چې دا بیا د یوې اسلامي ټولنې لپاره فکري او نظریاتي ناورین دی.

په هغو کمزورو اسلامي هېوادونو کې چې پوځ یو مستقل ځواک وي او اسلامي نظریاتو ته وفادار نه وي، نوهلته که اسلام پال بری هم ترلاسه کړي نو استعمارګر یې پر ضد پوځ هڅوي او پانګونه پرې کوي، لکه په مصر او الجزایر کې.

هو! مګر هغو هېوادونو کې چې د مارشل لا واکمن یې د اسلام پر ضد هم وي او پر مسلمانانو د یکتاتوري واکمني هم چلوي، نو بیا ورنه جمهوري واکمني په هر حال ښه ده.

همداراز هغه شاهي مستبد حکومتونه چې د استعمارګرو په اشاره او مشوره یې خپل مسلمان ولسونه زندۍ کړي وي، له هغوی نه هم جمهوریت ښه دی.

په مجموع کې که مسلمان خپلې عقيدې ته وفادار، خپلواک او پر خپل ولس مهربان حاکمان په هر ډول او هره وسيله په مسلمانانو حکومت کوي، نو دا اسلام او مسلمانانو ته ګټور او غنيمت دی.

په لنډ ډول که ووايو نو طالبان د انتخاب شکل او ډول ته اهميت نه ورکوي، بلکې پايلې او پر اسلامي ټولنه يې فکري او عقيدوي تاثير ته اساسي اهميت ورکوي، چې له همدې امله طالبان مستقيما د انتخاب د طريقې پر ډولونو فتواوې لګول نه خوښوي.

د هندی الوتکې کړکېچ – ۲۲ ډسمبر ۱۹۹۹

له يوې بوختې کاري ورځې وروسته له دفتره وتم، چې د مشرتابه ځانګړې مخابرې (نصرت) غږ وکړ. له دې غږ سره بېرته کارځای ته راغبرګ شوم. له کابله د هوايي چلند وزارت د اميرالمومنين دفتر ته خبر ورکړی و، چې يوې تښتول شوې الوتکې پر کابل هوايي ډګر د ناستې اجازه غوښتې، خو اجازه نه ده ورکړل شوې. وزارت ويلي وو، چې الوتکه دا مهال کندهار ته پر لار ده. دا وخت زموږ د رپيټر مخابرې په لومړی شمېره کې ټول ګډونوال غوږ وو. دا شمېره يواځې له محدودو او مهمو کسانو سره وه. ما ته د دې پېښې څارنه ځکه ډېره مهمه وه، چې له دا ډول پېښو سره سم رسنۍ اړيکه نيسي. زه بايد کاري دفتر کې پاتې شوی وای. الوتکه کندهار ته نږدې وه چې پاکستاني چارواکو د اسلامي امارت د بهرنيو چارو وزارت او نورو مهمو مقاماتو ته خبر ورکړ، چې تښتول شوې الوتکه د هند ده.

پاکستاني چارواکو ويل، چې د دوی د حکومت رسمي مشوره دا ده چې موږ الوتکې ته د ناستې اجازه ورنه کړو. د پاکستانيانو استدلال دا و چې په دې نازکو حالاتو کې دا کار هم ستاسو (اسلامي امارت) په زيان دی او هم يې پر موږ (پاکستان) ناوړه اغېز پرېوځي. د پاکستانيانو دغه وړانديز چې کله

اميرالمومنين ته ورسېده، له څه ځنډ وروسته يې پر رپيټر مخابره چې ټولو مهمو کسانو اورېده، هوايي ډګر ته وويل چې الوتکې ته د ناستې اجازه ورکړئ.

دا وخت چې اميرالمومنين د هوايي ډګر مقاماتو ته د الوتکې د ناستي د اجازې امر کاوه الوتکه د کندهار له مسيره تېره شوې وه او د ايران پر مسير د متحده عربي اماراتو پر لور روانه وه. زموږ هغه حکومتي چارواکي چې د الوتکې د ناستې مخالف و، نور بې غمه شول ځکه چې دوی فکر کاوه چې الوتکه نوره ولاړه، خو څو ساعته وروسته په دوبۍ کې د اريانا هوايي شرکت د دفتر مسوول حاجي فريد کندهار ته په تليفوني تماس کې وويل چې الوتکه د دوبۍ پر المنهاج هوايی ډګر ناسته ده او د تېلو اچولو او د سورليو له خوراک او څښاک وروسته د بېرته الوت اراده لري. د بهرنيو چارو وزير مولوي وکيل احمد متوکل او ځينو نورو مسوولينو په دې تاکيد کاوه چې دا کار تر شا ښه عواقب نه لري او پاکستان هم له همدې امله د دې کار مخالفت کوي.

د شپې ناوخته د پاکستان يوه لوړپوړي پوځي مقام، برګيډير سلطان پر تلفون مشرتابه ته د خپل حکومت مشوره او دلايل وړاندې کړل. دغه پاکستاني برګيډير وويل: "له يوه لورې پر تاسو نړۍوال فشارونه او اقتصادي بنديزونه دي، بل لور ته په هر کار کې هند پاکستان ته ګوته نيسي، نو که تاسو دا کار وکړئ، پاکستان او افغانستان دواړو هېوادونو ته ښايي زيان ولري؛ ځکه چې زموږ اړيکې له هند سره دا وخت ډېرې نازکې دي". اميرالمومنين د سلطان وړانديز رد کړ او ويې ويل: "دا زما خپله فيصله ده، موږ په دې کې د خپل حکومت او هېواد لپاره ځانګړي اهداف لرو".

دا چې دا اهداف څه و، اميرالمومنين موږ ته په ځانګړې مخابره په واضحو ټکو وويل: "که د الوتکې تښتوونکي مسلمانان وو د خپل اسلامي مسووليت له مخې يې مشروع مرسته کوو او که هندوان وو، نو د هند حکومت ته يې

سپارم، ترڅو د هند له دولت سره د افغانستان د اسلامي امارت روابط جوړ کړو." د مشر دغه الفاظ د رپيټر مخابرې د لومړۍ شمېرې ټولو ګډونوالو واورېدل، چې ډېری يې اوس هم له نيکه مرغه ژوندي دي.

غالباً د اريانا د دوبۍ دفتر مشر د المنهاج هوايي ډګر د چارواکو په وسيله هندي الوتکې ته خبر ورساوه، چې د کندهار پر هوايي ډګر ناسته کولای شي.

الوتکې په دوبۍ کې د يوه نارينه او يوې ښځينه مړي او درې دېرشو ښځو او ماشومانو له کوزولو وروسته کندهار ته راغله. تر دې مهاله هيڅوک هم خبر نه وو چې د الوتکې تښتوونکي څوک دي او څه هدف لري، خو وروسته دا جوته شوه چې الوتکه د نيپال هېواد له پلازمېنې کتمندو څخه د هند پلازمېنې نوي ډيلي ته روانه وه چې د الوتکې د يوولسو کارکوونکو په ګډون دوه سوه ديارلس سورلۍ په کې سپاره وو، چې يو شمېر يې بهرني ديپلوماتان هم وو او يو ناڅاپه يې مسير بدل کړ. لومړۍ ناسته يې د هند په امرتسر ښار کې وکړه، چې د تېلو له اچولو وروسته يې بېرته الوت وکړ.

دا وخت هندي مقاماتو ته معلومه شوې وه چې الوتکه يرغمل شوې ده. د هند له امرتسر وروسته يې دوهمه ناسته د پاکستان په لاهور ښار کې وکړه، او بيا يې افغانستان ته مخه کړه.

سهار ته نږدې الوتکې د کندهار پر هوايي ډګر ناسته وکړه. زه هم سهار لږ وروسته د هوايي ډګر پر لور وخوځېدم. د بهرنيو چارو وزير ښاغلي وکيل احمد متوکل د هوايي ډګر د تماس ټاور کې ناست و. زه هم وروختلم، له ټاوره د هوايي ډګر منسوبينو د الوتکې له تښتوونکو سره په انګليسي خبرې کولې. لومړی يې له هغوی د خواړو په اړه وپوښتل چې سورلۍ څه ډول خواړه خوښوي. هغوی د قابلي پلاو وويل. له ما سره په دفتر کې د ظاهر په نامه يوه

ځوان کار کاوه چې مور يې هندوستانۍ وه. په هند کې وړوکی لوی شوی و، په هندي ژبه يې روانې خبرې کولای شوای، لومړی مو هغه راوستی و، چې له تښتوونکو سره په خبرو ځان پوه کړي، خو وروسته له تماس خبره روښانه شوه چې تښتوونکي پاکستانيان دي اردو ژبه وايي.

تښتوونکو د مولانا مسعود اظهر په ګډون د پينځه دېرشو پاکستاني کشميري مبارزينو د خلاصون او يوه لويه اندازه پيسو غوښتنه لرله، چې بيا وروسته د اسلامي امارت له خوا د پيسو له غوښتنې تېر کړای شول؛ ځکه دې کار کومه بشري او اخلاقي انګېزه نه لرله او تش د تاوان لپاره د تښتونکو بڼه يې خپلوله. له همدې امله امارت په دې غوښتنه کې د هغوی ملاتړ ونه کړ او د بنديانو د غوښتنې ملاتړ يې وکړ.

د هغو هېوادونو له لوري چې په دې الوتکه کې يې مهم اتباع يرغمل وو، د هند پر دولت فشار ډېر زيات و. دا وخت د ملګرو ملتونو او سره صليب د ادارو له خوا هندي حکومت سره تماس نيول شوی و. ان د الوتکې تر ناستې وړاندې لا هند پر دې راضي و، چې د بشري ضرورت او د يرغمل شويو د ساتنې په موخه افغان حکومت کولای شي چې د تېلو او خواړو د ورکړې لپاره الوتکې ته د ناستې اجازه ورکړي.

وکيل احمد متوکل د ټاور د تماس نيوونکو په وسيله له تښتوونکو نه هم پوښتلي وو. هغوی ورته ويلي وو، چې دا به زموږ وروستۍ ناسته وي، نور بل لور ته نه شو تللای او که څوک راسره زور وکړي ځانونه او الوتکه به له مينځه لاړه شي. که څه هم د ملا محمد عمر موقف ښکاره و، خو د تښتوونکو دغه غبرګون له متوکل سره په ديپلوماتيک او مطبوعاتي ډګر کې مرسته وکړه.

متوکل په لومړي ځل رسنیو ته وویل چې الوتکې ته مو د هند د حکومت په خوښه د تېلو او خوړو لپاره د ناستې اجازه ورکړه، خو هغوی اوس له پروازه انکار کوي او د زور په صورت کې د ځان او سورلۍ د له منځه وړلو اخطار راکوي، چې دا یو خطرناک حالت دی، باید هند د مسئلې په حل کې مثبت ګامونه اوچت کړي.

دا وخت د سیمه‌ییزو او نړۍ‌والو رسنیو او ډیپلوماتیکو کړیو پاملرنه ټوله دې لور ته وه. شنونکو او د نظرخاوندانو پر طالبانو د رسنیو له لارې هم غږونه کول، که د الوتکې په اړه کومه ناوړه پېښه رامنځ ته شي، دا به د طالبانو لپاره نړۍ نوره هم دښمنه کړي. هند حکومت هم په دې اړه له نړۍ نه رسمي مرسته وغوښته.

د روسیې حکومت په دې اړه د امنیت شورا غړو ته د بیړنۍ غونډې مشوره ورکړه. د امریکا د بهرنیو چارو وزارت په خپله اعلامیه کې دا پېښه ترهګري او بشرضد وګڼله اوغوښتنه یې وکړه چې هند او د سیمې نور هېوادونه دې له افغان حکومت سره په ګډه د یرغمل شویو د خلاصون ممکنه هڅه وکړي، چې د سیمې له هېوادونو یې هدف پاکستان و، زموږ ترخنګ پر پاکستان هم فشار و، چې دلته د برګیډیرسلطان خبره رښتیا شوه.

امارت د الوتکې د امنیت په اړه یو مستقل امنیتي ټولګی تشکیل کړ، چې ځانګړې یونیفورم یې په تن و. په وسلو سمبال او اور وژونکي موټرونه هم ورسره وو. دا مستقله پوځي قطعه یې د الوتکې هر لور ته ځای پرځای کړه، چې د الوتکې لور ته په بدل یونیفورم کې څوک نږدې نه شي یا هم یرغمل کوونکي په کوم ناوړه عمل لاس پورې نه کړي.

په کندهار کې د ګڼ شمېر پاکستاني او نړۍوالو خبریالانو ګڼه ګوڼه وه او د خبریالانو د تنظیم چارې تر ډېره پر ما وې. د پلان له مخې به د خبرو په جریان کې متوکل د تازه پرمختګونو په اړه د خبریالانوغونډې ته هره ورځ معلومات ورکول. د امارت له لوري د الوتکې منظمه څارنه او د هوايي میدان کلک امنیت او د متوکل صیب محتاطې دیپلوماسۍ د حالاتو نړۍوال څارونکي تر ډېره حده مطمئن کړل. له همدې امله خو د ملګروملتونو د بشري مرستو مشر "ایرک ډیمول" رسنیو ته وویل: د طالبانو له دې امله ډېر منندوی یم چې د یرغمل شویو د ژوند او امنیت ډېر غم ورسره دی او په دې اړه یې پوره او بریالۍ هڅې جاري ساتلې. ډیمول دا هم وویل چې که څه هم پر طالبانو په دې اړه ډېر سخت نړۍوال فشارونه دي، خو هغوی دا موضوع په ښه توګه د بري لور ته نږدې کړې.

د ډسمبر په اوویشتمه د الوتکې د تخنیکي څارونکو په ګډون له هنده پنځوس کسیز پلاوی د ملګرو ملتونو په ځانګړې الوتکه کې کندهار ته راورسېد او د هوايي ډګر په مېلمستون کې ځای پرځای شول. له یوې اوونۍ پرله‌پسې خبرو وروسته د هند د بهرنیو چارو وزیر جسونت سنګ د ملګرو ملتونو په ځانګړې الوتکه کې درې تنه اسیران مولانا مسعود اظهر، مشتاق عمر او سید عمر شیخ له ځانه سره راوړل او له متوکل سره تر اوږدو خبرو وروسته یې د الوتکې عمله له الوتکې رابهر کړل. تښتوونکي او درې تنه راخلاص شوي بندیان د کندهار د قول اردو لور ته بوتلل شول.

د هند د بهرنیو چارو وزیر جسونت سنګ تر رخصتېدو وړاندې د افغانستان د بهرنیو چارو له وزیر وکیل احمد متوکل سره ګډ خبري کانفرانس ته خبرې وکړې. دغه خبري ناسته چې د هوايي ډګر د مېلمستون تالار کې وشوه، په لسګونو سیمه‌ییزو او نړۍوالو خبریالانو په کې ګډون وکړ.

متوکل له خپل سیال جسونت سنگ نه مننه وکړه چې د ستونزې په اواري کې یې پوره رول ادا کړ، په مقابل کې جسونت سنگ نه یوازې دا چې له متوکل نه یې مننه وکړه، بلکې متوکل ته یې هند ته د ورتللو رسمي بلنه هم ورکړه.

موږ د هند خارجه وزیر د الوتکې تر زینې بدرگه کړ. هغه د خدای پامانۍ په دود لاس اوچت کړ او رخصت شو. د ملگرو ملتونو د الوتکې له الوته یوه شیبه وروسته د هند یرغمل شوې الوتکې هم پرواز وکړ. موږ په خپلو خپلو موټرونو کې د ښار پلو ته را روان شوو. دا وخت زموږ مخابرې لگېدلې وې. د رپیټر پر لومړۍ شمېره ملا محمد عمر د قول اردو پر قوماندان مولوي اختر محمد عثماني غږ کړل. مشر له عثماني سره د وروستیو جریاناتو په اړه له غږېدو وروسته عثماني ته وویل: "پام چې پر ځان مغروره نه شئ چې دا موضوع موږ او تاسو حل کړه، دا یو دروند امتحان و، چې یواځې د الله په غیبي نصرت پای ته ورسېد".

زه له ځانه سره په دې خبره ډېر خوشاله وم چې د دومره نړۍوالو فشارونو او اقتصادي بندیزونو پر مهال که متوکل د هند سفر وکړي، دا به ستره د ډیپلوماتیکه لاسته راوړنه وي، خو هفته وروسته د لویدیزې او هندي میډیا له لوري فضا بېرته خړه پړه شوه او دغه ټوله ماجرا یې پاکستاني استخباراتو پورې وتړله.

د هند په دننه کې هم لوړپوړي هندي مقامات د خپل خارجه وزیر له بلنې صرف نظر شول. بل پلو پاکستان هم لومړی دې ته اندېښمن و چې که ربښتیا متوکل هند ته رسمي سفر وکړي دا به د پاکستان لپاره ناوړه پیغام وي.

د متوکل صیب رایه دا وه چې تېښتوونکي باید سره صلیب ته وسپارل شي، خو مشرتابه وویل چې موږ له هغوی سره د خوندي خوشي کېدو عهد کړی، هغوی خپل اختیار لري چېرته چې ځي هلته تلای شي.

نړۍوالو اوهندي رسنيو زما په حواله خبر تېر کړ، چې هايجکران پاکستان ته لاړل، خو ما هيڅ داسې خبره چا ته نه وه کړې او بنديان او تښتوونکي دا مهال دواړه لاهم په کندهار کې وو. زه ډېرحيران شوم چې څرنگه ميډيا په په غلطه يو خبره ماته منسوبه کړه او بيا يې دومره هوا هم ورکړه.

په سبا ماښام موږ څو تنه د اسلامي امارت چارواکي په کندهار کې د پاکستان کونسلگرۍ ته د ماښامنۍ لپاره وربلل شوي وو. په دغه مېلمستيا کې د بهرنيو چارو وزير، وکيل احمد متوکل، د کندهار د قول اردو قوماندان، مولوي اختر محمد عثماني، د مشر سکرتر سيد محمد طيب اغا، پخوانی خارجه وزير ملا محمد غوث، زه او يو څو تنه نور وو. کله چې مېلمستيا ته ورغلو نو د کونسلگرۍ د نظامي اتشې مسوول "زاهد" زموږ اصلي کوربه و، چې بيا څه موده وروسته د زړه د ناڅاپي دورې له امله وفات شو. کونسلر تر ډېره تشريفاتي بڼه درلوده، اصلي واک د نظامي اتشې د مسوول و؛ ځکه چې کونسلر د خارجه وزارت له خوا رالېږل کېده او د اتشې مسوول معمولا د آی اس آی له خوا ټاکل کېده.

زاهد مرحوم موږ ته د هند پر ضد داسې خبرې پيل کړې، لکه څوک چې د مکتب د لومړي ټولگي شاگردانو ته درس ورکوي!

ويل يې "هندو هيڅکله د مسلمان دوست نه شي کېدای. هند په تاريخ کې له مسلمانانو سره بې کچې ظلمونه کړي او دې ته ورته خبرې...". موږ پوه شوو چې د زاهد هدف څه دی او د خپل حکومت له خوا څه دنده ورسپارل شوې.

د خبرو په جريان کې زاهد د الوتکې او ميدان د ښه امنيت او نظم په اړه د اختر محمد عثماني ستاينه وکړه، خو عثماني مزاجا ډېر خوش طبعه و، کله کله به يې په مهم مجلس کې هم يوه نيمه ظريفه ټوکه کوله. د زاهد د خبرې په ځواب کې يې وويل: موږ پوهيږو چې تاسو هم له ميدان سره په نږدې کنډوالو کې خپل گيله

ګيان غلي کړي و (ګيله‌ګيان غلي کول د لوی کندهار په اصطلاح کې ځانګړی مفهوم لري، ګيله‌ګي کم عمره خوسکيو ته وايي). اشاره يې د کونسلګرۍ هغو دوو موټرانو ته وه چې د دغي ماجرا په ورځو کې به يې له هوايي ډګره د باندي په رنګو خونو کې پټ درولي وو او له هغه ځايه به يې د هوايي ډګر څارنه کوله؛ په دوربين کې به يې الوتکې ته هم کتل.

د عثماني صيب دغې معنادارې خبرې ته ټولو سخت وخندل. که څه هم د پاکستاني موټرانو دلته درېدل به ښايي د امارت په اجازه وو، ځکه چې هغوی په دې سرګردانۍ کې ځان شريک ګاڼه. د خپلو اتباعو مسئله يې وه، خو د عثماني ټوکه په دې اړه په خپل ځای کې ډېره معناداره وه، ځکه خو زاهد له خندا وروسته يو څه فکر يوړ.

د مجلس د پای په شېبو کې ملا محمد غوث اخوند د همدې پېښې په اړه يو څو داسې پوښتنې وکړې، چې په ظاهره داسې معلومه شوه چې له جريانه پوره خبر نه دی. په دې سره متوکل صيب موسکی شو او ما ته يې وکتل، خو ما چې فکر وکړ ملا محمد غوث په لوی لاس غوښتل چې د پېښې له ځينې ښکاره اړخونو ځان ناخبره وښيي او په ځواب کې د پاکستاني مقام خبرې واوري او د هغوی ليدلوری ځان ته پوره معلوم کړي، ځکه چې ملا غوث دقيق او ظريف مزاجه سړی و.

د کوکنارو په کرهڼه ناڅاپي بنديز

پر کابل د طالبانو له واکمنۍ بيا تر ۱۹۹۹کال تر پايه له نړۍ‌والو انجوګانو سره د تفاهم په لړ کې د هر کال په تېرېدو د کوکنارو د کښت د تدريجي کمښت پاليسي وه چې لومړی به يو پر درې، بيا نيمه برخه او بلاخره به صفر کيږي او دا د دې لپاره چې په يو ناڅاپي بنديز خلکو ته مالي ضربه ونه رسيږي.

ملا محمد عمر چې کوم علماوو ته ډېر معتقد و، هغوی له اوله د کوکنارو د کښت مخالف ول، خو د تدریجي کمښت پالیسي یې منله. دا پلان په لومړي او دوهم کال سم روان و، په ۱۹۹۸ او ۱۹۹۹کال کې فیصدي سرچپه وه. دا وخت چې د نړۍوالو تعزیراتو او لویدیځ د دښمنۍ له امله ملا محمد عمر د منکراتو د دفع په جذبه له نړۍوالو نورمونو او غوښتنو نه په بې پروایۍ عمل کاوه، چې په دې لړ کې بیا وروسته د بتانو نړېدل او اهل ذمهوو ته فارقه لباس او ځینې نور اوامره هم راځي؛ د کوکنارو بندیز هم سوچه دیني بڼه لرله.

سیمهییزو علماوو د طالبانو د واکمني له لومړیو ورځو د تریاکو د کښت په اړه د جواز مشروط دلایل ویل. دې دلایلو ملا محمد عمر ته له اوله چندان خوند نه ورکاوه، خو د ولس د یو ناڅاپي نارضایت له وېرې ځینو طالب چارواکو ملا محمد عمر د تریاکو په تدریجې (ورو ورو) بندیز قانع کړی و چې د فیصدۍ له مخې به هر کال کنترولیږي او د څو کلونو په تېرېدو به دغه کښت صفر کیږي. نړۍوالې ادارې به یې کروندګرو ته په پرېښودلو معاوضه ورکوي چې په یو ناڅاپي بندیز کروندګر له یو ناڅاپي مالي ستونزې سره مخ نه شي. که نه حکومت سره به یې واټن پیدا شي، خو دغه تدریجي پروسه وروسته ټکنۍ ښکاره شوه.چې له امله یې ملا محمد عمر د دې پروسې پر بریالیتوب شکمن شو.

تریاک د جنوبي ولایت هلمند په ځینو ولسوالیو کې د شوروي تجاوز پر وخت لا دود شوي ول چې د مجاهدینو له بري وروسته د هلمند په اکثرو او د کندهار په ځینې ولسوالیو کې دود شول او د هېواد په شرقي او شمالي ولایاتو کې هم دغه کرهڼه پیل شوه.

په هلمند، ننګرهار او بدخشان کې د اپیمو کارخانې جوړې شوې. تاجکستان او پاکستان ته دایران په نسبت د افیونو قاچاق اسانه و، ځکه خو له دغو

هېوادونو سره د افغانستان سرحدي سيمې د قاچاقبرو د توجه وړ وې. د طالبانو په راتګ سره هم دغه کاروبار روان و. طالبانو لومړی په دې اړه محتاط قدم اخيست، ځکه چې ډېرو سيمه‌ييزو ملايانو دغه کښت ته جواز ورکاوه، حتی د جوماتونو امامانو يې زکاة اخيست. همدا راز د طالبانو نږدې ملاتړو خلکو دغه کښت کاوه او ځينو يې تجارت کاوه، خو داسې مشهور علما هم وو چې هم مشرتابه ته نژدې وو اوهم يې دغه کښت روا نه ګاڼه چې بالاخره ملا محمد عمر له يو شمېر مشهورو علماوو سره له تفصيلي بحث او مشورو وروسته د تدريجي بنديز د پاليسۍ برعکس په يوه وار د بنديز پرېکړه وکړه.

د۲۰۰۰م کال د جولای د مياشتې پرشپړويشتم مازيګر په خپل دفتر کې ناست وم چې په تصادفي ډول د WFP موسسې محلي کارمند انجنير فضل محمد زما دفتر ته راغلی و. مشر په رپيټرمخابره له دود سره سم راباندې غږ کړل: عبرت! عبرت! (دا زما د مخابرې نوم و). ما ورته بلې ووېل. مشر ووېل کاغذ او قلم درواخله. زه پوه شوم چې ښايي کومه عاجله او مهمه اعلاميه به وي. قلم او کاغذ مې را واخستل... وايي وليکه..ما ويل څه وليکم؟

- دا وليکه چې له ننه وروسته په هېواد کې د کوکنارو پر کرهنه بنديز دی. د سرغړونې په صورت کې درنه جزا ده.

هېښوونکي خبر و. د ليکلو مينځ کې مې په خبرو کې ورټوپ کړل: هيڅ شرط په کې نه شته؟ او د نړۍ‌والو ادارو نه د بديل په توګه د مرستو غوښتنه؟

خبره يې راپرې کړه: "...هيڅ شرط په کې نه شته يواځې د خپل اسلامي مسئوليت له مخې يې د منکر په توګه بندوم!

نه يې د نړۍوالو لپاره بندوو او نه له کومې ادارې مرسته غواړو. که څوک کروندګرو سره مرسته کوي او که يې نه کوي دا کار موږ د خپل شرعي مسئوليت له مخې کوو او تر اوسه چې پاتې وو، د هغه دې هم الله عفوه راته وکړي".

د اعلامیې ټول الفاظ انجنیر فضل هم واورېدل، هغه هم د خوښۍ او حیرت په عالم کې ډوب و.

اعلامیه مې پوره کړه او بیا مې یو څه الفاظ وربرابر کړل خو په فکرونو کې ډوب وم، ځکه چې تارياک هغه ستره نړۍواله نیوکه او موضوع وه چې نړۍوالو ادارو یې په اړه هره ورځ په میډیا کې پرېړې خپرولې. په داسې بې قید وشرطه اوساده ډول بندول يې هېښوونکې پېښه وه.

انجنیر فضل محمد د خوښۍ او حیرت ترمنځ ژر ژر پوښتنې تکرارولې...هیڅ شرط او غوښتنه په کې نه شته؟ دا ولې؟ دا خو وړه خبره نه ده. ما به د مشر خبره ورته تکراروله چې ویل یې له هیچا نه هېڅ غوښتنه په کې نه شته.

اعلامیه مې ترتیب کړه. د فیکس او تلفون له لارې مې ګڼو اژانسونو ته ورکړه او له څو راډیوګانو سره مې په دې اړه مرکې هم وکړې.

پلازمینه کابل لا خبر نه و. د شپې ناوخته له کابله زنګونه راشروع شول. په سبا کابل نه هم دا خبره میډیا ته تکرارېدله، خو له بده مرغه څو ورځې وروسته لویدیزې میډیا د افغانستان د حکومت دا ستر اقدام ډېر ناوړه او غلط تعبیر کړ. مشرتابه خو د هغوی د تبلیغاتو پروا نه لرله، ځکه چې په بندولو کې يې هغوی په نظر کې نه ول نیولي، خو د امارت مطبوعاتي څانګه په دغو ناوړه تبلیغاتو سخته مایوسه شوه.

ځینو کړیو خو لا دا پروپاګند هم پیل کړ چې د طالبانو مشرتابه زیات تارياک رانیول او د بیې د لوړیدو لپاره یې بند کړل خو دا د هر هغه چا لپاره چې د طالبانو د مشر له شخصي ژوند او طبیعت سره بلد و د منلو وړه نه وه. د څو میاشتو په تېرېدو د تارياکو کښت په بې ساري توګه پرته له زور زياتي په مکمله توګه بند شو.

په هغو محدود سیمو کې چې د مسعود د ملېشو په واک کې وي، د دې کښت کرهڼه روانه وه، ځکه چې دغه لړې سیمې د حکومت په واک کې نه وي، چې د هېواد په سلو کې پنځمه برخه یې تشکیلوله. له همدې امله د هېواد نورو برخو نه هم د مافیاو غړي او قاچاقبر دغو سیمو ته ورمات شول.

په دې سیمو کې د مخدراتو په قاچاق کې د ډبلیو ایف پي په راپور کې د مخالفې ټلوالې غړي او قومندانان هم ککړ ښودل شوي وو. د ډبلیو ایف پي د هم هغه کال په راپور کې د برهان الدین رباني د مېرمنې يادونه هم شوې وه چې د مخدره موادو په قاچاق تورنه شوې وه.

له بده مرغه د امریکا له یرغل وروسته د نوې ادارې په راتلو سره دغه کښت بېرته پیل او له هغه څو چنده زيات شو چې تر اوسه ادامه لري.

په یوه فرمان د اعزازي القابو لغوه کول

د طالبانو په واکمنۍ کې ځینو خلکو هڅه وکړه چې له کابل پوهنتون او علومو اکاډومۍ نه علمي رتبې او القاب په ناقانونه ډول یا په اعزازي توګه ترلاسه کړي. دوی د کمونیستي دورې او د رباني د رژیم پرمهال په ناقانونه ډول د پوځي او علمي رتبو ترلاسه کول په دلیل کې راوړل، چې سلیمان لایق په کې اکاډمیسن او څو نور په کې پوهاندان شوي وو او بې شمېره په کې جنرالان شول. ملا محمد عمر چې د مدرسې يو طالب و، له دې مسایلو سره بلد نه و خو کله چې د پوهاند په ګډون یو لړ علمي رتبې په اعزازي ډول ترلاسه کېدې

او په یو ډول یې پر مشرتابه هم امضا کولې، آن چې د اولمپیک رییس عبدالشکور مطمئن چې د کابل د پغمان اوسېدونکی و او په څو لوبو کې یې مډالونه اخیستي وو، هڅه یې کوله چې د پوهاند لقب په اعزازي توګه ترلاسه کړي!

په همدې نیت یې کندهار ته سفر لاره. زما په دفتر کې د علومو اکاډمۍ رییس محمد حسین مستسعد ورسره لانجه وکړه. مستسعد ورته وویل: ته د لوبو اتل کېدای شي، خو پوهاند علمي رتبه ده، ستا دا هڅه د علمي ادارو سپکه او د نظام بدنامي ده!

همداراز د شریعت غږ راډیو عمومي رییس محمد اسحاق نظامي چې کومې خاصې زده کړې یې نه لرلې، تش نطاق و، او له نورو سره یې فقط د هنجرې تفاوت لاره! هغه هم په ډېره نادوده طریقه د پوهنتون پر ځای له بلې ادارې د پوهاند لقب د ترلاسه کولو هڅه وکړه او څه وخت یې په رادیویي خپرونو کې هم له خپل نامه سره د "پوهاند" کلمه کاروله.

کله چې ۲۰۰۰م کال کې د علمي ادارو له خوا ملا محمد عمر ته شکایت ورسېد. ملا محمد عمر د علمي ادارو له چارواکوسره له مفاهمې وروسته یواځې په یوه فرمان د خپلې دورې ټول ناقانونه او اعزازي القاب لغوه اعلان کړل!

په دې فرمان د ډېرو جعلي پوهاندانو له اوږو د پوهاندۍ دروند پوستین وغورځېد. دوکتوران او قضاوت پوهان هم له القابو عاري شول!

له هغه وروسته بیا چا تر اخیره د اعزازي لقب د ترلاسه کولو هڅه ونکړه.

د امربالمعروف د ادارې په اړه له ملا محمد عمرسره مباحثه

د طالبانو دغورځنګ بنسټیز شعار اوهدف د اسلامی شریعت تطبیق و، چې په دې لاره کې د نورو ادارو او قضایي ارګانونو ترڅنګ د امربالمعرف د ځانګړې اجرایوي ځواک د شتون اړتیا هم وه، خو د دې ادارې کارکوونکو او افرادوته د

یوې ځانګړې روزنې اړتیاوه. همدااراز په دې اداره کې د توظیف لپاره یوه ځانګړې معیار او محتاطانه انتخاب اړین و، چې له بده مرغه طالبانو دغه اساسي ارزښتونوته توجه ونکړه او د دې ادارې مشران باحکمته او دور اندیشه خلک نه ول او عامو افرادو یې په عامه توګه ځانکړې روزنه او عمیقه دیني پوه نه لرله، چې له امله یې ډېر افراطي اجرائات کول اوپه ځینې کارونوکې یې ډیر غیر ضروري شدت هم کاوه.

موږ ته د هغوي د کار ماهیت، طریقه او په ټولنه کې یې اثرات معلومیدل ځکه مو د دې ادارې د یوشمېر کارونو په اړه نیوکې لرلې چې دا نیوکې بالاخره د دې ادارې مسئولینو نشوای زغملای، چې له امله یې پر موږ ډول ډول تورونه لګول.

د ځینو کړنو په اړه یې ملا محمد عمر هم ناخوښه وو. یوه ورځ یې وویل: زموږ د نظام لپاره مهمه اداره امربالمعرف وه، خو زموږ دغه اداره تر ټوله ناقصه او بې خونده ده.

خو دا چې د دې ادارې د عملي اصلاح لپاره مشرتابه ولي موثر اقدامات ونکړل، دې به ښایي نور هم ډیر لاملونه لرل خو څه چې ماته معلومیدل هغه درې لاملونه وو: په دې اړه د علماوو مضر احتیاط او خاموشي؛ د ملا محمد عمر په نږدې او باوري حلقه کې د ځینو کسانو لخوا د دې ادارې د کړنو دفاع او دریېیم لامل یې د مخالفت کوونکو په اړه بدګماني وه.

په دغه اداره نیوکه ډیرو مشرانو په زړه کې ساتله، ماته هم یو ملګري وویل که کندهار کې د ملا محمد عمر ترڅنګ نه وایي نو د دې اداري مخالفت به درته دروند تمام شوی وای!

د کندهار په ولایتي شورا کې د امر بالمعروف پر چارواکو زما مخامخ نیوکو او ورسره لفظي مشاجرو، د امربالمعروف چارواکې غوسه کړي وو.

کله چې په دوه زرم کال کې د اولمپیک ریاست په بلنه د پاکستان له چمن ښارګوټي د کرکېټ یوه لوبډله کندهارته راغلې وه او په کندهار ښار کې یې له خپل سیال ټیم سره لوبه کوله، له لوبې وروسته د امربالمعرف وزیر لوبغالي ته ورغلی وو او د دغې میلمنې لوبډلې ځینې لوبغاړي یې د انګریزي سټایل وېښتو او ږیرې خریلو په تور تهدید کړي و. دا کار له یوې خوا لویه بدنامي وه له بلې خوا یو ډول اداري بې نزاکتي وه چې د یوې اداري له خوا دعوت شوي کسان د بلې ادارې لخوا توهین شول. ما په شورا کې دا موضوع په جدي ډول راپورته کړه څو تنو مې ملاتړ وکړ خو ځیني مهمو کسانو او د امر بالمعرف چارواکو د دې کار دفاع وکړه، بالاخره زما د طرفدارو نظر دا وو چې دغه شکایت او د امربالمعرف په اړه نور شکایتونه باید له مشرتابه سره مخامخ وڅېړل شي زه دې کارته تیار شوم.

د پوهني رئیس مولوي نیک محمد او د کندهار د جهادي مدرسې مدیر او د شمال د لومړیو کرښو جنګي قوماندان قاري فیض محمد هم راسره ملګري شول. د ماسپښین له لمانځه وروسته مو له مشر سره د ناستې وخت و. چې کله ورغلو ملا محمد عمرته لومړی خبرې مرحوم قاري فیض محمد پیل کړې. هغه وویل د دې ادارې د کارونو په اړه شکایات ډېر زیات دي، باید نور کنترول شي. قاري فیض محمد ملا محمد عمر ته ډېر نږدې و. خو دا وخت ملا محمد عمر پر هغه داسي ګمان وکړ چې ښایي دا خبرې به د ده خپله جزبه نه وي. نو په په طنزیه انداز یې هغه ته وویل چې ستاسره د هر څه غم وي، په هر څه کار لري. هغه یې په ضمني تردید خاموش کړ. مولوي نیک محمد چې لوړه دیني پوهه یې لرله او معتدل مزاج یې لاره په ډېره بې پروایي یې مشر ته وویل چې زموږ ولس د اِکراه په حالت کې دی، هر ډول زور پرې راوستل د حکمت خلاف کار دی؛ یواځې د خولې امر بالمعرف ورته کافي دي. ملا محمد عمر د هغه دغه مطلق مخالفت خوښ نه شو، په ځواب کې یې ورته وویل مولوي

صیب! دغه جګړو او وحشت بې لارې کړي خلک یواځې په خبرو دیني اوامر نه مني. چې رعب او دولتي مراقبت نه وي،امربالمعرف ناشونی دی. مولوي نیک محمد صیب څه نور دلایل هم وویل خو د ملا محمد عمر په وړاندي دیوال ته ډډه وهونکې محمد رسول نامې بار بار د مولوي نیک محمد په خبرو کې مداخله کوله، چې دې کار زه ډیر ځورولم. محمد رسول د ملا غازي ورور و. ملا غازي د ملا محمد عمر د پخوانیو ملګرو له ډلې و؛ دغه ډله خلکو ته به یې د ملا صیب اندېوالان ( ملګري) ویل. په دوي کې ځیني کسان متدین، باوقاره او په خبره پوه خلک وو، خو ځینو یې بیا د محمد رسول په څېر د ملا محمد عمر له نږدیکته ناوړه ګټه پورته کوله او په داسي کارونو کې یې مداخله کوله چې نه به وربا‌ندي پوهیده او نه به یې د مداخلې حق و. د مشر په ځاي کې همداسي یو شمېر وچ ذهنه او له ناپوهي سره سره په هرڅه کې کار لرونکې کسان وو؛ چې له امله به یې کله کله ستر کارونه خرابیدل.

له مولوي نیک محمد نه وروسته ما خبرې پیل کړې، خو په پیل کې مې داسې جملې وکارولې چې د محمد رسول د مداخلې په اړه ضمني احتجاج و. ما مشر ته وویل: موږ تا ته د دې لپاره راغلو چې بل ځاي مو د دې مشکل د حل تمه نه وه او تا ته مو یواځنی امید دی او ته به په دې اړه زموږ غږ اورې! مشر زما د خبرو په لومړیو جملو پوه شو او ملا رسول هم مداخله بنده کړه. زموږ ترمېنځ اوږد بحث او مناقشه وشوه، ما د دې ادارې د ځینې کارونو ناوړه تاثیرات او هغه پیښې تفصیلي ورته یادې کړې چې د هیواد په ځینو ښارونو کې د دې ادارې د ځینو کسانو له خوا رامېنځ ته شوې وي. د دې ادارې د اصلاحاتو په برخه کې زما عمده وړاندیزونه دا وو چې اول خو د ي د ادارې د کارونو او خلکو ته د دوي له لورې د ورکوونکو سزاګانو په اړه د علماوو یوه ستره غونډه د سترې محکمی د علماوو په ګډون تحقیقي ناسته وکړې او د شریعت له مخې دي څېړنه وکړي. دوهم باید د دې ادارې کارکوونکو ته جلا روزنه ورکړل شي.

دربیم هغوي دې دعوتي طرز ته هم توجه وکړي، سوټی او تهدید دي محدود کړي. په دې نظر کې له ما سره دواړه ملګري یوه خوله وو.

خو مشر د ناوړه پیښو په اړه د تحقیق وعده وکړه او د علماوو د ناستې وړاندیز یې ونه مانه، بلکې استدلال یې دا و چې د ادارې مشر عالم دي، هغه دي خپله د مشکوکو سزاګانو په اړه دیني پلټنه وکړي.

زموږ له اوږده بحث نه وروسته مشر یواځې څو واړه تغیرات ومنل، لکه د بهرنه راتلونکې افغانان به ترڅو میاشتو د امربالمعروف په مقرراتو مکلف نه وي او بل امربالمعروف به دعوتي ویناوي او تبلیغاتي لیکني او کتابونه هم خپروي.

د امربالمعروف مشر مولوي عبدالولي له دیني پوهي سره بې تجربې، وچ ذهنه او جدي مزاجه ځوان و. تر شا یې د عدلیې وزیر ملانورالدین ترابي و، چې کمه دیني پوه یې لرله او تر ډیره به یې خپل مزاج چلاوه. په کابل ښار کې د امربالمعروف اجرایوي مشري تر ډیره د دې ادارې مرستیال وزیر ملا قلم الدین کوله. مولوي قلم الدین د لوګر اوسیدونکی و او د جهاد پر مهال د مولوي محمد نبي د امنیتي ګارډ مسئول و، هغه ډیرې کمې د یني زدکړې لرلې، په کابل ښار کې د دې ادارې د ناوړه او بې خونده چلند اصلي سمبول همدغه سړی و، چې ویل کیږي پر کابل د طالبانو له واکمني یوڅه وخت وروسته قلم الدین د کابل ښارته د یو قرضدارنه د خپل قرض د اخیستلو په موخه راغلي و او شپې یې د امربالمعروف په اداره کې تیرولي. هغه ستر وجود او ځواکمنې متې لرلې. څو ځله چې هغه د امربالمعروف له موظفینو سره ښار ته وتلي و، نو د قوي وجود له امله په تازیانه وهلو، ټیل وهلو او ډبولو کې یې د ملګرو خوښ شوی و، چې وروسته د وزیر هم شوق پرې راغی او خپل مرستیال یې وټاکه.

## ایران سره د اړیکو نرمېدل

دله ایران سره د طالبانو د واکمن نظام اړیکې د ۱۹۹۸ پای کې تر دښمنۍ رسېدلې وې او کله چې د دغه کال په اګست کې د مزار له فتحې وروسته یوولس ایرانیان ووژل شول، خبره پر سرحدونو د قواوو تر ځای پر ځای کولو ورسېده. د مزار او بامیانو په نیولو کې طالبانو د ایران بې شمېره وسلې او مهمات ونیول چې له حزب وحدت او ټلوالې سره یې مرسته کړې وه. د مرمیو پر صندوقونو په ښکاره د ایران رسمي پوځي شعارونه لیکلي وو.

د بامیانو له نیولو وروسته له اسلامي امارت سره د اکبري او یو شمېر نورو مخورو هزاره مشرانو یو ځای کېدلو، هغوی ته په بامیانو او نورو سیمو کې دندې ورکولو، همداراز له هغوی سره د روابطو سمون ایران هم یو څه له مذهبي پلوه ډاډه کړ او په سیاسي ډګر کې د امریکا او طالبانو ترمینځ څرګندې د ښمنۍ د ایرانیانو له ذهنه هغه شک وویست چې طالبان یې د امریکا په ملاتړ ایران ته ګواښ ګڼل او ورسره هغوی په دې هم نور پوه شول چې په مزار کې د دوي د اتباعو وژل د طالب مشرتابه قصدي پلان او عمل نه و.

له ایران سره د اړیکو نرمښت له دې پیل شو چې د امنیت شورا د بندیزونو پر مهال ایران خپلې پولې پرانیستې، چې د خوراکي موادو او ضروري اجناسو د واردېدو حیاتي دروازه وه.

کله چې مولوي وکیل احمد متوکل خارجه وزیر شو، هغه دغو اړیکو ته فوق العاده پام واړاوه خو بیا یې هم د طالبانو مینځ کې مخالفین لرل. د هلمند د اوبو پر سر د خبرو لپاره د هغوی هیئتونه راغلل او بیا د طالبانو هیئتونو هم ایران ته متعدد سفرونه وکړل. په دې کې د دیپلوماتیکو سفرونو ترڅنګ استخبارتي تفاهمات هم شامل وو.

د اړیکو د نسبتي نرمښت دغه دور د طالبانو د حکومت تر نړېدو پورې پاتې شو. له هغه وروسته هم طالبان په دې فکر شول چې د امریکا او ټولې لویدیزې نړۍ له مخالفت سره د ایران په څېر مهم ګاونډي دښمن پرېښودل، پر ځان نوره هم حلقه تنګول دي او د جنګي وسیاسي مصلحت خلاف کار دی. له ایران سره د اړیکو دغه ورستي دور د دې لامل شو چې د طالبانو او ایران ترمینځ درنې بدبینۍ او بدګمانۍ یې تر ډېره حده کمې کړې.

روسیه او امریکا د ټلوالې ترشا، طالبان اونړۍوال جهادیان بل پلو

د نړۍوالو بندیزونو لګېدو سره د طالبانو هغه یون چې د یوې قانوني او ملي واکمنۍ خوا ته یې ګامونه اوچتول، معکوسه بڼه خپله کړه او مشرتابه په نړۍواله کچه د یوه منلي افغانستان له هیلې نهیلی شو. دا یې کلکه په ذهن کې کېناسته چې ښايي امریکا او ملګري یې د طالبانو په مشرۍ واکمني په هیڅ ډول ارام او دوام ته پرېنږدي. بل پلو په دوه زرم کال کې د مسعود او ټلوالې ترشا د روس، ایران او فرانسې ترڅنګ سي آی اې هم ودرېده. له ټلوالې سره د روس او امریکا ګډې همکارۍ طالبان د امریکا د ښمنۍ ته نور هم ودرول.

پاکستان هم پر شا کېدو او سعودي خو د امریکا تر څنګ ولاړ و. د سعودي د استخباراتو وزیر ترکی الفیصل په یوه ناسته کې د طالبانو د واکمني په اړه قسم کړی و چې په نړولو کې به یې هر ډول کوشش کوم ځکه چې زه ملا محمد عمر سخت بې آبه کړی یم.

له دې وروسته طالبانو په ۲۰۰۰ کې له نړۍ سره د القاعدې او اسامه په اړه د کنترول ژمنو ته شا واړوله، پر القاعده یې قیودات کم کړل او د هغوی د کنترول پالیسي تقریبا له مینځه لاړه چې له امله یې افغانستان ته زیات شمېر له القاعدې سره تړلي کسان راغلل او د القاعده په دعوت د عربو هېوادونو د

رضاکارانو جوپې له کورنيو سره راروانې وې. ټريننګ کيمپونه هم خلاص شول. د دوه زرم کال پای کې په کندهار ښار کې ډېر داسې چای خانې پرانيستل شوې چې عربي ترانې به په کې غږېدې او د عربو د خوښې خواړه او مشروبات به په کې پلورل کېدل.

مشرتابه د نړۍوالو فشارونو په اړه د نورمال حالت رامينځ ته کېدو تمه نوره نه لرله، نو ځکه يې نړۍوالو جهاديانو ته پوره غېږه پرانيستله. د عربانو ترڅنګ ازبکانو ته هم غېږ خلاصه شوه. د جمعه نمنګاني هرکلی وشو، خو د ايغوريانو په اړه طالبان محتاط وو. يواځې د اوسېدو حق يې ورکاوه. هغوی ټول سل کسه هم نه وو خو بيا هم چين انديښنه لرله. ډېرو چارواکو ايغوريان له سره نه پېژندل بلکې د ازبکانو په ډله کې يې حسابول. ځکه هغوی جلا ډله، مرکز يا ګروپ نه درلود.

د چيچنيا په رسميت پېژندل هم د نوې پاليسۍ برخه وه. د ۲۰۰۱ په پيل کې چې د متوکل د ورستيو هڅو په لړ کې د خارجه وزارت له خوا رحمت الله هاشمي امريکا ته سفر وکړ، کله چې بېرته راغی ملا محمد عمر ته يې د امريکايانو دا پيغام راوړ چې اسامه کنترول کړئ.

مشر په ډېره غوسه وويل: "امريکايان په خپله زموږ په خلاف په سياسي او نظامي محاذ جوړولو بوخت دي، پر موږ يې د ځمکې او هوا لارې تړلې دي ، زموږ له مينځه وړلو ته تياري نيسي خو په مقابل کې بيا له موږه غوښتنې هم کوي. د کوم مثبت اقدام په مقابل کې موږ له دوی سره همکاري وکړو؟

په دوه زر يو کال کې چې له يوې خوا مسعود اروپا ته سفر وکړ، له بلې خوا له مخالفې ټلوالې سره د سي آی اې مرستې بربنډې شوې، بل پلو ته په دوبۍ او پاکستان کې د سي آی اې له خوا د طالبانو پر ضد قوماندان تنظېمدل او

غونډې روانې وي. په کوټه کې حامد کرزی بوخت و. په پېښور کې د عبدالحق په مشرۍ د مرکز او مشرقي قوماندانان تنظيمېدل، په دې هرڅه طالبان خبرېدل.

دا وخت طالبانو د امریکا یو خفيه يرغل په سترګو لیده، چې وسلې، ټیکنالوژي او پیسې به د امریکا وي، جنګ به د طالبانو مخالف قوماندانان کوي. عربانو او القاعده دا وخت احمدشا مسعود ته د ممکنه امریکايي يرغل د تر ټولو ستر عسکر په سترګه کتل ځکه يې د هغه د ترور فکر په دماغ کې درلود چې د طالبانو په ناخبرۍ کې يې پلی کړ.

چیچنیا د یوه مستقل هېواد په توګه په رسميت پېژندل

د طالبانو له خوا د کابل له فتحې وروسته د چیچنیا يو هيئت افغانستان ته سفر وکړ. د چیچنیا د خارجه وزارت د مرستیال "عبدالله يف ياراګي محمد ويچ" په مشرۍ دغه هيئت له طالبانو سره لیده کاته وکړل خو مشرتابه د حالاتو د نزاکت او نړۍوالو نیوکو له وېرې هغوی ته تنها د پټې همکارۍ اطمنان ورکړ، خو د رسميت پېژندنې موضوع يې شاته غورځولې وه.

کله چې د ۱۹۹۹کال اخير کې نړۍوالو بنديزونو او انزوا طالبان مايوسه کړي ول او نور يې له امریکا او سترو طاقتونو سره د تفاهم او نورمالو مناسباتو اميدونه نه لرل، نو په همدې وخت کې پر چیچنیا د روسانو درنه حمله روانه وه. ملا محمد عمر د رسنيو له خوا د نړۍ له مسلمانانو له چیچنیا سره د همکارۍ غوښتنه وکړه. حتی په داخل کې يې پرخپلو مخالفينو غږ وکړ چې راځئ د خپل مينځي رقابت سره سره د چیچنیا د مسلمانانو مرسته وکړو.

د دوه زرم کال په پیل کې د چیچنیا پخواني جمهور رئيس "زليم خان يندربي" او خارجه وزير "ادوګف" کابل او کندهار ته سفر وکړ. مشرتابه د هغوی تود هرکلی وکړ او د نورو همکاریو د ډاډ تر څنګ يې د چیچنيايي ولس د روحيې د

لوړولو لپاره د چیچن خپلواک دولت په رسمیت وپېژاند. د چیچنیا هیئت د روسیې د پخواني جمهور رئیس او صدر اعظم په امضاء هغه اسناد مشرتابه ته پخوا لا ښودلي وو چې د چیچنیا خپلواکي د روسیې له خوا په کې منل شوې وه.

د ۲۰۰۰ م کال د جنورۍ پرشپږویشتمه د افغانستان د خارجه وزیر مولوي وکیل احمد متوکل او د چیچن د جمهور رئیس د نماینده زلیم خان یندربي تر مینځ د رسمیت سند امضاء شو چې په روسي، دري او پښتو لیکل شوی و. دوه ورځې وروسته دا خبر رسنیو کې هم خپور شو. له دې تقریبا دوه اونۍ وروسته د کندهارښار په کمپاونډ سیمه کې د خارجه وزارت مېلمستون سره خوا کې د چیچنیا د سفارت لپاره ودانۍ مشخصه شوه او د چیچنیا د خپلواک هېواد بیرغ وباندې ودرول شو، خو له هغه ورسته په چیچنیا کې د جګړې له تقویت سره د چیچنیا استازي په راتلو ونه توانېدل.

د بوتانو ماتول او کندهارته د عرب پوهانو سفر

د بوتانو موضوع لومړی په ۱۹۹۷ کې ځینې خلکو په لوی لاس وخوځوله. د غوربند او شیبر تنګي سیمو کې د طالبانو پوځي قوماندان ملا عبدالواحد په خپل سر د همدې کال د اپریل په اوولسمه میډیا ته وویل چې که بامیان ونیسي بودا به ونړوي.

له دې سره د کابل راډیو دا ترانه خپرول پیل کړل:

دښمن د پاکې خاورې د افغان به ماتوم

ملت د ابراهیم یمه بوتان به ماتوم

همدا خبره د ځينې ملايانو او مشرانو خولې او ذهن ته ولوېده. کله چې د ځينې فرهنګي کسانو له خوا د باميانو له نيولو وروسته دا موضوع نوره هم وښورېده، د ۲۰۰۱ په لومړيو کې خبره د سترې محکمې دارالافتاء ته لاړه. له هغه ځايه کندهار ته ملا محمد عمر ته خبره وړاندې شوه.

ملامحمد عمر د علماوو نظر واخيست. علماوو د ماتولو حکم ورکړ چې له امله يې ملا محمد عمر د ماتولو فرمان صادر کړ. له دې سره له هر لور چيغې او سورې پيل شوې. پر افغانستان د امريکا بنديزونه لګېدلي وو او هسې هم نړۍوال فشارونه زيات وو. دې موضوع ته نړۍوالې ميډيا او سياسي حلقو د يوې حربې حثيت ورکړ.

پاکستان خپل داخله وزير معين حيدر کندهار ته را واستاوه چې طالبانو ته د خپل حکومت انديښنه په ډاګه کړي. غالبا د لويديزو فرهنګي حلقو په وړانديز پاکستان هڅه کوله چې د افغانستان حکومت له دغه اقدامه را وګرځوي. هغه له مشر سره وکتل او د خپل حکومت له خوا د بوتانو د نه ماتولو مشوره يې وړاندې کړه او په دې اړه يې د نړۍوالو فشارونو او ناوړه اغېزو په اړه اوږدې خو محتاطې خبرې وکړې.

مشر ورته په لنډو الفاظو ورغبرګه کړه چې زموږ قانون اسلامي شريعت دی. شريعت يې د ماتولو حکم کوي، موږ د خپل داخلي قانون په تطبيق مکلف يو. د اخله وزير وويل دلته د غزنوي او ابدالي غوندي نور مسلمان حاکمان هم تيرشوي، خو دا بتان يې ندي نړولي. ملاصيب وويل که يې پريږدو ښايي د اِذا زلزلت الارض زلزالها( قراني ايت ته اشاره وه) تر وخته پاتې شي، چې په اخيرت کې به يې رانه پوښتنه وشي! د اخله وزير د مشر دا خبره بيا ډيره غلطه تعبير کړې وه، لومړي موږ فکر کاوه چې ښايي هغه ناسم پوه شوی وي ، خو وروسته داسي شواهد نورهم پيداشول چې د غه پاکستاني وزير له قصده د مشر ځينې خبرې خپلو مشرانو او بهرنيانو ته غلطې تعبيرولې، معين حيدر

شیعه مذهبه و او په فکري لحاظ هم له طالبانو سره جوړ نه و، خو د پاکستان د رسمي پالیسي له مخې هغه دا ډول سفرونو ته رسما اړ کیده.

څو ورځې وروسته  بامیانو ته د مجسمې د نړولو لپاره بارود واستول شول. د مجسمو نړول پیل شول، نیم کار لا پاتې و چې د عربي نړۍ د پېژندل شویو پوهانو یو وفد د یونیسکو په غوښتنه او د قطر حکومت په مینځګړتوب کندهار ته سفر وکړ. په وفد کې د قطر د خارجه وزیر شیخ احمد عبدالله زید ال محمود په مشرۍ نړۍوال دیني شخصیت یوسف قرضاوي، د مصر ستر مفتي فرید واصل، د قطر د استیناف محکمې رئیس شیخ عبدالقادر العماري، د مصر نه دوه نور عرب علماء، د روغتیا د نړۍوال سازمان د چاپېریال ساتنې د برخې سلاکار محمد هیشم الخیاط، په مصر کې د اسلامي څېړنو د مرکز غړی شیخ محمد الراوي او عرب لیکوال فهمي هویدي وو. ورسره د قطر د خارجه وزارت ځینې نور غړي هم ملګري وو.

د امنیت شوری له خوا هغوی ته د پرواز لپاره اته څلوېښت ساعته وخت ورکول شوی وو چې باید په ټاکلې موده کې کندهار ته خپل سفر بشپړه کړي او بېرته راووځي. د ۲۰۰۱ یوولسم مارچ د یکشنبې پر سهار د قطر ایرلاین په یوه الوتکه کې هغوی کندهار ته راغلل. د هوا د خرابۍ له امله د کندهار پر اسمان له اوږدې دورې خوړلو وروسته الوتکه له ټاکلي وخت نه ډېر وروسته پر هوایي ډګر کېناسته.

دا وخت د نړۍوالو بندیزونو له امله د باندنیو پروازونو کاونټر تړل شوی و. د پاسپورټ چیک، دخول او خروج د مهر لګولو عمله رخصت وه. د دغه فوق العاده پرواز مېلمنو سره فوق العاده چلند وشو. لکه کوم داخلي پوځي پرواز. تنها پوځي مسولین ورته انتظار وو او د خارجه چارو مرستیال وزیر له څو تورو بینز موټرو سره د هوایي ډګر مېلمستون کې ناست ول.

میلمانه رابښکته شول. د خراب موسم له امله څېڅپاند پرواز هغوی وېرولي ول. له لنډې ناشتې ورسته مېلمانه د خارجه وزارت مېلمستون ته یوړل شول. دا مېلمستون د ښار او هوايي ډګر ترمینځ "کمپاونډ" سیمه کې و. شاوخوا یې شاړه وه، خو دغه ودانۍ مجهزه وه، ځانګړی امنیت یې و او د مېلمنو لپاره یې ټولې اړینې اسانتیاوې لرلې.

په دې مېلمستون کې زه او عبدالمتین ابراهیم خېل د دغو مېلمنو کوربانه وو. دوی سره مو د شپې تر ناوخته مجلس وکړ. عبدالمتین ابراهیم خېل په عربي ژبه ډېر حاکم و. د مطالعي او سلیقې څښتن و. له مېلمنو سره د ده په واسطه مجلس ډېر تود روان و. قرضاوي او د هغه ملګرو د طالبانو د نظام او د افغانستان د روانو حالاتو په اړه اوږد بحث وکړ.

له موږه یې جزوي پوښتنې وکړې خو د څه لپاره چې دوي راغلي او یا را استول شوي ول، نو په هغه برخه کې پرمختګ نور ناشونی و، ځکه چې د بودا د مجسمو کار د دوی د راتګ په ورځ نور پای ته رسېدونکی و.

طالبانو دوی ته هرکلی ووایه او د نړۍ د پوهانو په دود یې درانه مېلمانه وبلل ځکه چې دې کې د نړۍ په کچه علماء وو. دوی فکر کاوه چې طالبانو به لا د بتانو پرېکړه عملي کړې نه وي ځکه یې غوښتل چې د سترې محکمې علماوو سره ووینې.

د دوی راتګ سره سم د سترې محکمې مشر ته وویل شول چې مېلمانه تاسې سره لیدل غواړي خو وخت یې خورا کم دی او کابل ته سفر نه شي کولای، تاسو کندهار ته راشئ. د سترې محکمې مشر قاضي القضات مولوي نورمحمد ثاقب د سترې محکمې مهمو دېوانونو د مشرانو په ملتیا د موټرو په یوه کاروان کې ماسپښین ناوخته له کابله د کندهار لور ته وخوځېد، خو د ناسمي لارې له

امله یې شپه پر لار وه. سهار یې بیا مزل پیل کړ او ماسپښین کندهار ته راورسېدل چې دا وخت څو ساعتونه د مېلمنو د الوتکې ستنېدو ته پاتې وو.

که څه هم د هغوی پرواز ته لا قانوني وخت ډېر پاتې و خوهغوی غوښتل چې باید تر تیاره کېدو وړاندې پراز وکړي. مېلمانه مو د ولایت مېلمستون ته ورسول. مجلس دایر شو، د مېلمنو په استازیتوب یوسف قرضاوي او د کوربنو په استازیتوب د سترې محکمې رئیس مولوي نور محمد ثاقب خبرې وکړي چې خوا ته یې ستر مفتي عبدالعلي دېوبندي صیب هم ناست و.

د ثاقب صیب له خوا مېلمنو ته هرکلی وویل شو. ورپسې یوسف قرضاوي د خپل سفر په اړه لنډ وضاحت وکړ چې موږ د بتانو په اړه ستاسې مناظرې ته نه یو راغلي. زموږ هدف تاسو ته نېکه مشوره ده او تاسي سره خواخوږي لرو چې د ټولې دنیا له دښمنۍ او فشارونو سره سره باید نوې لانجې ځان ته ونه ګورئ.

ثاقب صیب ورته وویل موږ د شرعي محکمې خلک یو. که تاسو د بتانو د نه ماتولو شرعي دلیل راته وواياست چې ایا ماتول شرعي حکم دی که پرېښودل یې؟ قرضاوي وویل زه هم ستاسې په څېر حنفي مسلکی یم او دا هم منم چې اصل حکم ماتول دي، خو خبره دا ده چې دا وخت او شرایط تاسو ته ځینې شرعي استثناءات درکوي. تاسو نور اولیتونه او مصالح لومړي کړئ. د قرضاوي دې خبرې سره ستر مفتي عبدالعلي دېوبندي صیب په دې پوه شو چې د ماتولو د حکم په سر کومه مباحثه او مناظره نه شته، نو ځکه له مجلسه غلی ولاړ شو او له تالاره ووت.

بحث دوام وکړ. د قرضاوي خبرې هم په علمي دلايلو ولاړې وې او په دې اړه یې جزیات هم وړاندې کړل، خو ثاقب صیب وویل موږ د دې کار لپاره صبر

کړی. اوس داسې حالات راغلي؛ که موږ دا کار وکړو او که نه، نړۍ ته بې تفاوته ده او هر څه زموږ پر ضد روان دي. په پرېښودلو کې هم کومه نړۍواله ګټه نه وینو. ښه دا وه چې شرعي احکام پلي شوي وای. موږ د محاکمو خلک یو، زموږ سیاسي مسایل د خارجه وزارت او نورو چارواکو کار دی. که د شرعي حکم خبره وي په دې اړه دلایل واضح او ثابت دي. په دې اړه ثاقب صیب ورته ځینې حوالې هم ورکړې او د ابن القیم الجوزي یو قول یې هم ورته تشریح کړ.

ماسپښین قضا مجلس پای ته ورسېد او د الوتکې پرواز ته یوازې دومره وخت پاتې و چې دوی ځانونه هوایي ډګر ته ورسوي. له همدې امله هغوی د امیرالمومنین ملاقات هم ونه کړای شو. شیخ اسامه ته هم له دوی سره د لنډ ملاقات اجازه ورکول شوې وه خو هغه هوایې ډګر ته پر لار و چې الوتکه والوتله.

د بوتانو په اړه هم مشر، هم علماء او هم عام چارواکي په دې پوهېدل چې دغه بوتانو ته هیڅوک عبادت نه کوي او نه هم دې دور کې اسلامي هېوادونو کې د بت عبادت دومره دود او معمول دی چې اسلام ته ترې نېغ عقیدوي خطر متوجه شي، بلکې په دې اړه په دیني کړیو کې یو بل تاثر او تعبیر موجود و.

هغه دا چې دغه سیمه (مرکزي افغانستان) تر اسلام وړاندې بودایي مذهبه وه او ډېر فرهنګي مزاجه خلک د خپل کفر او جهالت د وخت په شعایرو فخر کوي او هر هغه څه چې د توحید له رڼا مخکې یې زموږ په ټولنه کې تعظیم کېده، د اسلام له راتګ ورسته د دې شیانو تعظیم یا ورسره مینه که هغه د تاریخي اثارو په نوم وي او که د خپلې ماضي د یادګار په توګه وي دا په خپله په اسلامي شریعت کې ممنوع عمل دی.

که دا ډول افتخار یا یادګار روا وای نو د اسلام پیغمبر به مکه کې کوم بت په همدې نیت پریښی وای. د مکې په اطرافو کې که یو نیم بت پاتې شوی هم و، نو هغه هم د نه ارزښت او نه توجه له امله پاتې و. نه د یادګار او فرهنګي

میراث په توګه. په ځینو اسلامي هېوادونو کې داسې فرهنګیان شته چې خپل جاهلي دور ته تر اسلامي دور ډېر په تعظیم قایل دي. لکه په مصر کې چې یو شمېر فرهنګپال فرعون ته په تعظیم قایل دي او داسې لاهم په کې شته چې په تقدس ورته قایل دي یا په ایران کې چې ځیني خلک زردشت ته په تقدس او تعظیم قایل دي، حتی افغانانو کې هم د زردشت مینه‌وال کم نه دي. طالبانو د نوروز لمانځل هم ځکه بند کړل چې دا د زردشتیانو اختر و او په اسلام کې یواځې دوه اختره دي.

## له اسامه بن لادن سره لومړۍ او وروستۍ لیدنه

ملګرو به مې راته د اسامه بن لادن د ملاقات ډېر ویل خو نه پوهېږم ولې مې ډېره تلوسه نه لرله. له دې سره چې زه د هغه د دریځ او داعیې مخالف نه وم خو په ټول ژوند کې مې یو ځل تصافي ولید او روغبړ مې ورسره وکړ.

زما دیدن هغه وخت ورسره وشو چې کله د ۲۰۰۱ د اپریل په پینځلسمه رئیس الوزراء ملا محمد رباني وفات شوی و او د ملا محمد عمر په کور کې یې د چاروکو او میلمنو لپاره د فاتحې مراسم روان ول. ملا محمد عمر ته خلک د تعزیت په موخه راتلل. ماسپښین و چې ماځو تنه مېلمانه د مشر کور ته بوتلل. دا وخت زه د مشر د کور په انګړ کې ولاړ وم چې دوه ډاټسنې راغلې د یو ځو عربو ځوانانو مینځ کې یو نری دنګ سړی راکوز شو. پراوړو یې نرمه پاکه زېړه چینه پرته وه چې د وجود ډېره برخه یې پرې پوښلې وه. اوږد افغاني لباس یې پر تن و. پر سر یې خال خال سور عربي دسمال و. د مخ پوست یې زېړ غنم رنګ و. په څیره کې یې وقار او جذابیت و. په تګ او خبرو کې یې د ستومانۍ اثار ښکارېدل. ترځنګ روانو ملګرو کې یې لنډ قد والا ابوحفص صغیر (ما په همدې نامه پېژاند) زه ور وپېژندلم.

شیخ موسکی شو ما ته یې غېږه راکړه. زه هم دوی سره د مشر لور ته د کوربه په توګه روان شوم. هلته ملا محمد عمر په یوه جلا خونه کې له مولوي محمدنبي محمدي سره ناست و، محمدي هم فاتحې ته راغلی و. د ملا محمد عمر ترخوا ملاعبیدالله هم ناست و، زه خونې ته له شیخ اسامه او د هغه ځوان زوی او څو ملګرو سره یو ځای ورغلم.

ملاصیب له اسامه او ملګرو سره په غېږه روغبړ وکړ. ملاصیب نه غوښتل چې د شیخ له ډلې او محمدي نه پرته دې نور مېلمانه خونې ته راشي، ځکه یې وویل دروازه بنده کړئ، چې نور څوک رانه شي. زه ولاړ شوم دروازه مې بنده کړه. مېلمنو لومړی ملاصیب ته دعا او تعزیت وکړ. ورپسې ملاصیب محمدي ته وویل دا تر خوا ناست مې ملاعبیدالله اخوند د دفاع وزیر او زموږ مشر ملګری دی.

له دې خبرو ما داسې وفهموله چې ښایي ملاعبیدالله د ملا رباني ځای ناستی وټاکي خو ورسته زما ګومان ناسم و، بلکې د ملا رباني دفتري چارې تر ډېره وخته د هغه مرستیال مولوي عبدالکبیر پر مخ وړلې. وروسته بیا ملاحسن او مولوي کبیر د دوو مرستیالانو په توګه په ګډو د هغه چارې پر مخ وړلې.

ورپسې یې د شیخ پلو ته وکتل او ورو یې وویل: دوی خو به هم پېژنئ؟. محمدي په ځواب کې د شیخ لور ته په خواږه نظر وکتل او په پښتو مکالمه کې یې د خادم الاسلام والمسلمین او مجاهد کبیر عربي توري وکارول، ترڅو شیخ په خپله همدردۍ پوی کړي. شیخ په ځواب کې په موسکۍ شونډو جزاک الله ورته وویل.

په دې سره زما ذهن درې کاله وړاندې د محمدي صیب هغه لیک ته لاړ چې د اسامه د سپارلو په اړه یې د خپل سلاکار محمد سعید هاشمي په لاس ملا

محمد عمر ته را استولی و. دا لیک مې هغه وخت ناڅاپي لیدلی و، کله چې هاشمي د کندهار مېلمستون کې مېلمه و، زه یې لیدلو ته خونې ته ورغلم. هغه دا وخت تشناب ته تللی و پر توشکه یې درې لیکلې پاڼې پرتې وې. پر لومړۍ پاڼه ملا محمد عمر ته د محمدي له خوا لیکل شوي وو: چې د سعودي حکومت خالق او مخلوق دواړو ته محبوب دی. هر څوک چې په افغانستان کې وي او د سعودي حکومت مخالف فعالیت کوي باید مجازات شي او سعودي حکومت ته وسپارل شي. په دوهمه پاڼه کې د همدې لیک عربي ژباړه وه او په درېیمه پاڼه کې په عربۍ ژبه د سعودي پاچا ته وړاندیز شوی و چې موږ (د محمدي کورنۍ) اقتصادي ستونزي لرو، مالي مرسته راسره وکړئ. درې واړه پاڼې په یو سنجاک سره تړلې وې. داسې معلومېده چې د لیک اصلي کاپي یې د مشرتابه دفتر ته سپارلې وه او دغه کاپیانې یې له ځانه سره بېرته وړلې او سعودي مقاماتو ته یې لېږلې.

تر دې وړاندې چې هاشمي له تشنابه را ووځي، زه له خونې ووتم هغه زما له راتګه او لیک لوستلو خبر نه شو. څو ورځې وروسته مې دا کیسه خپل یوه ملګري محمد حسین مستسعد ته وکړه. هغه زه په دې پړ وګڼلم چې ولې دې دغه کاپیاني ځان سره نه را اخیستلې، خو زما دریځ دا و چې که د پاڼو په محرمیت پوه وای، نو له سره به مې کتلې نه وای، را اخیستل خو لیرې خبره ده.

د طالبانو پر ضد د جوړېدونکې افغاني ایتلاف هلې ځلې

د ۲۰۰۱ م کال له پیله په دوبۍ، پاکستان، تاجکستان او لویدیزو هېوادونو کې د سي آی اې له لوري زاړه قوماندانان، له طالبانو سره جنګېدونکي مخالفین او یو شمېر بهر مېشته افغانان سره جرګه کېدل او د طالبانو پر ضد د یوې داخلي ځواکمنې جنګي جبهې د جوړولو لپاره تېز کار روان و، چې د بري په صورت کې

له  داخل نه د یوه ملي قیام نوم ورکول شي او د امریکا مداخله په ظاهره تثبیت نه شي.

جولای او اګست میاشتو کې په دوبۍ کې د قوماندان عبدالحق له خوا د مشرقي او مرکزي سیمو ځینې قوماندانان او سیمه‌ییز مخور راټول کړای شول او د دې ایتلاف لپاره د پیسو او اینده نظام کې د څوکیو د ورکړې په وعدو تشویق کړای شول. عبدالحق قوماندانانو ته وویل امریکا د طالبانو د حکومت د چپه کولو کلکه اراده کړې نو موږ باید له دې فرصت نه استفاده وکړو.

عبدالحق د دغو قوماندانانو لپاره ټولې سفري اسانتیاوې برابرولې او هم به یې تر همکارۍ مخکې یو مناسب مبلغ پیسې په سوغات کې ورکولې. د کابل یو دوه قوماندانان چې له اصلي موضوع خبر نه ول، د عبدالحق له دې کار سره موافقه نه وه کړې او هم یې له سوغاتونو اخیستلو انکار کړی و، کله چې بېرته راوګرځېدل په پېښور کې یې د افغانسان کونسلګرۍ ته ټول جریان ووایه.

همداراز په کوټه کې حامد کرزي او ګل اغا شیرزي د کندهار، هلمند او روزګان له قوماندانانو سره غونډې کولې او پیسې یې تقسیمولې چې راپورونه یې طالبانو ته رسیدل. د عبدالحق بل ورور حاجي عبدالقدیر له مسعود سره په پوځي برخه کې بوخت و او دریېم ورور حاجي دین محمد یې له ملایانو او زړو جهادي دفتري خلکو سره په همدې تیاري بوخت و.

احمدشا مسعود، دوستم او اسماعیل خان د روسیې، ایران او شمالي ګاونډي هېوادونو د کلک سیاسي او پوځي ملاتړ ترڅنګ له یوه کاله راهیسې د سي آی اي د تازه یارانې او سترو پوځي او مالي مرستو په تمه خپله بریا په سترګو لیدله. خارجه وزیر متوکل چې له امریکایي بندیزونو وروسته مشرتابه له لویدیځ سره د تاوتریخوالي د کمېدو لپاره په دغه دنده ګمارلی و، وروستۍ

هڅې یې کولې او په دې اړه یې وروستی هیئت هم امریکا ته واستاوه چې منفي له پایلې سره بېرته راستون شو.

طالبانو د دغه داخلي امریکایي ایتلاف پر وړاندې د موثرې دفاع تیاري کوله. عربان او خارجي مجاهدین هم د دې لپاره ښه همکاران وو او دا وخت یې د همکارۍ شدید ضرورت احساسېده.

د القاعده ځینو مهم غړو هم د امریکا دغه ایتلاف درک کړی و، ځینو یې په خپل مینځي مجالسو کې داهم ویلي وو چې د امریکا له لوري تر برید وړاندې کاشکې خپل وار لومړی کړو!

د احمدشاه مسعود ترور

د ۲۰۰۱ جولای پیل کې درې تنه عربان د ژورنالستانو په جامه کې کندهارته راغلل. ځانونه یې تونسي الاصله بلجیمیان معرفي کول. هغوی له متوکل سره د مرکې غوښتنه کوله. دوی د عربانو په یوه مېلمستون "دارالسلام" کې اوسېدل. کله چې هغوی متوکل ته وړل کېدل نو پر لار د کندهار ښار "مدت" چوک سره د امربالمعروف ریاست و. دلته د هغوی موټر ودرول شو او چې کله یې د هغوی خرېلې ږیرې او پتلونونه ولیدل نو راکوز یې کړل.

هغوي ځانونه عربان معرفي کړل، خو امربالمعروف خرېیلي عربان کله هم کندهار کې نه وو لیدلي. د موټر په ډیگۍ کې تلویزوني کیمره هم د امربالمعروف لپاره داعتراض وړ توکی و، خو د ژورنالستانو په نامه چې متوکل ته د مرکې لپاره روان وو، ستونزه یو څه کمه شوه.

دا ډول فوق العاده مېلمنو ته به همېشه د خارجه وزارت له خوا مکتوب ور کول کېده چې امنیتي څارونکي او د امر بالمعروف موظفین یې تنگ نه کړي، خو له

دوی سره هیڅ داسې سند نه و. بالاخره په دې چې د متوکل مېلمانه دي خوشې کړای شول.

هغوی دوو متوکل ته ځانونه په دې ډول معرفي کړل چې زه عابد او ملګری مې کریم نومیږي. تونسي الاصله د بلجیم اوسېدونکي یو او موږ په بلجیم کې د المرصد الاسلامي للاعلام له خبري رسنۍ سره کار کوو. د دوی درېیم ملګری مصری ابو هانئ و چې اصلي نوم یې مهند شبانه و او د شوروي پر ضد د جهاد کلونو کې د عبد رب الرسول سیاف د البنیان المرصوص د مجلي مسئول چلونکی و. له پخوانیو مجاهدینو خصوصا سیاف سره نږدې بلد و.

له دې وروسته هغوی کابل ته لاړل او هلته یې د خارجه وزارات له مرستیال عبدالرحمن زاهد نه د طالبانو له کربښې د تېرېدو لپاره اجازه لیک ترلاسه کړ چې دې کار بیا د مسعود پلویان د خارجه وزارت دغه مرستیال ته ډېر متوجه کړل. کله چې په دوه زره دوهم کال عبدالرحمن زاهد غوښتل چې د خپل ځان د سپیناوي او ځینې نورو کارونو لپاره د خارجه وزارت د تشریفاتو پخواني مسئول قاسم حلیمي کابل ته واستوي او هلته یې حکومت کې دننه کړي، کله چې حلیمی لاړ نو استخبارتو بندي کړ، لت وکوب یې کړ او بیا یې امریکایانو ته وسپاره. کله چې قاسمي خلاص شو نو زاهد ته به یې ویل چې خاص ستا په سر یې په پوزه په لغتو ووهلم او پوزه یې راماته کړه او پړمخ یې څملولم او له شایې په لغتو تک شین کړم.

د ابو هانئ له خوا سیاف ته دغه کسان معرفي شوي وو. هغوی لومړی له سیاف سره مرکه کړې وه، بیا د هغه له لارې یې ځان مسعود ته رسولی و. مسعود هغوی ته د تخار د خواجه بهاءالدین په سیمه کې د مرکې وخت ورکړ. کله چې یې مرکه پیل کړي، نو هغوی خپله له باروتو ډکه تلوېزوني کمره منفجره کړه او مسعود یې وواژه.

د ستمبر په نهمه پر مسعود د چاودنې لومړی خبر د روسي انټرفکس اژانس خپور کړ، خو موږ د مسعود د مړينې بيا بيا اوازې اورېدلې وې، ان د حکمتيار او مسعود د جګړې پرمهال به د حزب وياندانو همداسې اوازې اچولې، ځکه خو سمدستي باور ګران و. په سبا چې بريد يقيني شو، خو د مسعود وياند عبدالله عبدالله د هغه مړينه نه منله. بې بې سي سره په مرکه کې يې ډېره عجيبه جمله وکاروله، هغه ويل: "امير صيب زنده است مګر اوازش بيرون نه می ايد".

د روسيې استخبارات او سي آی اې سمدستي خبره شوې وه. له سي آی اې سره د مسعود خاص ارتباطي امرالله صالح د سي آی اې مرکز ته تلفون کړی و ، په ژړه‌غوني غږ يې د مسعود له مړينې دسي آی اي مشران خبر کړي ول او د متبادل مشر د انتخاب مشوره يې ورنه غوښتې وه.

د امارت مشرتابه او چارواکي د موضوع له اصل حقيقته پوره ناخبره ول. ما ته رسنيو  پر تلفون زنګونه ووهل. له مشر نه مې د عکس العمل ښودلو په اړه په مخابره هدايت وغوښت. هغه راته وويل حقيقت دا دی چې نه يې له قاتلانو خبر يو او نه ورکې لاس لرو او نه وربانديې خوشحالي څرګندوو. ما هم همدا توري له رسنيو سره شريک کړل.

# پنځم څپرکی

**پر امریکا د یوولسم ستمبر بریدونه**

**ماسپښین قضاء و. دفتر کې ناست وم. جرمني نه یو دوست تلفون وکړ. وایي خبر نه یاست په نیویارک بریدونه وشول او لا هم روان دي. ما ورغبرګه کړه څه ډول بریدونه دي؟ هغه وویل نور نه پوهیږم خو په یوه ستره ودانۍ کې یې لکه چې الوتکه وهلې یا به په غلطۍ وهل شوې وي، خو د نړۍ تلویزونونه د ستر تعمیر پر سر بلېدونکې لمبې او د خلکو منډې او وارخطایي پروډکاسټ کوي. یواځې همدا خبر پر ټوله میډیا چلیږي. په افغانستان کې هغه وخت رسنۍ یواځې لویدیزې رادیوګانې وې، داخلي رسنۍ وقفه وقفه وې. دا وخت هیڅ یوه رادیو خبري برخه نه خپروله او بي بي سي او امریکا غږ هم وروسته خبرونه خپرول.**

**انټرنیټ یوازې د امارت مرکزي دفتر کې و او د ډش امکانات هم له موږ سره دفتر کې نه ول. زه بیا هم د دغو بریدونو پر ستروالي او اهمیت دومره نه پوهېدم، خو لږ وروسته له هر لوري تلیفونونه وشول او معلومات زیات شول، چې پینټاګان کې هم برید شوی او پر غبرګونو تجارتي مرکزونو غبرګوني بریدونه شوي.**

**ما په مخابره پر مشر غږ کړ چې په امریکا کې دا ډول بریدونه شوي، خو هغه لږ مخکې له خارجه وزارت نه خبر شوی و، ما ته یې ځواب کې وویل چې ماته**

هم خبره ورسېده خو نه پوهیږم چې څه دي. الله دې خیر کړي. همدومره یې وویل نور یې هیڅ تبصره ونه کړه. زه له دې ځایه د مشر دفتر ته لاړم. هلته طیب اغا او نورو ملګرو پر انټرنیټ خبرونه تعقیبول. له هغه وروسته په کندهار کې د سي این این دفتر ته لاړم. هلته ډش لګېدلی و پر سي این این او الجزیره مو ټوله صحنه ولیدله.

سمدستي غبرګون دا و چې په رسنیو کې د دې پېښې غندنه وکړو. موږ په رسنیو کې دغه پېښه وغندله او مشرتابه اسامه ته حال ور واستاوه چې ژر دې له دې پېښې سره نه تړاو اعلان کړي. شیخ له یوې خوا له پېښې سره نه تړاو اعلان کړ، له بلې خوا یې دا خبره ورسره زیاته کړه چې زه پرې خوښ یم. دا خبره مشرتابه ته د اندېښنې او اعتراض وړ وګرځېده.

متوکل صیب په کابل کې د نړۍوالو رسنیو په وړاندې وویل موږ دا پېښه غندوو او له امریکا نه تر ثبوت موندلو وړاندې د زغم هیله کوو.

کله چې امریکا پر اسامه تور ولګاوه نور حالات بدلېدونکي شول او یو لوی بحران سر راښکاره کړ چې مشرتابه او چارواکې یې نور په حل نه پوهېدل.

دا وخت د القاعده ځیني ماهرانو او ځیني بهرمیشته افغان پوهانو موږ ته د کندهار پر فضا د امریکایي مصنوعي سپوږمکیو د څارني د زیاتوالي خبر راکړ. د امریکایي څارونکو سپوږمکیو شتون یا څار زموږ لپاره نوې خبره نه وه، خو په دې کې ځیني ځلیدونکو ستورو ته ورته فضایي سپوږمکۍ هم په ګوته شوې وي، چې نښه یې دا ښودل کیده چې د ماښام او ماخستن ترمینځ کله د توقف په حالت کې او کله د رفتار په حالت لیدل کیدای شي ؛ رڼا یي کمه و زیاته کیږي او د ستورو په څېر پر یوه حال نه وي، دې کار ته موږ ځیر شو، څو ځله مو همداسي ځلیدونکي ستوري په ټیټه فضا کې ولیدل چې رڼایې بلکل

مصنوعي او د موټر د څراغونو په څېر تیزه وه او د ماخستن تروخته به لیدل کیدل، بیابه ورک شول او ځینې نور به د ورو ورو حرکت په حال کې لیدل کیدل، چې هغو به یې تته او زیړه رڼا لرله، موږ به د ملګرو ترمینځ په دې بحث هم کاوه، پوره یقین مو هم نشوای کولای. خو نظر انداز کولای مو هم نشوای او د امریکا د ممکنه برید له ویرې موږ پر دا ډول احتمالاتو سترګې نشوای پټولای، ما هغه وخت سره له تردده دغې مسئلې ته ملګري متوجه کول که څه هم تر ننه هم زه د دا ډول ځلېدونکو ستورو ته ورته سپوږمکیو پر امکان پوره باوري نه یم، خو ردول یې هم فني قناعت غواړي.

په کابل کې د دیني علماوو ستره غونډه او د اسامه په اړه پرېکړه

کله چې د امریکا ولسمشر جورج بوش په رسا ټکو د افغانستان پر حکومت غږ وکړ چې اسامه دې لاس تړلی وسپاري که نه پر افغانستان به برید وکړو، نو د چارواکو ترمینځ هم ډول ډول مشورې، نارضایتي او نیوکې روانې وې. ملا محمد عمر ورته وویل نور هیڅ نه منم که مرو که پاتې کیږو، صرف شرعي حل به لټوو.

بیا یې پرېکړه وکړه چې علماوو ته به دا موضوع وسپارو چې هغوی څه وایي. په همدې مناسبت د هېواد په کچه د علماوو یوه ستره غونډه په کابل کې دایره شوه چې له دوو ورځو بحث وروسته یې خپله پرېکړه کې وویل چې اسامه ته دې مشوره ورکړل شي چې په خپله خوښه له افغانستانه ووځي خو په زور ویستل یا سپارل یې د اسلامي شریعت له مخې جواز نه لري. د دې ترڅنګ یې دا هم وویل چې که امریکا یرغل وکړي نو په وړاندې یې جهاد فرض دی.

بل پلو امریکایانو په رسا تورو وویل چې موږ ته بله هیڅ لار د منلو وړ نه ده. که اسامه ولاړ هم شي نو موږ ته افغانستان حکومت مسئول دی، ځکه د دوی په لاس کې دی، دوی به یې لاس تړلی له ملګرو سره را سپاري.

مشرتابه وویل امریکایان د هغه په وتلو هم قناعت نه کوي نو چې په تیتهو سترګو د هغوی د یرغل په مقابل کې مقاومت کوو. ښه به دا وي چې په نر موقف ورسره مخ شو. نه اسامه ته وایو چې ووځي او نه یې سپارو. نه مو اوس امریکا په دې ډول نرمښتونو پرېږدي، بلکې د هغوی غوښتنه داسې ده چې نه اسلام اجازه راکوي، نه یې افغانیت او انساني غرور مني.

### کندهار ته د پاکستاني پلاوو سفرونه

له امریکایي بمباره نږدې یوه میاشت وړاندې د پاکستان پوځي مشر پرویز مشرف پر طالبانو غږ وکړ چې یا دې اسامه بن لادن وسپاري یا دې د خپل حکومت د نړېدو انتظار وکړي.

دغه وخت د پاکستان د استخباراتو مشر جنرال محمود کندهار ته راغی. د امارت د دفتر په نوې ودانۍ کې یې له ملا محمد عمر مجاهد سره ملاقات وکړ. په دغه ناسته کې د مشر او جنرال محمود ترمینځ ترجماني د بهرنیو چارو وزارت د تشریفاتو رییس عبدالغفور افغاني کوله. جنرال محمود د علامه اقبال انځورونو ته ورته څېره لرله. هوښیار سړی و. ژور استدلال یې کاوه او تر ډېره یې په خبرو کې په تاریخي پېښو او نړۍوالو مسائلو استدلال کاوه؛ د لویدیځ په اړه یې کرکه څرګندوله؛ د اقبال اشعار یې ډېر ویل او په خبرو کې یې ملا محمد عمر ته بې کچې احترام څرګنداوه،چې په ډېر دقت به یې د مشر خبرې اورېدې.

جنرال محمود د خپلو خبرو په جریان کې وویل: امریکا ډېر ستر پوځي او اقتصادي ځواک دی، سیمې ته د راتګ لپاره پلمې ګوري، که په هره طریقه ممکنه وي، چې د راتلو پلمه ورته جوړه نه شي.

هغه وویل چې فی الحال امریکایان د سپټمبر د پېښو په غبرګون کې د سخت عکس العمل پر تیاري بوخت دي، ځکه چې اسانه بهانه په لاس ورغله. محمود په مثال کې د لېوه او مېږې کیسه هم تېره کړه چې مېږې پر ویاله تر لېوه ښکته خوا ته اوبه څښلې، خو لېوه د هغې د ښکار لپاره د بهانې لټولو په موخه ورته وویل چې اوبه دې ولې راخړې کړې!

بل مثال یې دا وواېه چې کله غویی پوره مست شي، نو ورنه د ځان د ساتلو لاره یې دا ده، چې هغه په یوه ستر میدان کې په منډو ښه ستړی شي، نو که امریکا د څه وخت لپاره مصروفه کړای شي، کېدای شي فضا یو څه نورماله شي.

ملا محمد عمر ورته وویل: امریکا له تېرو څو کلونو راهیسې زموږ د له منځه وړلو لپاره اراده کړې. د خوست راکټي برید او بیا اقتصادي بندیزونه یې ابتداء وه. امریکا زموږ وجود او نظام نه شي زغملای، موږ د درېیمې لارې هڅه کړې او کوو یې، خو اوس امریکا یوازې د زور خبره کوي. که موږ د هغوی ناروا غوښتنې ومنو هم، دا یقیني نه ده، چې هغوی دې بیا هم موږ پرېږدي، موږ پوهېږو چې امریکا موږ ته دروند زیان را اړولی شي، خو کومه غوښتنه چې امریکا لري هغه زموږ لپاره له دې ډېر دروند دیني او عقیدوي زیان او له خپل هدف او مسیره انحراف دی. زه یوه لویشت هم له شرعي مسوولیته نه شم پر شا کېدای، که مې نظام او سر دواړه ولاړ شي، خو داسې څه نه شم منلای، چې اسلامي شریعت یې اجازه نه راکوي.

البته له دې علاوه، موږ معقولو دوه طرفه مذاکراتو ته مخ کې هم اماده و، اوس هم اماده یو، خو که امریکا یرغل وکړي نو له خپل توان سره سم به تر اخیري سلګۍ ورسره وجنګیږو. په دې اړه له اوږدو دوه اړخیزو خبرو وروسته جنرال محمود بېرته ستون شو. څو ورځې وروسته بیا د برګېډیر سلطان، مېجر ګل او یوه بل جنرال په ملتیا - چې له ما یې اوس نوم هېر دی- راغلل. دا ځل یې ځان

سره د پاکستان هغه مشهور او جید علماء هم راوستل چې پر طالبانو یې دیني او علمي اغېز درلود.

په دې کې د پاکستان د وفاق المدارس مشر مولانا سلیم الله خان، شیخ الحدیث مولانا حسن جان، مولانا مفتي محمد تقي عثماني او مولانا شېرعلی شاه ول. د علماوو مجلس په تنها خونه کې وشو. په دې ناسته کې د پاکستان دولتي هیئت ګډون نه درلود. په دې مجلس کې هم زه، د مشر سکرتر سید طیب اغا او ځینې نور ملګري حاضر وو. تقي عثماني او مولانا سلیم الله خان صیب په پښتو نه پوهېدل، د مشر خبرې شیخ الحدیث شېرعلی شاه ورته ژباړلې او د هغوی دواړو خبرې یې ملا محمد عمر ته ژباړلې.

لومړی ملا محمد عمر هغوی ته هرکلی ووایه. ورپسې خبرې د علماوو له خوا پیل شوې. ښاغلي مفتي تقي عثماني د اسلامي نظام د بقاء پر ارزښت مدللې خبرې وکړې. د حالاتو د نزاکت یادونه یې وکړه او ویې ویل، دا یو اسلامي نظام دی او دښمنان یې د نړېدلو هڅې کوي، نو هر هغه لاره باید ولټول شي، چې د دې ماجرا مخه ونیول شي. مولانا تقی صیب وویل ټول مسلمانان په دې یرغل متاثره کیږي، نو د شیخ اسامه موضوع ته د حل مناسبه لار لټول پکار دي.

مولانا سلیم الله خان صیب له ملا محمد عمر سره له محبت او خواخوږۍ ډکې خبرې وکړې او د امریکا له یرغل د خلاصون د لارو چارو پر لټون یې بحث وکړ.

د دغو علماوو خبرې، اندېښنې او خواخوږي د پام وړ وې او زما په اند پوره وزن یې درلود، خو د مشر لنډ ځواب نړدې ټول لاجوابه کړل. مشر له دغو علماوو

**سره د بې کچې احترام په فضا کې په ډېره خوږه او مودبانه لهجه خبرې وکړې. ملا محمد عمر دغه علماء مخاطب کړل:**

زما هر کار د علماوو له مشورې سرچینه اخیستې، د الله دین تاسو ته تر ما ډېر ښه معلوم دی، موږ ستاسي د شاګردانو په درجه کې یو، خو خبره دا ده لکه څنګه چې انبیاء علیهم السلام د الله د دین په تعمیل مکلف وو، همداسې زه او بل هر مسلمان واکمن مکلف دی، زه به هغه څه کوم، چې اسلام یې اجازه راکړې، زه به الله ته د دې څه ځواب وایم، چې الله ما ته دېرش تنه مجاهدین راکړل (د تحریک د پیل لومړیو ورځو ته اشاره وه) هغه وخت ما پر الله توکل وکړ او الهي مسوولیت ته مې شا نه کړه، خو نن چې د یوه هېواد واکمن یم د خپلې واکمنۍ د بقاء لپاره څنګه خپل شرعي مسوولیت ته شا کړم؟

د اسامه په موضوع کې اوس امریکایان بله هیڅ خبره نه مني، یواځې دوې لارې یې پرې ایښې. یا به یې ورسپارو یا به یرغل کوي، البته که خدای مه کړه ور ویې سپارو بیا هم د دې تضمین نه شته چې یرغل به نه کوي، نو اوس تاسې ما ته د سپارلو فتوا راکولای شئ؟

**ټولو ورته وویل: نه، موږ د جواز فتوا نه شو درکولای. مشر وویل: درېیمه لار پاتې نه ده. سعودي ته سپارل هم امریکا ته سپارل دي، ځکه چې سعودي یې هم امریکا ته ورکوي او د امریکا په امر یې له موږ غواړي.**

**څرنګه چې ما ته د افغانستان علماوو هم اجازه نه ده راکړې، تاسو یې هم نه شئ راکولای او د نورې نړۍ حقیقي علماء یې هم نه شي راکولای، نو دغه عمل د اسلام له نظره جواز نه لري، زه مجبور یم په دې لار کې به هرې قربانۍ ته ځان ورکوم. د خپل سر او خپل نظام باک به هم نه کوم، د هر یرغلګر پر وړاندې به د جهاد فریضه تر خپل ژونده جاري ساتم.**

د مشر له دې ځواب سره علما چپ شول، مولانا سليم الله خان وژړل، ملا محمد عمر ته يې مخ ورواړاوه: الله ستا شرحِ صدر په همدې کړی، الله دې مرسته وکړه او الله دې موږ ته هم د شهادت مرګ راکړي.

دا مجلس په همدې ځای پای ته ورسېد. بهر جنرال محمود، برګېډير سلطان او مېجرګل ناست وو. د ټولو شونډې وچې وې، يوه يې ماته ګوته ونيوله او ويې ويل: دا هماغه دی؟ زه پوه شوم چې هغوی زما په يوې مطبوعاتي مرکې غوسه وو.

جنرال محمود په وروستي ځل ملا محمد عمر ته وويل، که زه وم يرغل به نه کيږي او که يرغل کېده زه به نه يم. رښتيا هم چې کله جنرال مشرف د امريکا له خوا پر افغانستان د يرغل د ملاتړ اعلان وکړ، نو جنرال محمود استعفاء ورکړه.

له پاکستاني هيئت سره له ملاقات نه وروسته متوکل ملا محمد عمر ته يو ځل بيا وويل، چې ښه لاره دا ده چې اسامه سعودي ته وسپارو، داسي معلوميده چې لومړی متوکل فکرکاوه چې د پاکستاني علماوو هيئت به کوم حل را وباسي، خو چې کله مايوسه شو نو بيايې په شخصي توګه وړانديز وکړ، ملا محمد عمر په موسکا متوکل ته د نه ځواب ورکړ او دا طرحه يې د منلو وړ ونه بلله.

کله چې موږ بيرته د مشرتابه نشراتي دفتر ته راغلو نو د ملا محمد عمر يو جهادي ملګري ملاغازي چې د ستېنګر توغندی ويشتل يې هم زده و، له موږ سره په دې خبره توند شو چې امريکايي الوتکې ولي ستېنګر توغندی نشي په نښه کولای، موږ ته دا معلومات رسيدلي و، چې ستېنګر توغندي امريکايي الوتکې نشي ويشتی، خو ملاغازي دغو خبرو ته زموږ د وارخطايۍ نوم ورکړ، له

ما يې مخ واړاوه او د دفتر يو تن بل ملګرى احمدجان احمدي يې مخاطب کړ: «ياره احمدی صاب چې اول ورځ يو لس دانې امريکايي جيټان را ايله کړو...»

د امريکا يرغل

د پاکستان له وروستي هيئت وروسته زه د څو ورځو لپاره خپل کلي ته لاړم. له رخصتي وروسته مې د اکتوبر په اوومه ځان بېرته تللو ته تيار کړ. سهار وختي له کوره ووتم. سپېده چاود کې مې پر لار د الوتکو درانه غړونه ترغوږ شول. تازه سهار خلکو د اسمان لوري ته پر ترهېدلو څېرو او دقيق نظر کتل. پوه شوم چې ټکه لوېدلې. څوک به ژغورلي وي او څوک به بې روحه پراته وي! د موټر په پر سټرينګ مي لاسونه سخت شول او په څوکۍ کې سيده شوم. پښه مي پر ايکسلېټر ټينګه کړه، پرته له دې چې پر لار بريک ونيسم او د چا حال وپوښتم، شاوخوا د سهار اته بجې د مشرتابه دفتر ته دننه شوم.

نه لار کې ساتونکي وو او نه دفتر کې د ژوند اثار. د کړکينو ماتو ښيښو او د نوي ډول باروتو بويونو ټوله فضا وحشي کړې وه. سړه سنا وه. هيچا له ودانيو نه سر رابهر نه کړ، نه يې وپوښتلم! تر دې وړاندې چې له موټره کوز شم، د رپيټر مخابرې لومړۍ شمېرې ته ولاړم او پر طيب اغا مې غږ کړل: احمد! احمد! (د مخابرې کوډ يې و). په ټيټ اواز يې جواب راکړ. عبرته اورم چېرته يې. دفتر کې ولاړ يم. غږ يې جدی شو: ژر راوځه بمبار لا روان دی. دفتر بمبار شو او هر شېبه لا هم خطر دی. ما هم په تېزۍ ځان له خاموشې حويلۍ وويست.

وروسته يې پر مخابره خپل ځای را وښود. د کندهار لوبغالي سره يې خالي شوې حويلۍ خپل موقت دفتر ګرځولی و، هلته ورغلم. له سلام وروسته لومړۍ پوښتنه د مشره وه، طيب وويل روغ رمټ دی. يوازې يو تره يې شهيد شو.فاميل يې له ښاره بهر ارغنداب ته واستاوه، خپله نه راووت ويل يې په

کوم ځای چې مرګ راته لیکلی وي، هلته به مرم، خو ټولو ملګرو ورته ډېر عذر او زارۍ وکړې اخیر مو وویست خو لار کې الوتکو ورباندې توغندي وار کړل. مګر ترې بچ شو.

ستنګر توغندیو پر امریکایي الوتکو کار نه کاوه. د ملاغازي غوړونه نور مړه وو، تور پټکی یې پر غفوري لونګۍ بدل کړی و او د اسمان خوا ته یې په ډارن نظر کتل. روسي دوه میلې کوړیدې خو بمبار کوونکو الوتکو له ډېرش زره متره بالا نه بمبار کاوه. دومیله تر پینځلس زره متره ویشتل کولای شي.

د مشرتابه د مرکزي مخابرې نصرت مسئول حاجي لالا د دومیله توپونو پر مسئول په مخابره کې غږ کړل: هسې مرمۍ مه ضایع کوئ! کوم ځای ته چې ستاسې مرمۍ رسیږي، که یې هم هغلته هم ورته کیږدئ، بیا هم نه ور رسیږي. کومې دوه نسبتا پرمختللې روسي دافع هوا دستګاوې چې طالبانو په کندهار او کابل کې پر غرونو ځای پرځای کړې وې، هغه په لومړي هدف کې الوتکو له مسلکیانو سره یو ځای له مینځه یوړې. موږ مېنې بدلولې او له رسنیو سره مو اړیکه ساتله.

له بره دا مریکایي الوتکو سخت بمبار روان و او لاندې په هر ښار کې د ستلایټ تلفونونو لرونکې جاسوسان ګیریدل؛ د امریکا له خوا کرایه شوي ځیني قومي مخور او زاړه قومانداناان هم د بمبار ورستیو پایلوته په تمه ورو ورو د خوځښت په حال کې ول او مشرتابه ته یې راپوړونه راتلل.

د هیواد دځینو نورو برخو ترڅنګ د کندهار فضا هم هغو راډیوي څپو پوښلې وه چې له الوتکوېې د امریکایي ځواکونو اعلامیې خپرولې. د دغو خپرونو ویاندویان یې ناپښتانه حتی پښتو ویوونکي انګریزان وو! چې په غلطه پښتو ژبه یې اخطاریه اعلامیې خپرولي. د مشر په اړه به یې سپکوونکې تورې کارول. که څه هم امریکایان او ملګرې یې د خپلو سیاسي او فوځي مخالفینو

په شخصیت وژنه کې ځانګړی تبلیغاتي مهارت لري. لکه د قذافي، صدام، عمر بشیر، هوګوچاویز، چینایې رهبرانو او ایراني روحاني مشرانو په اړه چې فرضي کیسي خپروي او همدا اوس یې په ترکي رهبر رجب اردوګان پسي هم شروع کړې. خو د ملا محمد عمر په اړه په دغه اعلامیو کې داسي خبرې خپریدې چې په افغاني ټولنه کې بې معنا او خنداوره وې. د بیلګې په توګه په یوه اعلامیه کې به دا توري تکراریدل: چې ملا محمد عمر له خپلو میرمنو سره عیش کوي. په اسلامي او افغاني ټولنه کې له میرمنو سره عیش هیڅ کومه ځانګړې ناوړه معنا نلري!

## د قومندان عبدالحق نیول او وژل

کله چې د ۲۰۰۱ اپرېل په څلورمه احمد شاه مسعود د اروپايي پارلمان په دعوت اروپا ته سفر وکړ. هلته يې د ښکاره غونډو ترڅنګ له اروپايي او امريکايي استخباراتي کړيو سره، د پټو ناستو او تعهداتو خبرونه هم ورکول شول. دلته دا خبره د طالب مشرتابه غوږونو ته هم ورسېده چې امريکا او لويديځ همکاران يې غواړي د طالبانو د پرځولو لپاره د طالبانو د ټولو مخالفو ملېشو او پخوانيو قومندانانو يوه ګډه موثره جبهه جوړه کړي. ډېر امکان دې ولري چې د پيسو ترڅنګ نوي جنګي وسايل هم ورکړي او حتی امريکايي ځانګړي ځواکونه او الوتکې يې هم مرسته وکړي.

همدې خبرې طالبان چې تر دې دمه د امريکا له خوا له اقتصادي بنديزونو، تبليغاتي دښمنۍ او ديپلوماتيکې تنهايۍ سره مخ ول، له يوه بل ډېر جدي خطر سره مخ کړل. طالبانو دې لور ته توجه واړوله او په سيمه کې يې تر خپله وسه د نوې جبهې د ايکټرانو د حرکاتو او پلانونو د څارنې هڅې پيل کړې. په دې ايکټرانو کې په شمال کې د مسعود او دوستم ترڅنګ په شرقي او مرکزي ولاياتو کې قوماندان عبدالحق او په لويديزو ولاياتو کې حامدکرزی ډېر ښکاره بوخت وو.

عبدالحق او کرزی دواړه له دې وړاندې له طالبانو سره څرګندې دښمنۍ ته نه وو رسېدلي خو د دې نوې امريکايي پروژې په تياري کې په تېزۍ بوخت وو. دوی په پاکستان، ايران او متحده عرب اماراتو کې غونډې کولې او جنګي قومندانانو او قومي مخورو ته يې پيسې ويشلې چې دغه جبهه پراخه کړي. په دې لړ کې قومندان عبدالحق د دوبۍ ښار "الحيات ريجنسي" په نامه هوټل کې د مهمو او سترو قومندانانو لپاره يوه خفيه غونډه ترتيب کړه. د هغوی د سفر اسانتياوې يې هم ورته وار د مخه برابرې کړې وې. عبدالحق او د هغه

**ورور حاجي قدير د نړۍ د ځينو نورو ښارونو تر څنګ په دوبۍ ښار کې هم تجارتي دفترونه او معاملات لرل، ځکه خو هلته پروګرامونه ترتيبول ورته ګران نه و.**

**دغې خفيه غونډې ته ځينې قوماندانان په ناخبرۍ کې ورغوښتل شوي وو چې له اصلي موضوع خبر نه وو چې په دې کې د کابل ولايت يو مهم قومندان له دې موضوع سره د نه توافق په نتيجه کې دغه راز طالبانو ته ورساوه، ځکه خو طالبان له اوله عبدالحق ته ځير شول. کله چې د ۲۰۰۱ د اکتوبر په اوومه پر افغانستان امريکايي يرغل پيل شو، څو ورځې وروسته عبدالحق هم له پلان سره سم له يو شمېر پلويانو سره يو ځای له پېښوره د پاڼهچنار پر لار افغانستان ته رادننه شو.**

**هغه له پاڼهچناره "ترې منګل" سيمې ته او بيا اريوب ځاځي ته راغی. له هغه ځايه د لوګر ازرې ولسوالۍ ته راغی. د ازرې او حصارک ولسواليو کې يې خپل قوميان، عام ملکان او قومندان ان د پيسو په بدل کې د طالبانو پر ضد جګړې ته وهڅول.**

**عبدالحق نه د طالبانو د خبرېدو دوه چينله وو. يو پوخ پلان شوی چينل و چې عبدالحق يې له پېښوره تر ازرې څاره، خو په وروستي وخت کې يې دقيقه څارنه ونه کړای شوه. بل هغه ناڅاپي او اتفاقي چينل و چې عبدالحق يې سمدستي ونيو، دا چينل د لوګر د استخباراتو او امنيه قومندانۍ تصادفي چاينل و.**

## لومړی هم پلان شوی چاینل

کله چې د دوبۍ له غونډې وروسته طالبان عبدالحق ته متوجه شول نو د هغه د څارنې لپاره یې هلې ځلې پیل کړې. د امریکا له یرغله لږ وړاندې چې قوماندان عبدالحق په پېښور کې د خپلو قوماندانانو او پلویانو د منظمولو او د سي آی اې له خوا د پیسو ویشلو کار توند کړ، طالبانو له یوې خوا په دستوري توګه د ننګرهار د حسارک ولسوال ته دنده ورکړه چې عبدالحق سره په ظاهره لاس یو کړي او په دې ډول د هغه په پوست ورننوځي او روزمره حالات یې وڅاري. دغه ولسوال به له عبدالحق سره په پېښور کې د هغه د ملاقاتونو په ځای کې ناست و او ملاقاتونه به یې څارل. ماښام به یې د ننګرهار د استخباراتو ریاست ته د ورځې جریانات ټول مخابره کول.

په دې کې هغه یو دوه ټیټ رتبه طالب چارواکي هم لیدلي ول چې له عبدالحق سره یې له مشرتابه پټ کتل! بل پلو ته یې د حزب اسلامي د یوه پخواني قوماندان په مرسته د قوماندان عبدالحق یو پخواني مجاهد چې دا وخت یې د پاکستان د هري‌پور سیمې سره خوا کې د شهدو د مچیو په یوه فارم کې مزدوري کوله، دې کار ته اماده کړ، چې له عبدالحق سره یو ځای شي او بیا په دوام‌داره توګه د هغه په اړه طالبانو ته معلومات ورکړي.

دغه کس و چې له پېښوره تر ازرې یې د قومندان عبدالحق معلومات طالبانو ته رسول. د دې کس رابطه د ننګرهار د استخباراتو ریاست سره وه. کله چې پر افغانستان امریکایي یرغل پیل شو او قوماندان عبدالحق هم د نورو قومندانانو په څېر غوښتل چې د کابل، لوګر او ننګرهار په اطرافو کې د امریکا د پلیو ځواکونو رول ادا کړي. د دې لپاره یې د کار پیلولو نقطه د لوګر ازرې ولسوالۍ او دننګرهار حصارک ولسوالۍ غوره کړې وې، چې دواړه سره خوا په خوا

موقعیت لري. عبدالحق له اوله لا د ننگرهار له چارواکو او استخباراتو وېره لرله، ځکه خو یې د ننگرها او کونړ د سرحدونو پر ځای د پاڼه‌چنار لار غوره کړه. ازرې او حصارک ته د عبدالحق له رسېدو سره طالبانو د ننگرهار له لوري په محتاطانه ډول د عبدالحق په څارنه او مراقبت لاس پورې کړ چې ژوندی ونه تښتي. تر دې وخته د عبدالحق د راتگ راز یواځې د ننگرهار استخباراتو سره و. د طالبانو د پلان شوي چاینل خاص ځواکونه د حصارک ځینې برخو ته د عبدالحق د پلټنې لپاره راورسېدل.

تصادفي چاینل

په عین هغه وخت چې د ننگرهار د استخباراتو ځانگړی ځواک د عبدالحق د نیولو لپاره په حصارک کې په پلټنه بوخت و، د روانې میاشتې (اکتوبر)په څلورویشتمه د لوگر والي مولوي ضیاءالرحمن مدني خپل امنیه قوماندان مولوي بازمحمد راغواړي او ور ته وایي چې په ازره کې امریکایي چورلکې کېناستلې او پلي ځواکونه یې کوز کړې دي. دا وخت چې امریکایي پلي ځواکونه چا نه وو لیدلي، طالبانو له هغوی سره د مخامخ جگړې ډېره تلوسه لرله.

امنیه قوماندان په بېړه جنگي کنډک برابروي او د یو څو میله پیکا ماشیندارو د مرستې لپاره د استخباراتو ریاست ته په بېړه ځي. د استخباراتو له رئیس محمد انشا مخبت نه د څو پیکا ماشیندارو مرسته غواړي. مخبت علت پوښتي. امنیه قوماندان د امریکایي چورلکو د ناستې ورته وایي. د استخباراتو رییس ورته وایي چې امریکایي چورلکو به امریکایي عسکر کوز کړي وي، ته به ځې زه به پاتې کېږم؟ داسې شونې نه ده، هرومرو به زه هم ځم.

دواړو په گډه څو موټره وسله‌وال برابر کړل او په بېړه د ازرې لور ته روان شول. هغوی د لوگر دوبندي سیمې ته ورسېدل چې له ازرې د دوی ارتباطیان مټکورې کلي ته راورسېدل. دوي ته یې خبر را واستاوه چې امریکایي الوتکې

نه شته، بلکې قوماندان عبدالحق راغلی؛ خلک د طالبانو پر ضد مسلح کوي او په دې موخه پیسې تقسیموي. د امنیه قوماندان او د استخباراتو د رییس په مشرۍ دغه وسله‌واله ډلګۍ د ازرې د حاجي زرغون کلي ته رسیږي. هلته حاجي زرغون طالب مېلمنو ته پسه حلالوي (چې دا کار په پښتنو کې د خاص احترام نښه ده) حاجي زرغون ته له دې یوه ورځ وړاندې قوماندان عبدالحق راغلی و او له ده نه یې د یوه قومي مخور په توګه د طالبانو پر ضد جګړه کې د مرستې غوښتنه کړې وه. په بدل کې یې د زیاتو پیسو وړاندیز ورته کړی و، خو زرغون د یو ځیرږ پښتون په بڼه عبدالحق ته ډېر تریخ ځواب ورکړی و، هغه ته یې د بې ضمیره او وطن پلورنکي خطاب کړی و.

د حاجي زرغون کره د شپې له تېرېدو نه وروسته سهار دغه وسله‌واله ډلګۍ د لکړۍ (د ځاځیو او ازرې تر مینځ سرحدي غر دی) د غره پر څوکه د منګلو درې کلي ته اوښتل چې یوه دوه سیټه ډاټسن پر مخه ورغله. طالبانو ډاټسن ودروله او غوښتل یې چې عادي تلاشي واخلي. د ډاټسن د مخې په سیټ کې ناست دنګ غنم رنګي سړي ډېره سخته بڼه ووهله او رنګ یې ژېړ شو. له سختې وراخطايۍ په لړزېدو شو. دا سړی په چې عمر د اته څلوېښتو اوپنځوسو تر مینځه ښکارېده. له حالته یې داسې برېښېده، لکه هغه چې فکر کوي چې دا طالبان د همده په لټون راوتلي دي. د هغه پر بغل ټیټې توپانچه وه ، طالب مشر فکر وکړ چې ښايي دغه سړی د دې توپانچې له امله وارخطا دی، ځکه چې د طالبانو په واکمني کې له نامسئولو کسانو سره د وسلې شتون جرم و. طالب مشر دغه سړي ته تسلي او اطمنان ورکړ چې دا د وارخطايۍ خبره نه ده. زموږ له خوا درته ستونزه نه شته، موټر یې رخصت کړ، خو چې کله د منګلو درې کلي ته ورسېدل، کلیوالو ورته وویل چې په ډاټسن کې ناست هم هغه دنګ سړی د ننګرهار مشهور قوماندان حاجي زمان غمشریک و.

د لوګر د استخباراتو رییس خپلو ملګرو ته وويل چې راځئ چې لومړی اودسونه وکړو او د منګلو درې د حاجې فضل الرحمن په مهمان خانه کې د پرتو ديني او تاريخي مقدساتو زيارت وکړو او بيا د عملياتو د بري لپاره په اخلاص دعا وغواړو، دا مقدسات څه وو؟

لومړی په دې اړه لنډ معلومات وړاندې کوم.

د ازرې د منګلو درې مذهبي او تاريخي مقدسات

غالبا په هېواد کې د اميرحبيب الله (بچه سقاو) د واکمنۍ پر مهال چې د کابل ښار چور شوی و، د دې سيمې خلکو د کابل په بالاحصار يا هم ارګ کې يو پخوانی تاريخي بند صندوق موندلی و، چې په کې يو کميس او يوه خولۍ ايښې وه. پر کميس له سره تر پايه د قران کريم اياتونه په نزولي ترتيب ليکلي و او د ليکلو نېټه يې پينځم هجري قمري ورسره ليکل شوې وه. د اياتونو په ترتيب نزولي ليکنه، د ليکدود او د ليک شکل او د کميس زوړوالي دا په ډاګه کول چې دا کميس ښايي همدومره قدامت ولري او خولۍ د اوبښ له وړيو جوړه وه. داسې ګومان کيږي چې د اسلام په لومړيو پېړيو کې ښايي اسلامي فاتحانو دغه مقدس اثار د تبرک په توګه له ځان سره راوړي وي.

د طالبانو د واکمنۍ پر مهال کوم چارواکي دا خبره د طالبانو مشر ملا محمد عمر ته ورسوله او داسې راپور يې ورکړ چې دغه مقدسات د ايران پر هيواد د پلورلو په حال کې دي. ملا محمد عمر له کندهاره ځانګړې چورلکه پسې راواستوله او دغه مقدسات يې کندهار ته يوړل. په دې عمل د منګلو درې خلک سخت خپه او غوسه شول ځکه چې هغوی دغه مقدسات د خپل کلي لپاره وياړ او تبرک ګاڼه.

ملا محمد عمر د دې اثارو د څېړنې لپاره یو شمېرعلماء هم راوغوښتل. علماوو وویل: دا چې پر کمیس یواځې هغه ایاتونه په هم هغه ترتیب لیکل شوي چې تر پنځم هجري کال پورې نازل شوي دي او نېټه یې هم ورباندې پنځم هجري لیکل شوې ده، نو په دې کې خو شک نه شته چې دا کمیس همدومره قدامت لري. دا امکان هم ډېر قوي دی چې دا کمیس دې د اسلام د پېغمبر صلی الله علیه وسلم وي، ځکه چې په هغه وخت کې چې د اسلام پېغمبر ژوندی و. مسلمانانو له بل چا سره دومره مینه نه لرله چې پر کمیس یې قرآني ایاتونه ولیکي. دا ډول متبرک کمیس یواځې د پېغمبر کېدای شي، نو د دې خلکو دغه دعوی نه شي ردېدلای چې دا کمیس او خولۍ د اسلام پېغمبر ته منسوبوي.

د منګلو درې خلکو د دې اثارو د بېرته ترلاسه کولو لپاره ډېرې منډې وکړې. ډېرو سترو چارواکو ته یې اواز ورساوه او همدې چارواکو ملا محمد عمر ته د دې خلکو شکایت هم ورساوه او سفارش یې هم وکړ، خو اثار بېرته ورنه کړل شول. بلاخره د لوګر د استخباراتو رییس محمدانشا مخبت د ملا محمد عمر د مرکزي مخابرې "نصرت" دفتر ته خبر ورکړی و چې د منګلو درې خلک وایي چې که موږ ته زموږ مقدس امانت بیرته راستون نه شي، موږ د دې کلي سپین ږیري، ځوانان، ماشومان او تور سري لوڅې پښې صحرا ته راوځو او تر درو ورځو طالبانو ته ښېرې کوو. په ځواب کې ملا محمد عمر د لوګر چارواکو ته وویل چې زه چورلکه دراستوم، د کلي دوه مشران سپین ږیري راواستوئ چې زه له نږدې خبره ورسره وکړم. که ربښتیا د دې اثارو د پلورلو وېره نه وي، ورته وبه یې سپارم.

دوه سپین ږیري یې چورلکه کې کندهار ته واستول. ملا محمد عمر د سپین ږیرو ښه استقبال او مېلمه پالنه وکړه. له نورو سوغاتونو علاوه یې د دې اثارو د

حفاظت لپاره تقریبا دځلور زرو ډالرو معادل پیسې هم ورکړې او دغه مقدسات یې هم بېرته ورته وسپارل. بېرته یې په چورلکه کې له مقدساتو سره یو ځای خپل کلي ته راواستول. په دې عمل د دې سیمې د خلکو زړونه د استخباراتو رییس محمد انشا مخبت وګټل، همدا وجه وه چې دعبدالحق په پلټنه کې د دې سیمې خلکو له مخبت مرسته وکړه.

د مقدساتو له زیارته وروسته د ولسوالۍ د مرکز پر لور

محمدانشا او ملګرو یې اودسونه تازه کړل او د حاجې فضل الرحمن په مهمانخانه کې د پرتو مقدساتو زیارت یې وکړ. هغوی هر یوه په نوبت سره پر کمیس لاسونه ایښودل او خولۍ پر سر کوله. مخبت وایي هر ملګري چې به پر کمیس لاسونه کېښودل او خولۍ به یې پر سر کړه، بې اختیاره به یې له سترګو اوښکې روانې شوې. دوی وایي چې له دې وروسته یې په دې ځای کې د قران کریم یو څه تلاوت هم وکړ. کله چې ووتل یو ډول سکون او اطمنان ورسره پیدا شو، بیا هغوی د ازرې ولسوالۍ د مرکز پر لور وخوځیدل. ازرې ولسوالۍ ته چې ورسېدل، دا وخت تقریبا د غرمې دولس بجې وې. ولسوال ته یې مشوره ورکړه چې ټولو مهمو قومي مشرانو ته د غرمې لپاره د مېلمستیا بلنه ورکړه. د ولسوالۍ اکثره قومي مخور او سپین ږیري ولسوالۍ ته راغلل. لکه حاجي بسم الله، حاجي بادام، حاجي فضل الرحمن او ډېر نور...

طالبانو موثق معلومات ترلاسه کړي وو چې د حاجي زرغون، فضل الرحمن او یو څه نورو مشرانو پرته، نورو اکثرو قومي مخورو له عبدالحقه پیسې اخیستې وې او د ازرې او حصارک په سقوط کې یې عبدالحق ته د مرستې ډاډ ورکړی و.

له ډوډۍ خوړولو وروسته ولسوال د استخباراتو د رییس او امنیه قوماندان په مشوره سپین ږیرو ته وویل چې تاسو د لوګر والي مولوي ضیاءالرحمن مدني د

یوې مشورې لپاره د ولایت مرکز ته غوښتي یاست. سپین ږیرې یې ولایت ته واستول. والي ته یې پر مخابره وویل چې سپین ږیري او ملکان د عبدالحق د پلټنې تر تمامېدو مصروف وساته.

دا وخت د لوګر امنیه قومندان او د استخباراتو رییس ته دا خبر هم راغی چې د ننګرهار د استخباراتو ځانګړی کنډک هم د عبدالحق د مراقبت لپاره د حصارک ولسوالۍ ته رارسېدلی.

مخبت خېل ملګري امنیه قوماندان مولوي بازمحمد ته وویل: زه لږ د علي شېرو کنډو سر ته خېژم چې پر مخابره جلال اباد نه حصارک ته له راغلي خصوصي کنډک سره اړیکه ټینګه کړم چې په ګډه عملیات وکړو.

مخبت له څلورو ملګرو سره علي شېرو کنډو ته مخامخ د یو بل غره سر ته وخوت، چې د علي شېرو له کنډوه د حصارک لور ته تللې لار ورباندې سپره ده. حصارک ته د راغلې کنډک سره یې اړیکه ونیوله. هغوی د عبدالحق د راتګ موضوع تایید کړه، خو د اوسېدلو ځای یې د سپین جومات او حاجي زرغون کلی وښود، چې عبدالحق  ورته یوه ورځ وړاندې راغلی و.

دا وخت مخبت یو کس ولید چې د حصارک له لوري ازرې ته پر دې لار تنها پلی را روان دی. دا د حاجي فضل الرحمن د کور سړی و چې متبرک کمیس او خولۍ ورکړه ایښې وه. مخبت لومړی هغه نه پېژاند، ځکه یې پرې پټکه وکړه چې سم حال ووایه عبدالحق چېرې دی؟ سړي په وارخطایۍ ورته وویل ما ته څه مه وایاست حال درته وایم.

سړي وویل: عبدالحق د حصارک د غوریزي کلي خوا کې د حاجي دوران کور کې دی. خړه لونګۍ یې پر سر کړې او سپینې جامې یې په تن دي. پرون یې

د چا په واسطه د جلال اباد ښار کې د حاجي داود په بارګين کې په درې لکه پنځلس زره کالدارې يوه ايس ايس ار ډاټسن رانيوله.

اوس خبر شوی چې جلال اباد نه وسله‌وال طالبان ورپسې راغلي دي. همدا اوس يې حاجي دوران ته وويل چې يو آس راپيدا کړه او پر غرنۍ لاره مې له دې ځايه وباسه، ځکه چې طالبان راپسې دي.

مخبت وايي؛ داسې معلومېده چې د جلال اباد له خوا د ځانګړې کنډک تر څنګ زموږ له راتګه هم عبدالحق څه ناڅه خبر شوی و چې ښايي حاجي زمان غمشريک به له موږ نه تر تېرېدو وروسته په سټلايټ تلفون حال ورکړی وي، ځکه خو يې نور ځان په محاصره کې احساساوه.

مخبت وايي دغه لاروی مو په دې قانع کړ چې موږ سره ملګری شي او د دوران کور راته وښيي. دا وخت تقريبا ماسپښين څه باندې درې بجې وې. د استخباراتو رييس محمد انشا مخبت پر خپل ملګري امنيه قومندان بازمحمد په مخابره کې چيغې وهلي چې امنيه قومندان له پاتې وسله‌والو سره ځان را ورسوي، خو هغه چې  د مخبط په وينا مزاجا يو څه بې غوره سړی و، مخابرې ته متوجه نه و، جواب يې پر وخت ورنه کړ.

بالاخره مخبت له همدې څلورو کسو سره شاوخوا د مازيګر په څلورو بجو د علي شېرو د کنډو لاندې د دوران کور ته نږدې کمين ونيو، چې د عبدالحق د تېښتې احتمالي لار وه.

د شپې تر يوې بجې همدې څو تنو کمين نيولی و. امريکايي چورلکې او کشفي الوتکو شور جوړ کړی و، داسې ښکارېده چې هغوی د عبدالحق د ژغورلو لپاره راغلي وي. هغه څارګره الوتکه چې طالبان يې بونګنه بولې بيا بيا راتله. مخبت وايي هغه وخت موږ له بونګنې سره نابلده وو، ځکه مو پاملرنه هم

نه ورته کوله. د شپې شا وخوا یوه بجه امنیه قومندان بازمحمد له پاتې وسله‌والو سره راورسېد او کمین هر لور ته پراخ شو.

د استخباراتو مشر خپل ځو تنه د غورېزې کلي هغې لار کې کېنول چې د دوران کور ته تللې وه. د شپې یو ملګری حافظ عبدالرشید خوب یوړ، چې بیدار شو، ملګرو ته یې وویل چې خوب مې لیده باز (ګوربت) مو نیولی وي، خو ښځه بازه وي.

د شپې نږدې درې بجې د غورېزې پر لار ناستو کمین‌نیوونکو عبدالحق په داسې حال کې ونیو چې پر اس سپور و. د اس پړی یې بل کس نیولی و. غوښتل یې چې له ناهموارې سیمې ووځي او بیا امریکایي چورلکې ته د پورته کېدو لپاره ځان چمتو کړي. هغه په همدې وخت کې هم له امریکایي چورلکو سره په تماس کې و. عبدالحق سره دا وخت یواځې ځو تنه ونیول شول، نور په تېښته بریالي شول، چې ویل کیږي په تښتېدونکو کې حاجي دوران هم و او یو درجن هغه کسان هم وو چې عبدالحق یې پر ملاوو د چانټو په ډول له ډالرو نه ډکې همیانۍ ورتړلې وې. د تېښتې پر مهال چې د چا مخ لویدیځ ته و، لوېدیځ ته ورک شول او د چا چې مخ شمال یا ختیځ ته و، پر همغه مخه لاړل او د ډالرو له بنډلو سره یې تر ننه ځانونه ورک کړل.

تر دې ځو شېبې وړاندې چې عبدالحق نیول کیږي، د دوران د کور له خوا دوه ډاټسنې رارواني دي او بازمحمد په دې تمه دی چې دا به عبدالحق وي. مخې ته ورته دریږي خو چې رانږدې کیږي نو د یوې ډاټسن مالک طالب قوماندان عبدالرحمن دی او د بلې ډاټسنې مالک په کابل کې د استخباراتو ریاست کارمند امین وردګ دی. بازمحمد سمدستي د هغوی په موضوع پوهیږي چې له عبدالحق سره اړیکه لري، بازمحمد هغوی ته بد رد وایي او نور یې پرېږدي.

له عبدالحق سره په نیول شویو کسانو کې د هغه مرستیال د لوګر د څرخ اوسېدونکی د ډاکتر نجیب د واکمنۍ ډګروال حامد؛ د عبدالحق د پوځي چارو مسئول قوماندان شاولي او د عبدالحق ډرایور عزت الله و. له دوی سره د الوتکو د رهنمایۍ غمی او سټلایټ تلفون هم و. طالبانو الیکترونیکي وسایل ورنه بېل کړل. هغوی یې پلي روان کړل. له یو څه پیاده مزل وروسته یې ډاټسن ته ورسول. دا وخت امریکایي چورلکو او بونګنو الوتکو شور جوړ کړی و، خو حالت یې ځان ته سم نه شوای معلومولای. دوی فکر کاوه چې د ننګرهار له خوا راغلي کنډک عبدالحق نیولی یا محاصره کړی دی، ځکه یې د ننګرهار د کنډک ډاټسنې بمبار کړي چې یوه ډاټسنه وویشتل شوه او څوکسان په کې ژوبل شول، نورې ورنه وژغورل شوې.

کله چې د غورېزې د لارې کمین نیوونکو عبدالحق، امنیه قوماندان او د استخباراتو مشر ته را رسول، دا وخت سهار شو. امنیه قومندان سمدستي عبدالحق په خپله ډاټسن کې د لوګر مرکز ته روان کړ. مخبت د حاجي دوران د کور د تلاشۍ په موخه پاتې شو چې څه وخت وروسته والي پر مخابره مخبت ته وویل، ورپسې را روان شه! بازمحمد بې غوره دی، سړی ورنه خلاص نه شي.

عبدالحق پر لار امنیه قوماندان ته بیا بیا ویل ما کابل ته ستاسې مشرانو ته ورسوه! بازمحمد هغوی په ډېر درناوي د موټر سیټ کې کېنولي، صمیمانه مجلس ورسره کوي او هغوی ته یې د خوراک لپاره آنار مات کړی.

مخبت او بازمحمد دواړه وایي چې له عبدالحق سره یې هېڅ داسې لیست او اسناد نه دي موندلي چې د طالب چارواکو اړیکه پرې ثابته شي چې له بده مرغه په دې اړه څه قصدي تبلیغات شوي دي.

**د دوی بل ملګري د عبدالحق وراره او د حاجي دین محمد زوی عزت الله له دې ځای سره خوا کې غونډیو کې د طالبانو د یوې بلې قطعي له خوا د الوتکو له رهنمایي کوونکي غمي سره نیول شوی و. دغه قطعه د لوګر د خروار د طالبانو وه، دوي د دین محمد زوی له اجازې او مشورې پرته په خپل سر وژلی و.**

**کله چې عبدالحق د لوګر مرکز ته ورسول شو. له کابل نه د داخله وزارت له خوا والي ته امر وشو، چې عبدالحق کابل ته راولیږئ.**

**امنیه قوماندان د والي په امر عبدالحق کابل ته روان کړ، کابل ښار ته چې غرمه مهال نږدې شول، له بن ساره، قلچه او شهدای صالحین سره پر عمومي سړک ورته مخ ته د داخله وزارت پیک اپ موټر راغی. د داخله وزارت، یو تن چارواکی ملا ظاهر ورنه راکوز شو او د امنیه قوماندان موټر یې ودراوه او د ملا محمد عمر یو لیکلی فرمان یې وربښکاره کړ چې د مشر له خولې په ساده الفاظو لیکل شوی و: دغه وطن فروش او خاین کابل ته تر رسېدو وړاندې وغځوئ او د کابل ښار یې په وینو مه پلیتوئ.**

**دواړه موټره بېرته شا ته راغبرګ شول او د سنګ نوشتې له عمومي سړک نه چې د ریشخورو فرقې ته لار تللې ده، پر دغه سړک یې عبدالحق او ډګروال حامد راکوز کړل او سترګې پرې وتړلې. بازمحمد حیران و چې څه وکړي. ملا ظاهر عبدالحق او ډګروال حامد له سړک نه یوه لور ته د وژلو په نیت روان کړ. عبدالحق ډېرې لویې لویې کریغي او بغارې وکړې. دواړه یې په یوه وړه شېبه کې وویشتل چې کله له هغوی نه راغبرګ شو. پر ډرایور عزت الله او قوماندان شاولي یې د ټوپک شپېلۍ ورواړوله. امنیه قومندان یې پر وسله غوټه کړه: چې مشر خو یوازې د عبدالحق د وژلو امرکړی و، دا نور ولې وژنې؟**

**په دې کش وګیر کې د بازمحمد لاس هم یو څه وسوځېد، خو ډرایور عزت الله او شاولي یې ترې وژغورل چې بیا د لوګر په محبس کې ول او د ولایت له سقوطه وروسته خلاص شول.**

**مابنام د امریکاغږ راډیو خبر ورکړ چې تېره شپه امریکایي چورلکې د سی آی اې د یوه مهم مامور عبدالحق په ژغورلو کې ناکامه شوې.**[1]

**له عبدالحق نه وروسته د حامد کرزي وار و**

**حامد خان کرزی د عبدالاحد خان کرزي زوی دی. عبدالاحد خان کرزی د ۱۹۹۹ د جولای پر څوارلسمه چې تازه د امریکا له سفره راستون شوی و. د پاکستان د کوټې ښار ستیلایټ ټاون له یوه جومات سره ناڅرګندو وسلهوالو وواژه.**

**د کرزي پلار په کندهار کې یو مخور خان و. د ظاهرشاه په واکمنۍ کې د ولسي جرګې مرستیال پاتې شوی و. هغه د محمد ظاهر شاه له کلکو پلویانو څخه و. د عبدالاحد خان د کورنۍ څه غړي له شوروي یرغله وروسته په امریکا کې مېشت شول او د امریکا د متحده ایالاتو تابعیت یې ترلاسه کړ. هغوی د امریکا له څارګرو ادارو سره د افغانستان په برخه کې کار کاوه. د هغوی ډېری ځوانانو ته هلته روزنه ورکول شوه چې په دې کې حامد کرزی هم و چې د افغان جهاد پر مهال د سي آی اې یو باوري مامور و او د شوروي ضد جګړه کې یې له مجاهدینو سره نږدې کار وکړ.**

**هغه د ستېنګر توغندیو د وېش کنټرولوونکی هم ګڼل کېده. حامد کرزي د خپلې قبیلې په مشرتوب کې د پلار ځای ناستی شو. د کرزي د ځینې دوستانو او خپلوانو له قوله: کرزي له سیاسته سربېره د شپې اوږدې ناستې او ګپ شپ شوق درلود. د نشه لرونکو تابلېټونو د خوړلو ترڅنګ د چرسو د نشې خبرې هم پسې کېدې.**

---

[1] دا کیسه د لوګر د استخباراتو د رییس مولوي مخبت، امنیه قومندان مولوي بازمحمد، د ننګرهار د استخباراتو د چارواکو او د طالبانو دهغه وخت د پېښور د چارواکو له خولې لیکل شوې ده

هغه د نورو ورونو خلاف نږدې تر څلور څلویښت کلنۍ پورې بې واده و. هغه وخت چې ما کرزی نه پېژاند، په اړه یې راته د امریکا غږ د پښتو څانګې مشرې سپوږمۍ میوندۍ ویلي و چې حامد کرزی د سي آی اې د سازمان مخکښ غړی دی. د هغه او خلیلزاد موټر په واشنګټن کې د سي آی اې د دفترونو په دروازو کې نه درول کیږي!

د یو زیات شمېر کتونکو په اند د امریکا د یرغلیزې جنګي ستراتیژۍ په فهرست کې عبدالحق له کرزي وړاندې و، که مړ نه وای ښایي د لومړۍ لنډمهالې ادارې مشر به عبدالحق وای.

د طالبانو د رژیم او امریکا ترمینځ د لانجو تر ولاړېدو وړاندې کرزي او پلار یې له طالب مشرانو سره نږدې اړیکې لرلې. له هغه وروسته چې د رباني د حکومت پر وخت کرزی د خارجه چارو مرستیال وزیر و او بیا د مسعود د سړیو له خوا په کابل کې تر شکنجې او ډېولو وروسته مات سر او شلیدلی ګرېوان جلال اباد ته په تېښته بریالی شوی و، کرزي له همدې امله مسعود سره بغض درلود، خو کله چې سي آی اې د مسعود نېغه مرسته پیل کړه نو کرزي ته له مسعود سره د نږدې کار هدایت وشو. دلته کرزي یواځې هغه څه کولای شول چې سي آی اې ورته ویل. نه د ده خپله خوښه او انتخاب.

د طالبانو له خوا د کابل له نیولو وروسته کرزي غوښتل طالبانو سره نږدې کار وکړي. د هغه پلار به ډېر ځله په کندهار کې د طالبانو په مېلمستونونو کې لیدل کېده. هغه د کندهار له لومړي والي ملا محمدحسن، د هرات والي ملا یار محمد، د طالبانو لومړني ویاند ملا خیرالله خیرخوا، مولوي احسان الله احسان او د طالبانو لومړي خارجه وزیر ملا محمد غوث سره نږدې اړیکې لرلې.

کله چې درېو هېوادونو د طالبانو امارت د افغانستان د حکومت په توګه په رسمیت وپېژاند. طالبان په نړۍ کې د دیپلوماتیکو اړیکو د پراختیا په لټه کې شول او په دې کې د ملګرو ملتو نو په اداره کې د افغانستان استازولي هم

اړینه وه. د دې لپاره حامد کرزي ځان را وړاندې کړ، خو طالبانو ته جوته شوه چې دا کار د سي آی اې پلان و. د سعودي د استخباراتو چارواکو زموږ یوه هیئت ته هم دا مشوره ورکړې وه چې حامد کرزی م م ته د استازي په توګه غوره کړي چې ښايي هغوی ته هم دا خبره امریکایانو کړې وي. له ملا عبدالجلیل نه مې په دې اړه وپوښتل چې هغه وخت مرستیال خارجه وزیر و، هغه وویل ما او ملا غوث (خارجه وزیر) ملا صیب ته دا وړاندیز وکړ، خو ملا صیب په ساده ټکو کې راته وویل چې دا د امریکا خپل خلک دي، زموږ به څه استازیتوب وکړي.

عبدالحق د ننګرهار، لوګر او د هېواد مرکز کابل لپاره د طالبانو پر ضد د یوه ستر قوموندان په توګه غوره شوی و، چې د امریکا د هوایي برید په ملاتړ به یې د پلیو ځواکونو رول ادا کاوه، چې د ننګرهار له نیولو سره د کونړ او لغمان سرنوشت هم تړلی و. دا کار عبدالحق ته سپارل شوی و او د کندهار، روزګان او هلمند د نیولو کار حامد کرزي ته سپارل شوی و. چې د ګل اغا شیرزي، جان محمد خان او د هلمند د غفار اخنزاده د کورنۍ په ګډون د کندهار، هلمند او روزګان ډېر زاړه قوموندانان ورسره د همکارۍ لپاره په تماس کې وو.

حامد کرزی له یوولسم سپتمبر نه وروسته په پاکستان کې د سي آی اي له مرکز سره په لوی کندهار کې د طالبانو پرضد د جنګې پلان پر جوړولو بوخت و؛ چې پر افغانستان د امریکا یرغل پیل شو. څو ورځې وروسته کله چې د سي آی اي لخوا داخل ته د تلو امر ورته وشو، نو له پاکستانه د سي آی اي له مزکز او د امریکا له هوایي ځواک سره د منظمې اړیکې پرمټ د هیواد داخل ته روان شو.

په دې اطمنان یې له کوټې ښاره د هېواد داخل ته سفر پیل کړ چې د خطر پر وخت به یې امریکایي الوتکې ژغوري. هغه اول د روزګان مرکز ته نژدې د

"سرمرغاب" دښته کې ليدل شوی و. د ولايت د قوماندانۍ او استخباراتو له خوا تعقيب شو. بالاخره د نومبر په دوهمه د روزګان له مرکز سره د درجې غره کې د سميز مشر درمان شاه له زوی لعل محمد سره و، چې طالبانو بريد پرې وکړ. دا وخت له ده سره وسله‌وال ملاتړي هم ول. په بريد کې له دوي هغه ۶۰۰ ميله وسله طالبانو ونيوله چې په دې غره کې د امريکايي الوتکو لخوا ورته غورځول شوې وه. کرزی له بريد ه روغ ووت خو د تېښتې پر حال د طالبانو تر تعقيب لاندې و. پر بل سبا يعنې د نومبر په څلورمه کرزی له يوې ډلې پلويانو سره امريکايي چورلکو د پاکستان جيکب اباد اډې ته نقل کړ. تر دوو اونيو د پاکستان په خاوره کې د سي آی اې په پوځي بيس کې اوسېده او له هغه ځايه به يې رسنيو ته د سټلايټ تلفون له لارې ويل چې په روزګان کې يم. هغه له دوو اونيو وروسته د سي آی اې خاص کنډک سره له جيکب اباده چورلکه کې د اروزګان دهراوت ولسوالۍ ته بېرته راغی او د "ده‌جوز" په غونډيو کې يې واړول. دا وخت هرات او کابل د طالبانو له ولکې وتلي او د طالبانو جنګي ماشين کافي کمزوری و.

له کرزي سره د ترينکوټ د مرکز شاوخوا خلکو کې روزي خان (د ګرماو مانده)، خيروجان (د ديک)، محمدجان اخندزاده (د سجاول)، محمدهاشم خان (د سجاول)، مولوي لعل محمد (د پای ناوې)، معلم رحمت الله (د خانقې)، خطيب اخندزاده (د کوټوال) او معلم عبدالقادر ملګري ول.

روزي خان يې جنګي قوماندان و. ملا تور يا مولوي تور هم د هغه جنګي سړی و خو د مقاومت او جنګ روحيه يوه هم نه لرله، فقط ځانونه يې له طالبانو ساتل.

د ترينکوټ ښار له سقوطه وروسته له کندهاره يو کاروان د کرزي د نيولو لپاره وخوځېد خو د امريکايي الوتکو تر بمبار لاندې يې درانه تلفات وليدل او هدف

ته په رسېدو بريالي نه شول. له هغه وروسته کرزی د کندهار شاولي کوټ ته راغی، چې بيا تر هغو په شاولي کوټ کې و چې د کندهار تر سقوط لږ وړاندې د طالبانو يوه هيئت ورسره وليدل او ملا نقيب ته د کندهار پر سپارلو يې موافقه ورسره وکړه.

کندهار سقوط وکړ او کرزی د بون د پرېکړې په نتيجه کې د نوې موقتې ادارې د مشر په توګه کابل ته په امريکايي چورلکو کې د سي آی اې له خاص کنډک سره انتقال کړای شو.

يرغلګرو او دوستم زرګونه تسليم شوي طالبان قتل عام کړل

کله چې د هرات له سقوطه وروسته په کابل کې هم جنګي خطونه ټينګ نه شول، نو هغه اميد هم ورسره ختم شو چې د زور له لارې به د باميانو لار بېرته پرانيستل شي او په کندوز او شمال کې څه کم لس زره محاصره طالبانو ته به بيرته لار خلاصه شي.

دغه طالبان له يوې خوا تر سخت هوايي بمبار لاندې وو، له بلې خوا ټولې لارې ورباندې بندې شوې او دا محاصره وار په وار تنګېده. د ټلوالې جنګياليو ته د امريکا له کشفي الوتکو نه کوردينات هم ورکول کېدل او د طالبانو مرکزونه هم دقيق په نښه کېدل چې له سخت بمبار وروسته به طالبان ښه وځپل شول بيا به هغه ځای ته د ټلوالې جنګيالي ورمخ ته کېدل.

دوستم او د ټلوالې له قومندان داود سره اړيکې رواني وې. دواړو خواوو د تسليمۍ په صورت کې د سر د امان او ساتنې ډاډ ورکاوه. مشرتابه د دغو محاصره طالبانو ژوند ته اوليت ورکاوه ځکه چې جګړه ناشوني وې نو د دغو جنګياليو شخصي حق دا دی چې د خپلې کورنۍ، اولادونو او مور او پلار لپاره خو ژوندي پاتې شي.

طالبانو باور درلود چې که دغه کسان تسليم شي نو د نړۍوالو قوانينو، بشري ادارو او امريکايانو د نظارت او مستقيمې مداخلې په وجه بنايي ونه وژل شي، ځکه پر دغه معامله دا ټول جهتونه وار د مخه خبر او متوجه وو. په اسلام اباد کې نړۍوالو ادارو سره هم دا خبره شريکه شوې او هغوی ته ابلاغ شوې وه.

دلته کندهار کې خبره د دې کار په جواز او نه جواز کې روانه وه. ستر مفتي مولوي عبدالعلي صيب سره خبره شريکه شوه هغه وويل که د تسليمېدو په صورت کې د هغوی سالميت يقيني وي نو تسلېمدل ورته روا دي، خو هلته کندوز کې ډېرو مشرانو ته دا خبره ناروا ښکارېده چې د همدې لپاره هغوی سره مولوي عبدالعلي صيب پر سټلايټ تلفون وغږول شو. وروسته هغوی د تسليمېدو په اقدام لاس پورې کړ خو کومو قومانداناتو چې دا فيصله نه منله هغوی ځانونه تري تم کړل چې په هغوی کې بارزه څېره شهيد ملا داد الله و.

ملا داد الله د بلخ په مربوطاتو کې د ځينو متعلقينو په همکاري په يو کور کې پټ شو او له بي بي سي سره يې مرکه کې وويل چې زه همدا اوس کندهار ته ورسېدم.

په دې سره د دوستم او حزب وحدت يقين وشو چې داد الله له سيمې وتلی، نو ځکه يې د هغه پلټنه پرېښوده چې دا د ملاداد الله يو کاميابه تاکتيک و. بيا چې کله د طالبانو واکمني مکمله ونړېده، داد الله د سيمې د يوه قاچاقبر په مرسته چې دی يې نه پېژاند. ځان لومړی خوست او بيا وزيرستان ته رسولی و.

تسليم شوي طلبان په دستوري ډول د دوستم او بهرني استخباراتو ترمينځ ووېشل شول. مشران لکه د بلخ والي او تنظيمه رييس ملا نور الله نوري، د جګړې

عمومي قوماندان ملا محمد فاضل او څو نور قوماندنان يې له څه مودې وروسته امريکايانو ته وسپارل چې بيا تر تبادلې پورې ګوانتانامو کې وو.

نور يې په څو مرحلو کې قتل عام کړل. وروسته په تفتيش کې يې چې کوم پاتې قوماندنان پېژندل هغه يې هم امريکايي قواو ته وسپارل. په دې قتل عام کې له تسليمېدو وروسته هم بيا بيا دغه اسيران بمبار شول او بيا چې د جنګي قلعه په محبس کې د بنديانو د مسلسلو وژلو نه بنديان په خپله قتل عام پوه شول او په دفاع يې لاس پورې کړ نو بيا خو امريکايي الوتکو ته نوره هم بهانه جوړه شوه او د بمبار له لارې يې د دې ستر محبس ټول بنديان قتل عام کړل.

په بله مرحله کې زرګونه طالبان په کانتينرونو کې واچول شول او دروازې يې وتړل شوې چې کله به له ډېرې تندې او د ساه بندېدو له امله د هغوی چيغې او زوږ زيات شو نو پر کانتينر به مرمۍ فاير شوې چې دې کې به څوک ووژل شو او پاتې کسانو ته به د اکسيجن سوري پيدا شول.

څو ژوندي پاتي شويو بنديانو همدغه کيسه داسې کړې وه چې کانتينرونو کې به ډېرو ملګرو د تنفس بندۍ له امله سا ورکوله او پاتې کسان به له تندې بې هوشه سول او بيا به يې يوه دښته کې وغورځول چې څوک به ژوندی پاتې و هغوی به يې په ګوليو پر سر سر وويشتل.

څه وخت وروسته د نړۍ ځينې ادارو په دې اړه رسنيزي چيغې وکړې، اعلاميې يې هم خپرې کړې خو څرنګه چې دوستم د امريکايي يرغل وفادار عسکر و نو په دې کار نور هم تقدير شو.

د کرزي واکمنۍ نه څو مياشتي وروسته مزار ته يو هيئت لاړ چې په دې هيئت کې د کرزي مشاور د زابل مولوي صديق الله هم و. هغه داسې کيسه کوله چې موږ ته دا هر څه تفصيلي معلوم شول، خو د هيئت بل مهم غړي عبدالباري

څهاني (ليکوال او شاعر) وويل موږ باید دا خبره پټه کړو ځکه په دې -د هغه په وينا- د جلالت مآب کرزي صيب حثيت ته تاوان رسيږي!

**په توره بوړه کې د القاعده د مشرانو برخليک**

د کابل له سقوطه وروسته ننګرهار او ورسره تړليو ولايتونو کې حالات نور له کنتروله وتونکي وو. د ننګرهار والي او د مشرقي زون تنظيمه رييس چې د وزيرانو شورا مرستيال هم و، د لغمان کابل تر مينځ دوه ځايه د فاعي کرښه جوړه کړه. يو د سروبي لغمان ترمينځ وربښمين تنګي سره، بله سرخکانو سره او دربيمه د جلال اباد کابل پر لويه لار. د ننګرها پوځي چارواکي له ښاره ووتل يواځې د امنيه قوماندانی، د فرقې ځينې ځايي قوماندانان او يوه وړه قطعه وسلهوال له مولوي عبدالکبير سره پاتې ول. مولوي عبدالکبير ته د وزيرانو شورى بل مرستيال ملا محمد حسن مشوره ورکړه چې د کابل له سقوط وروسته په ننګرهار کې مقاومت زيات وخت نه شي کېدای، ځکه د مشرقي شورا د قوماندانانو او امريکا د هوايي بريدونو په وړاندې جګړه ښايي له ځاني تلفاتو پرته بله لاس ته راوړنه ونه لري.

له دې وروسته مولوي عبدالکبير ملا محمد عمر ته حال واستاوه چې دا وخت ورسره نېغه رابطه نه شوای کېدلای. له هغه لوري نه هم له ښاره د وتلو ورته وويل شول. والي مولوي عبدالکبير خپل معتمد ځايي قوماندان معلم اول ګل چې له مولوي محمد يونس خالص سره يې پخوانۍ جهادي اړيکه وه له يو دوه نورو اعتمادي کسانو سره راوغوښتل او ګډه مشوره يې په دې راغله چې مولوي خالص د مشرقي زون تنظيمه ريس ونومويي. زوي انوار الحق مجاهد به د جلال اباد اداره سنبال کړي او معلم اول ګل به پوځي چارې لاس کې واخلي. په دې سره به د طالبانو له وتلو وروسته اداره له طالبانو جدا ونومول شي.

مولوي عبدالکبیر اسامه او ایمن الظواهري ته د مرحوم انجینر محمود د یوه همکار په واسطه حال واستاوه چې هسې نه ننګرهار کې ستاسې پاتې کېدل درته ستونزې جوړې نه کړي، نو تاسو له موږ سره د ازرې له لارې د خوست او پکتیا پلو ولاړ شئ، خو هغوی وویل چې موږ مشوره کړې په توره بوړه کې پاتې کیږو. مولوي عبدالکبیر ورته ځواب کې حال ور واستاوه چې اول خو موږ سره لاړ شئ او که خامخا پاتې کیږي نو بیا تر توره بوړه د خوګیانو د وزیرو تنګی درته ښه دی ځکه چې دا هم د ارزي او حصارک لور ته لار لري، هم د ځاځیو لور ته له پکتیارسره لار لري او هم د پاکستان پاړه‌چنار پلو اوښتلی شوای، خو هغوی بیا هم توره بوړه غوره کړه.

دا وخت مولوي عبدالکبیر ته د دفاع وزیر ملا عبیدالله – چې دا وخت لوګرکې و- حال راواستاوه چې له ښاره ژر ووځئ او پام چې د لوګر پلو پر حصارک رانه شئ، ځکه چې لاره درته نیول شوې ده.

مولوي عبدالکبیر مجبوره شو چې د پاکستان سرحد سره پر غرنۍ لاره له خپلو لسګونو ملګرو سره دوه ورځې مزل وکړي. له دوو ورځو مزله وروسته هغوی خوست ته ځانونه ورسول او بیا مولوي عبدالکبیر له یو څو تنو سره د پکتیا د ځدراڼو سیمې ته لاړ. کله چې دوه ورځې وروسته مشرقي شورا ننګرهار ته رادننه شوه نو انوار الحق مجاهد یې د ولایت له اداري لېږې کړ. د اطلاعاتو کلتور رئیس یې وټاکه. د حاجي قدیر په مشرۍ مشرقي شورا پر ولایت حاکمه شوه. ورسره لغمان او کونړ هم د سیمه‌ییزو قوماندانانو په ولکه کې راغلل.

حاجي قدیر مولوي محمد یونس خالص -چې دا وخت د بدني ضعف له امله د خبرو هم نه و د جلال اباد قصر شاهي ماڼۍ کې ځان سره په یوه غونډه کې کېناوه چې وښيي مولوي خالص هم د ده ملاتړ کوي- خو مولوی خالص او زوي

يې په جلال اباد کې د لنډ وخت تاکتيکي پاتې کېدو وروسته مهاجر شول او د امريکايي يرغل په خلاف يې د جهاد اعلان وکړ.

معلم اول ګل چې د طالبانو د واکمنۍ پر مهال هم د څلورمې لوا قوماندان و او زغرواله قوه يې سمبالوله، د طالبانو له وتلو وروسته هم د مولوي محمد يونس خالص او طالب چارواکو په مشوره پر خپله دغه دنده پاتي شو او مشرقي شورا هم د زاړه شناخت په وجه هغه لېرې نه کړ.

کله چې پر توره بوړه د امريکايي الوتکو بمبار روان و او امريکايي مقاماتو داخلي قوماندانانو ته د ځمکنيو عملياتو امر وکړ، دا وخت معلم اول ګل شيخ اسامه ته حال واستاوه چې زه له خپلو قواوو سره تورې بوړې ته درځم. پر شاوخوا غرونو خطايي ډزې کوم چې د نورو امريکا پلوه قوماندانانو تر راتګه وړاندې تاسو ته د وتلو لار برابره کړم. شيخ دا خبره ومنله خو ځينې ملګري يې بيا هم بدګومانه وو.

معلم اول ګل همداسې وکړل او په دې سره يو شمېر نورو مخلصينو او معلم اول ګل دعربو مهاجرو کورنۍ له سيمې ويستلې.د مولوي محمد يونس خالص مرحوم کور د عربو د ميرمنو اوماشومانو لپاره پنا ګاه وه، د هغه کورنۍ د دغو ميلمنو تر اخيره بې ساري مرسته وکړه او په محفوظه توګه يې تر خپلو منزلونه ورسول، د شيخ اسامه او ډاکټر ايمن ظواهري لپاره يې داسې ترتيب جوړ کړ چې د حاجي عبدالاحد په نوم يوه مجاهد اسامه او ظواهري له تورې بوړې د ننګرهار تر وزيرو ورسول چې لار کې يو ځل د ځايي ټوپکيانو له کمينه په لږ فاصله کې بچ شول. له وزيرو ورسته د ننګرهار تر ښاره معلم اول ګل هغوی ځان سره بوتلل.

دا وخت د خارجي او داخلي منابعو ټوله توجه د شیخ اسامه او ظواهري لټون ته وه. د مشرقي شورا په قوماندانانو کې څو مهمو کسانو لکه حضرت علي او زمان غمشریک پر معلم اول پوره شک کاوه. تر دې وړاندې چې معلم اول ګل دغه دوه عرب مشران کوم لور ته وباسي، حضرت علي د قوماندان معلم اول ګل لوا ته راځي او هغه مخاطب کوي چې دا خلک تا سره دي او امریکا یې خامخا غواړي او ښه به دا وي چې تسلیم یې کړې خو اول ګل په داسې حال کې چې په څو متره فاصله کې یې د ډاټسن په سیټ کې دواړه شیخان کېنولي، حضرت علي ته ناخبري ښيي او انکار کوي.

دا وخت د حضرت علي یو تن وسله‌وال دغه موټر ته په ځیر ځیر ګوري. معلم اول ګل فیصله کړې چې که حضرت علي د موټر پر لور ورغی یا یې د موټر د لټون هڅه وکړه نو دی به یې ځای پر ځای ضربه کوي، خو بالاخره د قوماندان حضرت علي شک خیژي او له لوا وځي. له دې وروسته معلم اول ګل دواړه شیخان په خپل موټر کې د بهسودو پر پله د کونړ لور ته اړوي او هلته بیا نور مخلص قوماندانان دواړه شیخان غرنیو سیمو ته رسوي او په دې ډول دواړه عرب مشران د دښمن له منګولو ژغورل کیږي.

### د کندهار د سقوط وروستۍ ګړۍ او له ښاره د ملا محمد عمر وتل

مشر یو څه وخت د نړدې او کلیدي چارواکو په تاکید له مواصلاتي وسایلو کار نه اخیست، خو کله چې په شمال کې ماتې ګډه شوه، مشر په مخابره وینا وکړه او تر وروستۍ سلګۍ د مقاومت تلقین یې ټولو جنګي کربښو ته ورکړ. بیا یې په رپیټر مخابره ځان حاضر کړ. مرکزي مخابرې د ټول هېواد په کچه هغه ته معلومات ورکول او هغه د مقاومت او دفاع لپاره تازه دمه تشکیلات کول. اخیر چې د کابل ښار هم طالبانو تخلیه کړ. د لوی کندهار لپاره یې ځینې قوماندان غوره کړل چې د دې سیمې دفاع وکړي. هغه قوماندانانو او مشرانو چې د هېواد

په نورو برخو کې يې هر يو سلګونه جنګيالي د امريکا په بمبارۍ کې له لاسه ورکړي وو، د خپلې تجربې له مخې ويل: چې ښار او په ښارونو حکومت کول او ورسره دفاع وجګړه نوره ناشونې ده، ځکه الوتکې معلوم مرکز او دفترونه په اسانۍ په نښه کولای شي.

په دې جر و بحث کې ځينو د ملا محمد عمر خبره تاييدوله او ځينو سترو قوماندانانو د مقاومت لپاره نوې طريقه يعنې د حکومت او ښارونو پرېښودل غوره ګڼل. بل پلو د قومي ملېشو حوصله لوړېدله. کابل، شمال او هرات سقوط کړی و. پر طالبانو سخت بمبار د امريکا ډېر بې زړه پلويان هم نور له طالبانو سره جګړې ته زړور کړل. بالاخره د قوماندانانو متزلزل دريځ او له مخالفينو سره د ځينو رابطې مشر دې ته اړ کړ چې دوی ته ووايي تاسو چې د ځان په حق کې هره پرېکړه کوئ، زه ستاسې خپل اختيار تاسو ته سپارم، خو کوم خلک چې تر اخيره د ښار مينځ کې جګړه کوي هغوی دې له ما سره وي. زه تر وروستۍ سلګۍ جنګېږم يعنې د جنګ پرېښودو موجه او شرعي دليل نه لرم.

په هغو قوماندانانو کې چې ملا محمد عمر سره يې تر وروستۍ سلګۍ د ښار دننه د جګړې او دفاع فيصله وکړه يوه هم د شمال د کرښې نامتو قوماندان ملا عبدالرزاق نافذ و چې د اروزګان اوسېدونکی و.

ملا عبدالرزاق نافذ د تخار او مزار په فاتحانو کې شمارل کېده اوسپنيز قوماندان و او له دې سره سره بې رحمه هم نه و. عاجز او خاکسار سړی و، له بيت المال سره تر دې کچې محتاط و چې کله د کندهار له پرېښودو وروسته ملا محمد عمر هغه ته يوه لويه اندازه پيسې د دې لپاره ورکړې چې د خپل شخصي مصارفو په توګه او د بيا پيلېدونکې چريکي جګړې لپاره به يې مصروفوي، نو هغه له دې پيسو نه يوه روپۍ هم په شخصي مصارفو کې نه

لګوله. ان چې کور کې يې د خوراک څه نه وو، د کلي څو مشرانو د هغه پلار ته څه پیسې سره ټولې کړې چې د کور ژوند ورباندې روان کړي.

هغه ته په جګړو کې د زیاتو تکالیفو او بې خوبیو له امله د اعصابو تکلیف ور پیدا شوی و. د طالبانو د حکومت له سقوطه وروسته په پټه کراچۍ ته د تداوۍ لپاره لاړ. هلته د مالیې پخواني وزیر اغا جان معتصم ورباندې تداوي پیل کړه. ډاکټر ورته وویل چې څو هفتې دې ارام او استراحت وکړي. معتصم هغه یوه ورځ یوه قیمتي ځای ته د خوراک لپاره بېولی و، هغه چې دا مصرف لیدلی و نو معتصم ته یې بد رد ویلي وو، تداوي یې منځ کې پرېښودہ او روزګان ته له رسیدو سره سم یې په مقاومت پیل وکړ، له څو میاشتو جګړو وروسته دامریکایي الوتکو په بمبار کې شهید شو.

د کندهار د سقوط پر مهال له عبدالرزاق نافذ او څو نورو قوماندانانو سره دا فکر پیدا شو چې که نور خلک جګړه پرېږدي او موږ د ښار مینځ کې پاتې یو، هسې نه امریکایان الوتکو نه څه داسې ترتیب جوړ کړي چې ملا محمد عمر له مقاومته وړاندې ژوندی ونیسي. ملا صیب ورته وویل چې که په ښار کې جګړه ناشونې ده نو د ښار جنوب لوري "محله‌جات" طرف ته وځو او خپله وروستۍ جګړه پیلوو. نافذ وویل ملا صیب! دا ډول جګړه به څنګه روا وي چې یواځې زموږ وژل کېدل په کې یقیني وي! بل ستا وجود د راتلونکي لپاره د مقاومت زړه دی، نو څه ضرورت دی چې ناکامه جګړه کې ځان قربانوو؟ ولې ستاسې د حفاظت تصمیم ونه نیسو او له ښاره به ووځو،نور ملګري به هم راټول کړو؛ په نوي ترتیب به کارونه منظم کړو. دلته نور موږ هیڅ نه شو کولای خو د ملا محمد عمر وروستۍ جمله دا وه چې د دې خونې تر دروازې دې راشي چې زه ورباندې وروستۍ ضربه وکړم. نافذ ویل کېدای شي ضربې ته وخت درنه کړي.

بالاخره ملا محمد عمر د نافذ او ملګرو خبر ه ومنله. له دې وروسته ملا محمد عمر د هوانوردي وزیر ملا اختر محمد منصور ته حال واستاوه چې چې د کندهار هوايي ډګر سره میشتو عرب مجاهدینو ته ووایه چې موږ له ښاره وځو. تاسو باید یواځي پرېښږدو. زموږ غوښتنه دا ده چې تاسو هم ځانونه وباسئ. د عربانو د کورنیو او ماشومانو له ښاره ویستل د ملا محمد عمر په غوښتنه له دې نه یوه هفته مخکې پای ته رسېدلې و، خو په عربانو کې هغه خلک چې ځان یې تر وروستۍ سلګۍ جګړې ته وقف کړی و او فدايي بریدګر هم په کې وو، هغوی پاتې شول.

دا وخت د دفاع وزیر ملاعبیدالله په مشرۍ سید طیب اغا او حاجي امیر محمد اغا په شاولي کوټ کې له کرزي سره لیدلي وو او ملا نقیب ته یې د ښار سپارلو پر سر موافقه کړې وه، خو بیا وروسته امریکایانو د شېرزي په مشرۍ ملا نقیب پرېښښود او ښار یې شېرزي او ورسره ملېشو ته وسپاره.

ځنګه چې ملا محمد عمر او د عبدالرزاق نافذ په مشرۍ نورو ملګرو د کندهار ښار د کرشک اډې خوا کې په خپل وروستي مرکز کې اړولي وو، ملا عبدالرزاق نافذ په دې قادر شو چې ملا محمد عمر قانع کړي چې زابل ولایت ته لاړ شي. د کندهار تر نیولو یوه ورځ وړاندې ملا محمد عمر له څو وسلهوالو ملګرو سره زابل ولایت ته لاړ او د سرخګانو په سیمه کې یې د زابل د طالبانو ځینې مهم قوماندانان راوغوښتل. د جګړې د بیا پیل پر طریقه او طرز یې ورسره مشوره وکړه. هغه طالب قوماندانان چې په دې غونډه کې وو اکثر یې اوس په دنیا کې نه شته. لکه عبدالرزاق نافذ، ملا روزي خان، ملا محمدګل نیازی او ځینې نور.ملا ممحد عمر دوي ته له ورستیو هدایاتو وروسته له څو خاصو ملګرو سره له سروګانه د سیوري اوشینکي ولسوالیوته لاړ، خو امریکانو د طالب چارواکو د نیولو او وژلو هڅوته زور ورکړی و، چې په دې کې یې په اسلام اباد

کې د طالبانو سفیر هم د یوه دیپلومات په توګه معاف نکړ، بلکې د یوه نظامي قوماندان په دود یې اسیر کړ.

د عبدالسلام ضعیف نیول او سپارل

د کندهار له سقوطه وروسته په اسلام اباد کې د افغانستان سفیر ته د کوربه هېواد ځینې شبکو ویلي وو چې تا ته د یوه دیپلومات په توګه اصولي خطر نه شته، ارام اوسه خو بیا هم ښاغلی ضعیف کومې سرحدي سیمې ته تللی و او له هر چا سره یې اړیکې شلولې وې. د هغه یوه پېژندوی چې ده پرې ډېر باور لاره، ضعیف ته په پوښتنو او پلټنو ځان ور رسولای و او اطمنان یې ورکړی و چې بېرته اسلام اباد ته خپل کور ته ځان ورسوه! ما له کوم بهرني هېواد او ځینو بشري ادارو سره ستا د پنا اخیستلو او حفاظت خبره کړې ده. ضعیف په همدې خوشباورۍ په لوی لاس اسلام اباد ته راوغوښتل شو چې سي آی اې یې ونیسي.

د ضعیف دغه ملګری احمد راتب نومېږي او د حامد کرزي له نږدې خپلوانو دی او د سي آی اې د سازمان خفیه غړی دی، خو د کاروباري او سیاسي لینونو په توسط یې د ضعیف په زړه او دماغ کې د یوه وفادار ملګري په توګه ځای موندلای و. د معادن او صنایع وزیر مولوي احمد جان وایي څو ځله مې په کابل کې له راتب سره په افغاني کالیو کې یو امریکایي لیدلی و چې راتب به چارواکو ته د بي سیم تلفون د کمپنۍ یا د نفتو د انجینر په توګه معرفي کاوه. اوس راته جوته شوې چې هغه د سي آي اې غړی و.

ضعیف د مشرف په امر آی اس آی- سي آی اې ته په پېښور کې وسپاره، چې بیا همغه وشول چې ښاغلي صغیف یې په اړه ټوله کیسه په خپل کتاب کې لیکلې ده. په ټولیزه توګه څه چې له ضعیف سره وشول دا د بشر په تاریخ کې د یوې دولتي ادارې لپاره کم ساری جنایت و او د پاکستان لپاره یوه داسې

شرم‌اوره پیښه وه چې د یوه اټومي هېواد په توګه د پاکستان لپاره دومره ستره سرټیټي ښايي په تاریخ ډیره کمه بېلګه و لري.

ځینې طالب چارواکي له چین سره د روابطو د هڅو ناکامونکی او افشاګر هم راتب ګڼي. چې کله د امریکا د فشارونو د زیاتېدو پرمهال مشرتابه د ملا محمد عمر په امضاء د چین ولسمشر ته لیک واستاوه. غوښتل یې د عبدالسلام ضعیف په لاس د په اسلام اباد کې د چیني سفارت له لارې له چینایي مقاماتو سره د خفیه تماس په لړ کې دغه لیک دچین ولسمشر ته ورسوي.

ویل کیږي چې ښاغلي ضعیف دا لیک راتب ته ورکړی و او راتب ښايي سي آی اې خبره کړې وي چې له امله یې چینایانو ناڅاپه شا ته قدمونه واخیستل. کله چې عبدالسلام ضعیف له بنده خوشې شو نو افغانستان ته په راتګ دکابل هوايي ډګر ته راتب ځو قیمتي موټر د هغه استقبال ته وروستل چې غالبا همدا موټر به هم د سي آی اې په پیسو رانیول شوي وو. د راتب رښتیني څېره اوس ښاغلي ضعیف هم پېژندلې خو له مجبوریته ښکاره څه نه شي ویلای!

بل خوا راتب چاته ویلي و چې زما هدف د ضعیف داسې سپارل نه و، چې هغه امریکا ګونتانامو ته یوسي، بلکې ما غوښتل چې له لنډه زندانه وروسته ضعیف سپین شي او له ماسره یوځای کابل کې په بزنیس بوخت شي او د ژوند چارې په عادي ډول پر مخ بوزي، چې دا خبره نو د خالد پښتون هغه بهانې ته ډیر ورته ده چې د متوکل په اړه یې کوله، خو نه متوکل او نه هم ضعیف په دومره اساني خلاص شول، بلکې دواړو یې سخت او درانه زندانونه وګالل.خو وروسته په کابل کې د دا ډول زړو طالبانو په شتون سي آی اي هم خوښه وه، ترڅو داسي طالب چارواکې چې کوم خطر ترې نه لیدل کیږي د طالب پدیدې نامستقیم ادرس او تش سمبول وګرځې، هغوي داهدف هم لاره چې دا ډول زاړه طالب چارواکې به افغان حکومت او خارجي قواوو ته د ملایانو د جلب او جذب دروازه شي.

**له سقوطه وروسته لومړی مقاومت او لومړی سنگر**

کله چې طالبانو د هېواد ټولې برخې پرېښودې او نور د تېر واکمن نظام مقابله تقریبا صفر شوه، نو درې میاشتې وروسته د ۲۰۰۲ د مارچ په درېیمه امریکایانو د پکتیا د زرمت شاهي کوټ دره کې د طالبانو د یو ستر مرکز پر ضد عملیات پیل کړل. د ا د ملاسیف الرحمن منصور جهادي مرکز و چې د امریکایي یرغل په وړاندې جهاد لپاره یې ټاکلی و. سیف الرحمن منصور د مولوي نصر الله منصور دوهم زوی و.

مولوي نصر الله منصور له کمونیستي کودتا وروسته په مهمو جهادي څېرو کې گڼل کېده چې د حکمتیار او رباني ترمینځ یې د جهادي صف پر مشرۍ اختلاف ختم کړ او په دواړو یې مولوي محمد نبي د مشر په توگه ومانه او دی خپله د نوي تنظیم حرکت انقلاب اسلامي مرستیال شو. وروسته چې رباني او حکمتیار بېل شول او سیاف هم دا وخت له کابله راغی؛ مولوي صیب خالص هم ځان ته تنظیم جوړکړ. نو مولوي منصور بیاهم د مولوي محمدي مرستیال و. خو کله چې د مولوي محمد نبي په مشرۍ حرکت کې د بې مسئولیته خلکو شتون، ناوړه حرکاتو، مالي بې پروایي، د رهبریت ضعف، قرابت پالنه او په هر څه کې د محمد نبي صیب د زامنو مداخله زیاته شوه، نو مولوي منصور هم ورنه بېل شو. خو د هغه تنظیم په پاکستان کې د نورو تنظیمونو په اشاره د رسمي تنظیم په توگه ونه منل شو، چې پاکستاني مقامات هغه ته د وسلو او مهماتو سهم ورکړي. د هغه ستر تنظیم په په وړه جبهه بدل شو او هغه مجبور شو چې ایران ته مخه کړي چې دا وخت ایران هم د افغان جهاد ننگه کوله، خو د ایران مرستې سنیانو ته دومره نه وې چې یو ستر تنظیم ورباندې اکمال کړي، نه هم ایران د ټولې غربي او عربي نړۍ په څېر ځوک اکمالولای شوای.

له همدې امله منصور خپله جبهه، دفترونه، مدارس، مطبوعات او د تربیت او روزنې پروگرامونه په ډېرو کمو امکاناتو ډېر فعاله ساتلي وو. هغه له ځوانې طبقې څخه د خدمت اخیستلو ځانگړی استعداد درلود.

مولوي منصور د نورو ترڅنګ خپل زامن هم د جهاد په روحيه تربيه کړل. هغوی کوم باندیني ستر پوهنتون ته هم خپل زامن وانه ستول، بلکې کله چې هغه ته په بهر کې همداسې فرصتونه په لاس ورتلل، نو هغه به خپلو زامنو ته ويل : په کومو مدارسو کې چې د عام افغان زوی درس ويلی شوای همغلته به تاسو هم درس واياست.

موږ په کشرتوب کې د شوروي ضد جهاد پر مهال د مولوي منصور دفترونه، کور او مدرسه ليدلې وه. هغه به په درې سوه پاکستانۍ کلدارو په کرايه کور کې اوسېده چې پر دروازه به يې پرده ځوړنده وه، خو له همدې کوره به دومره پاک او نظيف راووت لکه له شاهي قصره چې کوم شهزاده راووځي.

هغه په شخصي ژوند کې، منظم، باسليقه او زحمت کشه سړی و. استراحت يې نه خوښاوه. پېښور کې په درس، تربيت او دفتري کارونو بوخت و، په هېواد کې دننه به په سنګرونو کې و، زامن يې ځان سره تل سنګرونو ته بېول.

کله چې کابل ته مجاهدين دننه شول او له حکمتياره علاوه شپږو تنظيمونو په حکومت کې برخه واخيسته. دا وخت مولوي منصور هم کابل ته لاړ. د جهاد ساحه يې پکتيا وه. د ګردېز په نيولو کې مولوي منصور ځانګړی رول ادا کړ چې دغه فتحه منظمه وي او ګردېز د خوست په څېر چور او تالان نه شي. له همدې امله يې د سترې محکمې د مرستيالۍ پر ځای د پکتيا ولايت غوره کړ چې له امله يې د ګردېز ټول غنيمت شوي زغره‌وال ټانګونه د اره کېدو او خرڅېدو پر ځای ترميم کړل. يوه مجهزه قوه يې ورنه جوړه کړه. د دې قوې قوماندانې سيف الرحمن منصور ته ورله غاړې وه چې خپله هم ټانکسټ و او يو درجن ملګري يې هم وروزل چې بيا د طالبانو په واکمنۍ کې د ټانګونو چلولو او توپچي چارې تر ډېره د سيف الرحمن په غاړه وې.

مولوي منصور د رباني رژيم نه د ولايت د پيسو سهم راووړ او په دې کې هغه قومانداناانو ته چې د بې نظمۍ، چور او تالان شوق يې لاره ډېرې نغدې پيسې

ورکولې چې د ولایت مرکز یې په همدې له بې امني او خودسرۍ ساته. د هغه نږدې ملګري وايي چې منصور صیب دغه پیسې یوه هم پر ځان او خپله کورنۍ نه مصرفولې . تر دې چې د سورلۍ موټر یې هم یو تاجر ورته رانیولی و. د طالبانو په واکمنۍ کې د هغه قرضونه ملا محمد عمر خلاص کړل. تر دې وخت یې زامنو دومره مالي توان نه درلود چې د پلار قرضونه ادا کړي.

د مولوي منصور یوه بله ځانګړتیا دا وه چې د هغه شخصیت ملي بڼه هم لرله، ځکه هغه درسونه ټول په افغانستان کې له افغاني ملایانو لوستي وو او له خپلو خلکو سره مزاجا بلد و. کله چې هغه د مجاهدینو د حکومت پر مهال غزني او زابل ته سفرونه وکړل او هلته یې غونډې وکړې، هرڅوک په دې پوه شول چې هغه به ډېر ژر د دې سیمې ولسونه او علماء له ځان سره ودروي او له دې وړاندې چې په پاکستان کې هغه ته چا مخه نه ورکوله، اوس په خپل وطن کې له هغه سره مادیات هم پیدا کېدای شي چې دا به په څو ولایتونو کې د نورو تنظیمونو اثر صفر کړي.

په دې اړه تر ټولو ډېره اندیښنه له ښاغلي حکمتیار سره وه او هغه مزاجا هم د خپل حریف د وهلو او ترور تاریخ درلود. له همدې امله منصور د هغه لپاره ټارګټ و. کله چې مولوي منصور له کابله په عادي ډول ګردېز ته روان و او د ولایت سهم او بودیجه یې هم ځان سره موټر کې اخیستي وو. حکمتیار ورته لار نیولې وه. منصور چې له حکمتیار سره یې پیښور کې په یوه کاسه خوړلي وو او د ګډې مبارزې ملګری یې و، کله یې هم فکر نه کاوه، چې حکمتیار به د هغه سپکاوي کوي او د مرګ ګواښ به ورته کوي.

دا وخت چې د مسعود او حکمتیار ترمینځ کابل کې جنګ روان و نو د منصور یو وسله‌وال هم په دې جنګ کې نه و او نه هم مولوي منصور د داخلي جنګ جواز ورکاوه.

د چاراسیاب پر جنګي کرښه -چې پر توغندیو ترې د کابل میندې بورېدې- حکمتیار د هغه موټر ودراوه او هغه یې له موټره ښکته کړ، ترڅو ساعتونو یې بندی کړ. د موټر په باډۍ کې پرتې پیسې د حزب نیستۍ ځپلیو قوماندنانو داسې لوټ کړې چې حکمتیار هم پرې خبر نه شو. د کابل یو سیمه‌ییز قوماندان د دې پېښې په اړه وایي چې د مولوي منصور له راتګه وړاندې د تور مولوي صاحب (مولوي نظام الدین) د سړیو له خوا حکمتیار ته پټ راپور ورکول شوی و چې له مولوي منصورسره نغدې پیسې دي.خو د تور مولوي صیب نږدې کسان دا تور ردوي او پروپاګند یې ګڼې، ویل کیدل چې مولوي صیب نظام الدین ظاهرا له مولوي حقاني سره و، خو اصلي ملګري یې له حکمتیار سره وه او غوښتل یې چې د حکمتیار په مرسته د ګردېز ښار تر خپل واک لاندې راولي. دغه قوماندان وایي چې د پیسو د چور پر وخت د حزب یو قوماندان ملک نذیر چې یواځې و او نور سړي یې نه وو، د دې لپاره چې له پیسو محروم نه شي، د پیسو په یوه بوجۍ سرببره پرېوت چې څوک یې رانه وانه خلي، خو نورو حزبي پاټکیانو هغه په زور لېري کاوه چې کله هغه پنجې کلکې کړې نو یوه وسله‌وال تر ناوړه ځای ونیو او لیرې یې کړ!

له بده مرغه د ښاغلي حکمتیار په څیر سخت دریځي لیډر په وړاندي په دومره وحشیانه ډول د پیسو چور او بیا د حزب د نسبتاً نیکنام قوماندان حاجي کشمیرخان پر پاټک دا ډول لړزونکي حرکات د دي حکایت کوي، چې داخلې جګړې له ښکیلو غاړو د قاتلانو ترڅنګ لاره وهونکي لوټ ماران هم جوړکړي وو.

د پیسو له چوره وروسته بیا د مولوي جلال الدین حقاني په همکارۍ دا محاصره ماته شوه. مولوي منصور کابل تلویزون سره د دې بند په اړه خپله مرکه کې وویل: "دوی راته وویل موږ تاسې وژنو، ما ورته وویل چې موږ ته

داسي درس راکول شوی چې مرګ او ژوند یواځې د الله په لاس کې دی". دې ته ورته پېښه له مولوي محمد یونس خالص سره هم شوې وه چې د حکمتیار د قوماندان زرداد له خوا په سروبي کې درول شوی و او بیا د مولوي جلال الدین حقاني د وروڼو په مینځګړتوب یې لاره خوشې شوه، خو مولوي خالص یې له موټره نه و کوزکړی،ځکه چې هغه د قومندانانو او ګڼ شمېر وسلوالو په یو ستر قطار کې روان و.

میاشت لا نه وه پوره چې د کابل ګردېز پر لار د مولوي منصور پر موټر چاودنه وشوه او له هغه سره دې موټر کې د لوګر یو تن مشهور دیني عالم مولوي ظبطو خان هم ژوند له لاسه ورکړ. د مولوي منصور د ترور په اړه یو اټکل دا و چې ماین په همدې لار کې ورته خښ شوی و او بل اټکل دا و چې د حکمتیار له خوا د نیولو پر وخت د هغه موټر کې ماین ځای پر ځای شوی و. کله چې د مولوي نصر الله منصور موټر پر ماین والوزول شو نو د حزب سیمه‌ییزو قوماندانانو پر مخابرو یوه او بل ته مبارکۍ ورکولې.

کله چې د طالبانو له خوا د چار اسیاب سیمه ونیول شوه نو د طالبانو په مخکښو ځواکونو کې ملا سیف الرحمن منصور هم د قوماندان په توګه و. د سیف الرحمن منصور له یوه ملګري مې اورېدلي چې هغه د حکمتیار له تېښتې وروسته د هغه کور ته ورغی او د هغوی کورنۍ جامي او مخصوص پاتې شوی سامان یې څادر کې پټ کړ. بیا یې یو بلدي کس پیدا کړ او امانت یې ورکړ ورته ویې ویل: "دا ورسوه او حکمتیار ته ووایه چې ما ته ستا عزت د ځان عزت ښکاري. تا زما د پلار لار ه نیولې وه او بیا دې د هغه توهین کړی و خو ما ته پلار همداسې تربیه راکړې چې ستا عزت هم خپل عزت ګڼم!"

سیف الرحمن منصور د منصور پلار تر تربیې لاندې لوی شو او بیا یو جنګیالی ترې جوړ شو، خو داسې جنګیالی نه و چې رحم او انصاف ونه لري. هغه د

شپې د اوږدو لمونځونو عادت درلود. د بيت المال له پيسو او موټر سره يې د افراط تر حده احتياط کاوه. يو ملګرى يې وايي چې د خپل ورور په واده کې يې له دې امله ګډون نه کاوه چې د ده حکومتي موټر په کې د شخصي سورلۍ لپاره استعمال نه شي.

کله چې د نومبر په دولسم دفاع وزارت د کابل د تخليې پرېکړه کړې وه او وسله‌وال طالبان له کابله د وتلو په حال کې وو. ويل کېدل دا پرېکړه د يوې خفيې معاهدې له مخې چې وتونکي طالبان به نه بمبار کيږي شوې وه، خو دا وخت دوه نامتو قوماندنان له دې پېښې ناخبره وو چې يو يې مولوي جلال الدين حقاني او بل يې ملاسيف الرحمن منصور و. دواړو له کابله تر وروستۍ سلګۍ د دفاع هوډ درلود چې له دې پرېکړې په خبريدو يې سخت احتجاج وکړ، خو دا وخت احتجاج هم بې ګټې و.

هغوي دوه په دوه نه شواى کولاى چې دا دفاع جاري وساتي ځکه چې د اکثريت وسله‌والو په وتلو ښار له يو ډول ګډوډۍ سره مخ و. دوى دواړه د دې لپاره چې کوم څوک يواځې پاتې نه شي او همداراز په روغتونونو کې زخمي طالبان راټول کړي، واټ په واټ وګرځېدل او له ټولو وروستى دوى له ښاره ووتل.

مولوي جلال الدين حقاني په خوست کې د مقاومت لپاره په تياري بوخت شو او سيف الرحمن منصور د خپل پلار د شوروي ضد جهاد د وخت د شاهي کوټ غره مرکز بېرته فعاله کړ چې دلته د امريکايي يرغل په خلاف د جهادي فعاليت لپاره ځان او ملګري چمتو کړي.

د دغو دواړو قوماندانانو له خوا د جنوب او شرق له لوري راتلونکي عرب مهاجر او د هغوى کورنۍ خوندي ځايونو ته رسول کېدې. ملا سيف الرحمن منصور د

وزیرستان ملا نیک محمد سره په ګډه همکارۍ د عربو او نورو خارجي مهاجرو کورنۍ وزیرستان ته رسولې او هلته یې د سیمې د خلکو په مرسته ځای پرځای کول. ملا نیک محمد له سیف الرحمن منصور سره د قرغې په فرقه کې د فرد په توګه خدمت کاوه او نږدې ملګری یې و.

مولوي جلال الدین حقاني د امریکایي الوتکو په بمبار کې هغه وخت سخت ټپي شو چې د خوست د نادرشاکوټ ولسوالي د زنخیلو په کلي کې د سراج الدین په کورکې د مقاومت لپاره په پروګرام جوړولو بوخت و. د هغه له زخمي کیدو وروسته یې زامنو د خوست پر ځای د پولې هاغاړه د جهادي مرکز په توګه غوره کړه او له هغه ځایه یې منظم عملیات پیل کړل. ملاسیف الرحمن منصور شاهي کوټ غر خپل وروستی سنګر وګرځاوه او له ځان سره یې خارجي مجاهدین هم ملګري کړل.

د ۲۰۰۲ پیل کې په سیمه کې د امریکا جاسوسانو د دغه مرکز څارنه پیل کړه چې په دې کې مشهوره څېره د طالبانو یو پخوانی مرستیال وزیر عبدالحکیم منیب و چې د شاهي کوټ د جګړې په پیښېدو کې یې مخکښ رول درلود. منیب د پکتیا د زرمت اوسېدونکی و، په نوې ځوانۍ کې له رحمت الله واحدیار سره نږدې و چې له همدې امله یې ځان د مولوي منصور له پلویانو ګاڼه. د طالبانو په تحریک کې هغه ښه نوم نه درلود. یو ځل د یوه موټر د پټولو په موضوع کې سخت بدنام شو، خو بیا هم د څه نا څه استعداد په وجه په تیټو څوکیو کې مسئول پاتې شو.

له امریکایي یرغله وړاندې هغه د کندهار د یوه پخواني جهادي قوماندان ملا ملنګ په واسطه له سي آی اې سره اړیکه لرله چې کله امریکا یرغل وکړ، هغه د ملا محمد عمر په خلاف له مطبوعاتو سره خبرې وکړې او د یرغل په پلوۍ یې فعالیت پیل کړ. یو ځل چې تازه یې مطبوعاتي خبرې کړې وې، طالبانو ته

په ګوتو ورغی خو ځان یې په دې خلاص کړ چې زه پاچاخان ځدراڼ وتړلم او په زور یې راباندې خبرې وکړې، خو وروسته سیف الرحمن منصور د هغه په نیولو پسې ډېر کوشش وکړ.

منیب له یوې خارجي زنانه سره د ګردېز په ښار او اطرافو کې ګرځېدو، د شاهي کوټ د مرکز په اړه به یې معلومات راجمع کول او هغه به یې بیا امریکایي مقاماتوته رسول. د شاهی‌کوټ له جګړې وروسته منیب په مال او څوکۍ ونازول شو، خو منیب چې له یوې خوا یې د سیف الرحمن پر مرکز برید کې د امریکایانو همکاري کوله، له بلې خوا یې ډېر پکتیاوال او زرمتي شیخان او عام ملایان د عمرو او حجونو په بدل کې بېرته د ځان ملګرې او ثناخوان کړل! چې له بده مرغه نن- سبا ملا او شیخ  ته د رشوت نوې طرقه حج او عمرې لیږل هم دي؛ د اډول حجونه  او عمرې  یواځې د ریا او شهرت لپاره وي، خو په بدل کې یې چارواکي د خپلې دفاع لپاره مفتیان پیداکوي او دغه د رشوت حاجیان او عمریان بیا خپل حج هم د دا ډول چارواکو د سپیڅلتیا دلیل ګڼي!

دي  مجــرب د زمانې د کلیسا واعــظان

شیطان له ټولې شیطانیه په یو دم پاکوي

د نیمې لارې دوست جلاد وخاته  دا څه وشول

په خوله  د تورې  له  زخمونو نه  ملــهم پاکوي

(فضل ولي ناګار)

د امریکایانو له دقیقې جاسوسۍ وروسته پر شاهي‌کوټ د برید پلان جوړ شو. د ۲۰۰۲ د مارچ د میاشتې په درېیمه عملیات پیل شول. تر امریکایي بمبارۍ

لږ وروسته افغان قواوې دغې جګړې ته واستول شوې چې د سیف الرحمن له خوا له ژوندي نیول کېدو وروسته دغه سلګونه جنګیالي بېرته خوشې شول.

په دې جګړه کې د ائتلاف خلاف امریکایي قواوو په لومړي ځل ستر تلفات ولیدل او لویدیزو رسنیو د امریکایي قواوو لپاره دغه تلفات د ویتنام له جګړې وروسته لومړي ستر تلفات ونومول. که څه هم امریکایي ځواکونو یواځې د دوو الوتکو نسکورېدل او د اتو امریکایي عسکرو مرګ او د یو شمېر نورو زخمیی کېدل تایید کړل، خو د سیمې خلکو او د جنګ عیني شاهدانو د ګڼو الوتکو د نسکورېدو او تر سلو زیات امریکایي عسکرو د مرګ شاهدي ورکوله.

محمد قاسم حلیمي چې په باګرام کې هغه وخت بندي و، په دې اړه یې ویل چې زماسره بلدې یوې امریکایي پیرەدارې عسکرې د دې جنګ په لومړۍ ورځ ژړل او ویل یې چې په پکتیا کې زموږ عسکرو ته درنه مرګ ژوبله اوښتې او تر دې مهاله څلوېښت جنازې باګرام ته راوړل شوې. جګړې دوه اونۍ دوام وکړ د ملا سیف الرحمن له شهادته یوه ورځ وروسته جګړه پای ته ورسېده، خو په دې جګړه کې د ملا سیف الرحمن له خپلو ملګرو ډېر کم کسان ژوندي پاتې شول، د سیف الرحمن په مهمو قوماندنانو کې مولوي محمد یوسف او مولوي فدامحمد جواد و چې له ده سره یو ځای شهیدان شول.

دې جګړې امریکایانو ته په لومړي ځل دا احساس ورکړ چې له افغانانو سره مخامخ جګړه له سترې او پیچیده تیکنالوژۍ سره سره ډېره ګرانه ده او همدارازیې په طالبانو کې د مقاومت روحیه پیدا کړه او له هغه وروسته ورو ورو د یرغل پر وړاندې مقاومت سر اوچتاوه خو د دې مقاومت لومړی سمبول او جنګي ستوری ملاسیف الرحمن منصور و. د هغه مړینه د وسلەوالو د روحیې د لوړوالي لپاره د هغه د ملګرو له خوا تر کلونو پټه وساتل شوه.

د سیف الرحمن منصور له شهادت نه وروسته یې ورونه د هغه د سنګر او ډلې په پیاوړتیاکې بریالی نشول، چې ویل کیږي د کمې تجربې، کمزورو مشاورینو او د خدام الفرقان د ځینو غړو سره اړیکو د هغوي جګړیزه او مقاومتي روحیه کمزورې کړه، په بدل کې یې په سیمیزو او شخصي ستونزو کې مصروف شول.

خو د دې په پرتله د مولوي جلا الدین حقاني زامنو خپل مقاومت موثر، پراخ او په نیم هیواد یې سیوری وغوړاوه. خو په مجموع د ا دواړه کورنۍ د موثر مقاومت او نیمې کورنۍ د قرباني کیدلو په وجه په خپلو پیروانو کې بې کچې محبوبیت لري.

د خدام الفرقان ګوند اعلانول

د امریکا د یرغل په نتیجه کې د طالبانو د واکمنۍ له نړېدلو وروسته ځوک د سیف الرحمن منصور غوندې غرونو ته د مقاومت په نیت وختل. ځوک د پاکستان سرحدي سیمو ته لاړل او پټ په پټه یې ژوند کاوه. یو شمېر ملکي چارواکي د پاکستان ښارونو ته مهاجر شول او هغه عام طالبان چې د حامد کرزي له ډاډ ورکولو وروسته خپلو کلیو او کورونو ته ستانه شوي وو، د امریکایانو او د هغوی د پلوي افغان ملېشو له خوا د نیولو او تعقیب له لاسه هر هغه لور ته تیتېدل چې شپه یې تېریده، چې له همدې امله سړی ویلای شي چې ډېر ناست خلک د امریکایانو، شمالي ټلوالي او ځایي ټوپکوالو د ناوړه چلند له امله بیا مقاومت ته اماده شول. دوی پوه شول چې که پر کور کېنم هم بې عزته کېږم، د زندان او مرګ ګواښ سره مخامخ یم. تر دې راته دا غوره ده چې په تش لاس دښمن ته ځان په لاس ورنه کړم.

بل پلو ته هغه د مینځني کچې چارواکي چې په پاکستان کې یې د شوروي ضد جهاد له وخته کورونه او فامیلونه اوسېدل، دوی ته د پاکستان له خوا وویل

**شول چې د کرزي د حکومت ملاتړ وکړي او له طالبانو پرېکون اعلان کړي. دا وخت کرزي له پاکستان سره ډېرې تودې اړیکې لرلې او کورنۍ یې په همدې نږدې وخت له کوټې کابل او کندهار ته نقل شوې وه، آن چې په لومړیو انتخاباتو کې په پاکستان کې د کرزي په ګټه افغان مهاجرینو هم رایه واچوله او زمینه ورته د پاکستان حکومت برابره کړه.**

**پاکستان د امریکا په ایتلاف کې و نو ځکه یې په پټه د ورغلیو طالبانو په اړه څرګنده پالیسي د طالبانو بندیانول، سپارل او له کرزي سره ملاتړ ته اماده کول وه.**

**مولوي ارسلان رحماني، عبدالحکیم مجاهد، حبیب الله فوزي، رحمت الله واحدیار، حاجي احمد هوتک، سهیل شاهین او مولوي عبدالستار صدیقي د امین جان مجددي په مشرۍ د خدام الفرقان په نوم تنظیم اعلان کړ. خدام الفرقان د یوه پخواني نهضت نوم و چې له دوهمې افغان انګلیس جګړې وروسته د برتانیې د سیاستونو خلاف او د دیني ارزښتونو د ساتنې په نیت د علماوو او روحانینو له لوري تاسیس او تر کمونیستي کودتا پورې فعال و.**

**خو د دې نوې سمبولیک خدام الفرقان اصلي بانیان ملا ارسلان او حاجې احمد هوتک ګڼل کېدل، چې تش یې امین جان مجددي د یوه سمبول په توګه استعمال کړ. ارسلان رحماني ځیرک او موقع شناسه سړی و. هغه د رباني او طالبانو په حکومتونو کې هم د وزیر او مرستیال وزیر په څوکیو کار کړی و او د کرزي په اداره کې هم سناتور شو. ارسلان رحماني په پاکستان کې د پراخ جایداد مالک و، هغه او واحدیار د حرکت له هغو شپېتو تنو وو چې د شوروي ضد جهاد پای کې د پاکستان د جمهور رییس غلام اسحاق خان له خوا د پاکستان تابعیت ورکول شوی و.**

رحماني د شوروي ضد جګړې پر مهال د پکتیکا ولایت نامتو جهادي قوماندان و، خو وروسته د مهاجرو او مرستندویه عربانو ډېر وسایل او جایداد ورپاتې شو. دا هم ویل کیږي چې د جهاد پای کې هغه ډېره زیاته وسله هم وپلورله چې له امله یې ډېر شتمن شو او د پاکستان پلازمینه کې یې د نور جایداد ترڅنګ د سبزیو او تازه میوو یو ستر کولډسټور (سوړځای) هم درلود.

له دې سره هغه د رباني او طالبانو د واکمنۍ پر مهال کابل کې ډېر کورونه او دوکان سرایونه رانیولي وو. له هغه چا پوښتنه کړې وه چې کابل ته د بېرته ورتلو دومره زیاته تلوسه ولې لرې؟ ده ورته جواب کې په ټوکه ویلي وو چې ما ټول جهاد په همدې سرایونو او مارکیټونو بدل کړ، اوس که رانه پاتې شي، نو دواړه به مې خطا شي.

ملا ارسلا ن پر امین جان مجددي دا کار وکړ، خو هغه یې هسې استعمال. کړ اصلي لاسته راوړنه یې خپله وه چې له دې لارې یې له ځانه طالبي پوستکی لېرې کړ او په بدله ځرمن کې کابل ته ننوت. له هغه وروسته د دوي له ډلې مرحوم مولوي عبدالستار صدیقي دتنظیم په حقیقت پوی شو او ورنه جلا شو، چې بیا یې په ۲۰۱٦ کې له ملا اخترمحمد منصور سره بیعت وکړ او د ۲۰۱۷ په سر کې وفات شو.

له دوی سره دا وخت مالي مرسته هم وشوه چې یا خو پاکستاني ادارو له خپل لوري دا پیسې ورکړې یا بنایي د لویدیزو ادارو له خوا د هغوی په لاس ورته ورکړل شوي وي، خو د دې پر ځای چې دا مرسته د تنظیم پر فعالیت مصرف شوې وای د دوی ترمینځ د ناندریو سبب شوه. حاجي عبدالرحمن احمد هوتک په پیسو کې د کمې برخې پر سر مرور شو او پر کور کېناست. ملا ارسلان ټولو ته مشوره ورکړه چې دا پیسې باید پر یوه روزګار بندې شي. ملګرو یې ورته وویل موږ په کاروبار تر تا ښه نه پوهېږو، ته یې راته بندې کړه. ملا ارسلا ورته

وويل چې اوس د کچالو د ارزاني سېزن دی، زه به پرې زرگونه ټنه کچالو رانيسم په خپل کولډسټور (سوړځای) کې به يې کېږدم تر قيمته کېدو پورې به ډېري پيسې وگټې او تاسو به ماته په دې پيسو کې د کولډ سټور کرايه راکړئ. کله چې سيزن تېر شو نو کچالو نور هم ارزانه شول، تجارت تاوان وکړ، خو ملا ارسلان خپله کرايه وصول کړه. دغه تاوان بيا وروسته د دوی په نږدې حلقه کې په يوه ټوکه او ضرب المثل بدل شو: چې ويل به يې د ا فلاني کار هم داسي تاوان وکړ لکه د خدام الفرقان کچالو!

بل پلو د اوخت د ا مريکا د يرغل او پاکستان د فشار او رسمي دريځ له امله يو شمېر نورو طالب چارواکو هم هڅه وکړه چې د کرزي له ادارې او امريکايانو سره روغه وکړي، خو بريالي نشول.

د طالب چارواکو د تسليمېدو لړۍ

د عدليې د وزير ملا نور الدين ترابي په مشرۍ يوه ډله طالبان د ۲۰۰۲ مارچ کې د کندهار والي گل اغا شېرزي ته ورغلل چې په دې کې د طالبانو د پخوانۍ عالي شورا غړی ملا محمد صادق، د هرات د قول اردو قوماندان ملا عبد الحق، د اداره امور رييس ملا سيد محمد حقاني او څو نور ټيټ رتبه طالبان وو. کله چې گل اغا شېرزی په دې پوه شو چې دغه طالب چارواکي امريکا نه بنبي او د بنديانو په توگه يې گوانتاناموته رسوي، نو دوی ته يې پيسې ورکړې او ورته ويې ويل چې امريکايان مو نه پرېږدي، ځانونه ببرته غايب کړئ.

د امريکايانو دغه ډول تونډ غبرگون او له دې سره د ځايي قوماندانانو له خوا د طالبانو د کورنيو ترټلو له نوي مقاومت سره ډېره مرسته وکړه او هر طالب مشر په دې پوه شو چې له مقاومته پرته په بله هره لار کې يې امريکا هسې هم نه پرېږدي.

دغې ډلې ته ګل اغا شېرزي يو يو ليک ورکړ چې په پاکستان کې ورسره څوک غرض ونه لري. هغوي فکر کاوه چې د شېرزي او پاکستان د مثبتو اړيکو په وجه به دغه ليک دوی وژغوري، خو کله چې ملا محمد صادق دغه ليک په پاکستان کې پوليسو ته ښکاره کړ، پوليسو هغه آی اس آی ته وسپاره. ای اس ای امريکايانو ته وسپاره، چې بيا ګونتانامو ته ولېږل شو.

کله ناکله په داخل کې بيا د شېرزي ليک هم څه ناڅه مرسته کوله. همداسې يو ليک د کندهار ښار اوسېدونکي مفتي عبدالحکيم ته هم ګل اغا شېرزي ورکړی و چې ورکې يې ليکلي وو: دغه مولوي صيب نور له طالبانو بېزاره دی، پر کور اوسيږي څوک دې تکليف نه ورکوي.

مفتي عبدالحکيم د طالبانو د حکومت پرمهال د کندهار ولايت اداري رييس و. له همدې ليک سره پر کور کېناست خو له يو کال وروسته د بې کارۍ او زړه تنګۍ له امله بېرته له طالبانو سره يو ځای شو چې بيا د څه وخت لپاره د اقتصادي کمېسيون مشر هم و.

بل مهم چارواکی چې ځان يې تسليمېدو ته اړ وباله د بهرنيو چارو زير مولوي وکيل احمد متوکل و. مولوي وکيل احمد متوکل چې کله د پاکستان له خوا د عبد السلام ضعيف د نيولو او سپارلو سناريو وليده نو يې پوخ يقين شو چې يو سفير له خپلو ټولو حقوقو سره وسپارل شو نو ما به د طالب خارجه وزير په توګه پاکستان څنګه پرېږدي. هغه له څو ورځو تماسه وروسته چې د حاجي بشر په واسطه يې د کندهار له مقاماتو سره درلود اخير په دې قانع کړای شو چې له امريکايانو سره له ليدلو نه وروسته به په افغانستان کې عادي ژوند غوره کړي.

خالد پښتون هغه ته د امريکايانو له خوا اطمنان ورکړ، خو په حقيقت کې د هغه په سر له امريکايانو سره سودا شوې وه، چې کله کندهار ته لاړ نو امريکايانو د هغه لاسونو کې زولنې واچولې او د تسليمېدو پر ځای يې د هغه د نيولو اعلان

پر میډیا خپور کړ او دا یې خپله ستره لاس ته راوړنه وبلله. متوکل تر دوو کالو په سخت زندان کې وساتل شو چې له امله یې په تبرکلوز (ټي بي) ناروغۍ اخته شو او د سر او ږیري ویښتان یې ټول توی شول. که څه هم هغه تداوي شو خو د دغه زندان تل پاتې اثرات یې تر اوسه پر وجود اغېز لري.

شپږم څپرکی

**د ملا محمد عمر له خوا لومړۍ اډیو کیسټ**

**د دوه زره درېیم میلادي کال په لومړیو کې ملا محمد عمر یو کیسټ خپلو مجاهینو او مشرانو ته راواستوله چې په هغه کې یې د نوي جهادي بهیر او مقاومت لپاره ملا برادر اخوند لومړی مشر او ملا عبید الله دوهم مشر نومولي وو. دغه کیسټ ما واورېده، ملا صیب په دې کیسټ کې ملا برادر او ملا عبید الله په نوبت سره د تحریک مشران او خپل نایبان نومولي او په یوه بله وینا کې یې د شورا لپاره لس نومونه یاد کړي وو: مولوي اختر محمد عثماني، مولوي عبد اللطیف منصور، مولوي جلال الدي حقاني، مولوي عبدالکبیر، مولوي حمدالله نانی، ملا محمدحسن رحماني، مشر ملا محمد حسن اخوند (چې د طالبانو د واکمني پر مهال د وزیرانو شورا مرستیال و)، ملا اختر محمد منصور (د طالبانو دوهم امیر)، ملا داد الله او ملا امیر خان حقاني ول، خو بیا وروسته د ملګرو په وړاندیز په شورا کې وخت پر وخت زیاتونې وشوې.**

**په دې کیسته کې ملا محمد عمر خپلو دوو پیروانو ملا عبد الجلیل او ملا نور الدین ترابي ته د ځینو سرغړونو له امله په تونده لهجه خطاب کړی و  چې بیا وروسته ملګرو دغه خطاب د مصلحت له مخې له کیستې حذف کړ.**

له هغه وروسته د ملا صیب شفاهي پیغامونه، کیسټې او لیکونه د هرې مهمې پېښې، ټاکنې او نورو فرامینو په اړه یواځې خصوصي حلقې، ملا برادر او ملا عبید الله ته راتلل.

په ۲۰۰۴ کې د کمېسونونو په بڼه تشکیلات جوړ شول خو یواځې نظامي، فرهنګي او مالي کمیسیونونه جوړ شول، بیا د ولایتونو لپاره جهادي مسئولین ونومول شول. په ۲۰۰۵ کې تشکیلات نور هم منظم شول او ځینې هغه مسئولین چې تر دې وخته غایب وو راپیدا شول.

له افراطي سیاسته د تېښتې هڅه

په ۲۰۰۵ کې ما د مشر د ویاند په توګه د ځینو وروڼو په مشوره له مهمو نړۍوالو اژانسونو سره انلاین پریس کانفرنس وکړ. هغوی ته مې د طالبانو د تحریک راتلونکې پالیسي اعلان کړه چې په دې کې د ایف پي، رویټرز او یو شمېر نورو نړۍوالو اژانسونو نمایندګانو راسره اړیکه ونیوله. له دې وېرې چې راتلونکې پالیسي مجهوله، احساساتي او بې سرحده دود نه شي، نو ما یو ځل بیا خپله مبارزه تر افغانستان پورې تړلې وګڼله او د یوولسم ستمبر د پېښو په اړه مي خپل زوړ دریځ تکرار کړ او دا پېښه مې یو ځل بیا وغندله. دغه مطبوعاتي څرګندونو یو شمېر د القاعده ملګري او ځینې طالب قوماندانان خپه کړل خو بل پلو یې د نورمال سیاست او محدودې مبارزې بنسټ هم تقویه کړ.

له هغه وروسته په ۲۰۰۶،۲۰۰۷،۲۰۰۸ کې د ملا محمد عمر مجاهد د اختر پیغامونه په بشپړه توګه ما ترتیبول او په ۲۰۰۹ او۲۰۱۰ کې یې یوه برخه ما ترتیبوله چې په دې ټولو پیغامونو کې له یرغلګرو سر د تفاهم او له افغانستانه د وتلو د معقول پېشنهاد یادونه او همداسې نورې سیاسي څرګندونې مې په کې ځایولې، چې ملا محمد عمر ته به مو هم واستاوه نو هغه هم دا پیغام تاییداوه. ما چې د حکومت پر مهال د ۱۹۹۹، ۲۰۰۰ او۲۰۰۱ د اختر پیغامونه هم ترتیب

کړې وو  نو ملا محمد عمر زما پر زياتونو او ترتيب پوره باور درلود، خو د دغه پيغامونو پر ضد هم د طالبانو د ځينو کړيو ترمينځ نيوکې کېدې.

بل پلو دالقاعده سميز مشر د حافظ سلطان په مستعار نامه مشرتابه ته د ۲۰۰۷ ميلادي کال په پيل کې يو احتجاج ليک را واستاوه چې تر افغانستانه پورې د جهاد او مقاومت محدويت او رواني مبارزې ته د افغاني مبارزې خالص رنګ ورکول يې په اصطلاح له عالمي جهاد سره جفا بللې وه. څنګه چې د مشر په پيغامونو کې د تعاطف او نرمي د پاليسي طراح زه ګڼل کيدم، نو ځکه خو ملا عبيد الله او ملا برادر زه ور وغوښتلم او دا ليک يې د دې لپاره راکړ چې مناسب ځواب ورته وليکم. ما ليک ولوست او د مفصل ځواب لپاره مي په جيب کې کيښود، خو کله چې له هغوي بيرته راستنيدم، لاره کې چيک پوست و او ژوره تلاشي اخيستل کېده. ما ليک ژر د جيب نه را ويوست او يوځل مي بيا تر نظر تېر کړ، نور مي په خوله کې وژدو وی، تر څو يې تلاشي کې رانه پيدا نکړي.

د ليک مطلب مي ذهن کې و، په يو تفصيلي ځواب کې مي له يوې خوا د تحريک مجبوريتونه او بل لور ته د وخت جبر او شرايط ورته د ليل کې وړاندي کړل او د دوي د قناعت هڅه مې وکړه؛ ليک مې ور واستاوه، چې بيا يې له ځواب او غبرګون نه خبر نشوم.

بې مهاره مقاومت

د مشرتابه غياب، د نوي ځوانانو جذبات او خپل سره حرکات د ډېرو ناوړه پېښو او مشکوکو وژنو او سزاوو سبب وګرځېد. ښونځيو ته اور ورکول، د جاسوسۍ په تور بې محکمې وژنې او د عامو خلکو په يوه او بل نامه ځورول، د هېواد په ډېرو برخو کې د طالب له ادرسه ترسره شول.

په ۲۰۰۷ او ۲۰۰۸ کې چې د مشرتابه او شورا له خوا لايحې ترتيب شوې بيا هم ډېرو افرادو او وړو قوماندانانو د دغو لايحو رعايت نه کاوه، چې دا د خپل

مشرتابه له اطاعته ښکاره سرغړاوی و. زه د خپلې سیمې د یو درجن داسې مرګونو شاهد یم چې تر اوسه یې سیمه‌ییز طالبان او مشرتابه شرعي جواز نه شي توجیه کولای. په دې کې تنکي ځوانان او بوډاګان هم شامل دي چې دا کړنې د کوم شرعي اصل له مخې موجه دلایل نه لري. همدا کړنې ډېرو ته د اربکي جوړېدو، دولت او خارجي قواوو سره د همکارۍ بهانه وګرځېدې، داسې هم وشول چې د یوه اربکي په جرم یې دکورنۍ نور غړي وژل کیدل.

په دې اړه به چې موږ هر کله مشرانو ته شکایت کاوه نو هغوی به د پلټنې وعدې راکولې او تر څنګ به یې دا هم ویل چې په جګړه کې همداسې ګډوډي طبعي ده خو موږ به یې د کنترول هڅه کوو. له بده مرغه د دې اغېز او مسئولیت دومره کم نه دی چې څوک یې تش د جګړې په مزاج ونوموي. د یوه بې ګناه کس وژل ټول هدف ته مستقیم زیان اړوي. کله ناکله د بهرنیانو په پرتله له افغان سره سخت چلند ترسره کیده، لکه په ۲۰۰۷ م کال کې چې له ایټالویانو سره د طالبانو په تبادله کې افغان ترجمان اجمل نقشبندي ووژل شو او ایټالویان خوشي شول. دا ډېره برنوونکې پیښه وه، خو زموږ ناره د اجمل تر وروستۍ سلګۍ چا وانه ورېده.

د وخت په تېرېدو لایحې لازمي کړای شوې، محاکم جوړ شول او د قتلونو په ځانګړي ډول د جاسوس مسئله سخته کړای شوه، چې له امله یې ګډوډي یو څه کنترول شوه. همداراز دعامه تاسیساتو، عام المنفعه ځایونو او تعلیمي ادارو په اړه مثبته روحیه خپره کړای شوه او قانون هم وګرځول شو، خو د بې ځایه چاودنو او دولتي مامورینو په بې تفکیکه وژلو کې بیا هم بې احتیاطۍ او بې مسئولیتۍ او ځینې نورې ګډوډۍ لا تر اوسه په طالبانو کې لیدل کیږي.

په جګړه کې د نرمۍ، ښنلو او احتیاط ضرورت لا هم نه احساسیږي. په ځینې سیمو کې طالب قوماندانان ولس سره ډېره مثبته رویه کوي خو په ځینو نورو

سیمو کې لا هم خپل طبیعت چلوي، چې دا د افغانستان د کړېدلي ولس د تیاره مستقبل چانس نور هم زیاتوي.

ملا محمد عمر له اوله له فدایي بریدونو سره علاقه نه لرله خو کله چې دا بریدونه زیات شول نو د هغه فرمان دا و چې فدایي به کم عمره نه وي او له ډېر خاص ځایونو پرته چې هلته بله طریقه ناممکنه وي، په عامو ځایونو کې به څوک دا ډول علمیات نه کوي. همداراز په ملکي ځایونو کې یې د هر ډول برید مخالفت تر اخیرې ورځې کاوه!

د اکبر اغا جیش المسلمین

محمد اکبراغا د کندهار د ارغنداب د "جي لاهور" کلي اوسېدونکي د محمد طیب اغا او د طالبانو د واکمنۍ پرمهال د خوست د والي حاجي عبدالله اغا (تورک اغا) تربور دی. اکبر اغا د روسانو پر ضد جهاد کې هم برخه اخیستې او د طالبانو په لیکو کې هم یو وړوکی او غیر مشهور جنګي قوماندان پاتې شوی و. د طالبانو د واکمنۍ پر وخت چې په کندهار کې د پاکستان د کونسلګرۍ ودانۍ زموږ دفتر ته مخامخ د سړک پر بله غاړه وه، هغه وخت ملا محمد عمر امر کړی و چې د وزارت خارجه له اجازې او مکتوب پرته به څوک د پاکستان کونسلګرۍ ته نه ورځي. یو بایفور موټر به د کونسلګرۍ په دروازه کې درېده او تور ږیری سړی به ترې ښکته کېده. د هغه پر دا ډول راتګ ما یوه ورځ په هغه پسې پوښتنه وکړه. ملګرو راته وویل چې دا د طیب اغا خپلوان دی، اکبر اغا نومیړي د جهاد له وخته پاکستاني مقاماتو سره خصوصي روابط لري او د طالبانو په استازولۍ کونسلګرۍ ته نه ورځي.

د اکبر اغا نوم مې بیا له ۲۰۰۵ وروسته هغه وخت واورېد چې د جیش المسلمین په نامه یې جنګي ډله اعلان کړې وه. د پاکستان د ځینې کشمیري ډلو او اشخاصو په مرسته یې د فعالیت هڅه کوله. که څه هم په داخل کې یې خاص

اثر نه درلود خو په پاکستان کې يې د طالبانو له ځينو پخوانيو غير فعال چارواکو سره اړيکې لرلې او يو شمېر واړه قوماندانان يې هم اکمالول. هغه په ځينو مجالسو کې دا خبرې کړې وې چې ملا محمد عمر نور کار نه شي کولای او د طالبانو د تحريک فعاليت نور ممکن نه دی ځکه چې پاکستان يې هم نه غواړي نو بايد خلک له ما سره ودريږي.

هغه وخت لا ډېرو ته دا يو ډول ټوکه ښکارېده چې په يوه بې باوره او بې اثره سړي پسې دې د طالبانو جنګيالي لاړ شي او هغه هم د ملا محمد عمر په ژوند کې!

د اکبر اغا ناسته ولاړه او د مقاومت ترتيب هم ډېر ساده او بربنډ و، ځکه ده فکر کاوه چې پاکستاني مقامات به يې د طالب غورځنګ په مقابل کې تقويه کړي، لکه څنګه چې ځينې کړيو او اشخاصو وعده هم ورکړې وه. ځينې داسې مبهمې پېښې چې طالبانو به يې پړه پرغاړه نه اخيسته اکبر اغا به ژورناليستانو ته زنګونه وهل او دا ډول پېښې به يې ځان ته منسوبولې چې له همدې امله د جيش المسلمين نوم ميډيا ته هم راووت.

کله چې د کابل شمالي کې د يوې خارجي مېرمنې د تښتولو په پېښه کې چې -د اکبر اغا او يوې افغان مافيا ترمينځ مشترکه موضوع وه- اکبر اغا تورن شو. دې کار خبره ورانه کړه، اکبر اغا په دې پېښه کې ښکاره تلفوني تماسونه نيولي وو، خارجيانو پر پاکستان فشار راوړ او اسناد يې ورکړل. همدا و چې پاکستاني ادارو د يوې معاملې په ترخ اکبراغا امريکايانو ته وسپاره، چې امريکايانو له څه وخته وروسته افغان حکومت ته وسپاره له دې سره جيش المسلمين هم له مينځه لاړ چې په حقيقت کې  تر ډېره له اکبراغا او د هغه له تلفونه عبارت و.

تعليمي پروسه ژوندۍ ساتل

په ۲۰۰۷ م کال کې موږ په دې بريالي شوو چې د طالبانو د مشرتابه توجه د تعليمي ادارو په اړه مثبتو اقداماتو ته را واړوو، خو دا کار که څه هم اوس تر ډېره بريالی ښکاري خو هغه وخت له اساسي خنډونو سره مخ شو. له يوې خوا مشرتابه د دې لپاره له شرايطو سره سمه تګلاره نه شوای برابرولای بل پلو د ډېرو سيمو جنګياليو لاهم د مشرتابه هدايت ته په دې اړه شا اړوله او تړلي ښوونځي تر کلونو پورې د ځينو طالب قوماندانانو د سيمه‌يزې پاليسۍ برخه وه او ممکن خال خال به لا اوس هم وي.

خو يو کار چې موږ پرې هغه مهال د لومړي ځل لپاره بريالي شو، هغه د تعليم لور ته د مثبتې توجه اساس اېښودل و. د ۲۰۰۷ کال په پيل کې له ملا برادر او ملا عبيد الله سره له اوږدو خبرو وروسته پر دې موافقه وشوه چې د امکان په صورت کې که کومې سيمې د طالبانو په پوره واک کې وي هلته دې طالبان خپل نصاب هم وچلوي. دا وخت طالبان په کم شمېر ولسواليو واکمن ول چې په هغو کې هم پوره استقرار نه و، خو دا يوه ښه اساس و. پر دې پروسه نور کار هم وشو، چې بيا دوه کاله وروسته د تعليم او تربيې کميسون هم جوړ شو.

هغه وخت چې کوم پرمختللی پروګرام په نظر کې و، نو د هغه لپاره د مالي بوديجې واکدار معتصم اغاجان مخالفت وکړ او دومره پيسې يې يوائې د جنګ لپاره مناسبې وګڼلې.

دا وخت به معتصم ته ورو دلګۍ مشرانو  له خپلو سيمو نه د دولت د پلويانو او عسکرو د وژلو ويډيوګانې راوړلې، په مقابل کې به معتصم هغوي ته پيسې ورکولې، په دې کې داسي واړه او ګمنامه جنګيالي هم ول چې د انجنو د مکتب د سوزولو پر سريې هم له معتصم نه پيسې اخيستې!

په دې اړه د زونونو او سيمو توپير بل ناورين و. د ځينې سيمو طالبانو دې کار ته نيغه توجه وکړه لکه د کونړ او پکتيا ځينې سيمې او ځينو بيا سړه پاليسي غوره کړه لکه د لوګر او غزني ځينې سيمې، خو ځينو بيا ورسره ښکاره مخالفت کاوه لکه د زابل او هلمند ځينې سيمې، چې دلته خبره ټوله د مزاج او ذوق وه، نه د فکر، عقيدې او فتوی. ما د ويياندانو کميټې ته دا پاليسي هم ټاکلې وه، چې  د انجنو د مکتب او کلينک سوزولو راپور به له چا نه اخلئ تر څو يې حوصله ماته شي او دا ډول عمليات پريږدي.

د ويياندانو کمېټه

په ۲۰۰٦ کې مفتي لطيف الله حکيمي چې د غورځنګ پوځي او سياسي يې وياندي کوله ونيول شو او کابل ته وسپارل شو. ملا برادر ما ته حال را واستاوه چې په دې اړه ورسره مرسته وکړم. ما ورته وويل چې زه خو خپله وياندي نه کوم البته ځينې سياسي او عامې اعلاميې درته اعلانولای شم. ما له پوځي وياندۍ له دې امله ډډه ونه کړه چې وېرېدم، بلکې د طالبانو په نظامي عملياتو کې ځينې پېښې ما ته بې مسئوليته او ناسمې ښکارېدې. ما نه غوښتل چې دغه نظامي پېښې اعلان کړم. هغه وويل ته يو ترتيب راجوړ کړه نور که ته خپله يواځې سياسي اعلاميې خپروې هم سمه ده.

ما دوه کسه يو د قاري يوسف په نوم چې زما پخواني ملګری و د جنوب لويديځ او شمال مغرب لپاره او بل د ډاکټر حنيف په نامه چې فرهنګي کمېسيون راته معرفي کړ او د استاد ياسر همکار پاتې شوی و د جنوبي، شرقي او شمال مشرق ولاياتو لپاره د مشرانو په هدايت د نظامي وياندويانو په حيث ميډيا ته معرفي کړل. هر يوه ته مو يو يو مرستيال وټاکه چې د نيول کېدو يا وژل کېدو په صورت کې به يې ځای ناستی وي.

**موږ یوه نوې نشراتي پالیسي تاسیس کړه او په مشرانو مو هم ومنله، چې په دې کې ګڼ نقاط ځای شوي وو، چې د ټولو یادونه دلته بحث او ږدوي، نو د بیلګې په ډول به د حزب اسلامي او حکمتیار په اړه زموږ د دې پالیسي څه نقاط دلته راوړم:**

**د ویاندانو په کمیټه کې موږ د حزب اسلامي او حکمتیار په اړه د نه غبرګون د پالیسي بنسټ کیښود، چې له نیکه مرغه زما نه وروسته هم دغه پالیسي تر ډیره عملي وه. موږ ویل ښاغلی حکمتیار ښایي د خپل مزاج او نورو عواملو له مخې وخت ناوخته پر طالبانو توندې نیوکې وکړي، خوکه موږ هغوي ته ځواب وایو، نو له یوې خوا به اصلي هدف ته زیان ورسیږي چې د یوه ستر نړیوال یرغل فرهنګي مقابله ده! بل پلو به موږ په یوه بې فایدې اوبې وخته مقابله کې ښکیل شو، چې دواړو لوریو ته به د زیان او ګډ دښمن ته به د فایدې سبب وګرځي.**

**بل لوری د ځینو مهم مشرانو په تاکید موږ له دې هم منع شوو، چې د ښاغلي حکمتیار د یرغل ضد پالیسیو او ویناوو تائید وکړو. د هغوي دریځ دا و چې د دوي په وینا په حکمتیار هیڅ باور نشي کیدي؛ تل دریځونه بدلوي که یو وخت په مقاومت کې خیانت وکړي او مقابل لورې ته واوړي بیا به زموږ تائیدي ویناوي زموږ لپاره پیغور وي!**

**خو له بدمرغه وروسته د انترنیتي لیکنو او فیسبوکي مقابلو په دورکې د طالب پلوه کشرانو او حکمتیار ترمېنځ ترخو تبلیغاتي ناندرویو فضا همد اسي بیخونده کړه، چې ښاغلي حکمتیار به دغه لیکني د طالبانو پالیسي فرضوله او دغبرګون ژبه به یې کافي عصباني او نامناسبه وه، فرهنګي کمیسون په دې اړه فیسبوکي ځوانانو ته له دې کاره د لاس اخیستو توصیې هم وکړې. خو موثرې نه وي.**

په دې ناندریوکې به چې حکمتیار د طالبانو خلاف لیکل کول نو په کابل کې د دولت کړیو او لویدیځو رسنیو به  د هغه خبرې بدرګه  کولې، هغوي غوښتل چې د ښاغلي حکمتیار او حکمتیار پلوه حزبیانو مخ د طالب پر لور واړوي!

د ویاندویانو دا وړوکې کمیټه  د نظم او فعالیت له اړخه  تر ډیره بریالۍ وه ، خو مالي ضعف پر فعالیت منفي اغیز لاره، دا وخت له یوې خوا د مقاومت مالي حالت هم ډېر ضعیف و، بل پلو موږ له مشرانو سره د شخصي انډیوالۍ لاین نه درلود. د امارت په وخت کې مستقیم له ملا محمد عمر سره په تماس کې وو او له واکمنۍ وروسته هم له مشرانو سره د تحریک د عامو ملګرو په توګه بلد وو چې له بده مرغه په طالبانوکې د شخصي انډیوالۍ لاین یو معمول دي. له همدې امله زما له خوا ټاکل شوې کمېټې ته سمه توجه ونه شوه ان چې د هغوی د سټلایټ تلفونونو د کارډونو او سفر ټول مصارف ماهانه سل ډالر هم نه ورکول کېدل، چې له همدې امله به ما هغوی ته د صبر تلقین کاوه چې د دې کار پایله بیا هم خطر و ،ځکه چې دواړه ویاندویانو به چې کله د سټلایټ د کریدیت کارډ پیسې نه لرلې نو ښارونو ته به نږدې کېدل او مبایل نه به یې کار اخیست، چې هغه وخت په افغانستان کې مبایل کمپنیو دومره انکشاف نه و کړی، خو په پاکستان کې یې بیا فعالیت پراخ و.

همدا دواړه ویاندویان د مبایل له شمېرو تعقیب شول چې یو یې په افغانستان کې د جلال اباد له ښاره سره نږدې ونیول شو او بل یې په پاکستان کې ونیول شو. د افغانستان استخباراتو ډاکټر حنیف له څو کالو زندانه وروسته په داسې حال کې خوشې کړ، چې د سرطان په ناروغۍ اخته و. بیا څو میاشتې وروسته په جلال اباد کې د شپې د هغه کور ته یوه ډله وسله‌وال ننوتل او هغه یې له خپلو دوو د تره زامنو سره چې د ده خویندې ورته ناستې وې او د هغوی خور ده ته ناسته وه یو ځای شهید کړ. درې کونډې پر یوه کور کېناستې او کشران

ورونه يې پاکستان بنديان کړل، چې بيا له يو کال زندانه ورسته خوشي شول. په پاکستان کې نيول شوی وياند اووه کاله د پاکستان په تور زندان کې تېر کړل او په ځوانه ځوانۍ يې پر سترګو پردې راغلې، چې بيا اپرېشن شو او اووه کاله وروسته په ناروغه حالت کې ازاد شو.

له نيول کېدو وروسته د هغوی ځای د هغوی نايبانو ونيو او کار جاري پاتې شو. د ۲۰۰۷ په اخير کې ما له دې کاره لاس واخيست او شخصي ژوند مې پيل کړ. له هر چا سره مې روابط ختم کړل، بيا چې په ۲۰۱۲ کې د مرحوم ملا اختر محمد منصور له خوا د همکارۍ راته وويل شول بيا مې هم کوم مسئوليت قبول نه کړ. البته د ځينې بشري او سياسي چارو په برخه کې مې موقته همکاري ورسره وکړه. له دې سره سره په سياسي او بشري مسايلو کې مې ځينې مهمې مشورې ورکولې چې دا د هغه غوښتنه وه. په ۲۰۱۵ کې ملا اختر محمد منصور د شورى له خوا مشر شو او په ميډيا کې د دې مسايلو د وضاحت ضرورت شو. ما د دغه وضاحت لپاره له رسنيو سره معلومات شريک کړل او رسنيزې مرکې مې وکړې. په ۲۰۱۶ کې چې ملا اختر محمد منصور د امريکايي ډرون له خوا شهيد کړای شو. له هغه وروسته بيا ما پر کور ناسته غوره کړه او اوس په طالبانو کې کومه دنده نه لرم.

### د ملا محمد عمر وفات او اختلافات

له کومې ورځې چې ملا محمد عمر له کندهار ښاره د ټولو وسلهوالو طالبانو له وتلو وروسته په خپله يوه سراچه موټر کې تنها له څو ملګرو سره ووت او له هغه ځايه سيده د زابل سرخکانو سيمې ته لاړ، هلته يې د سيمهييزو طالب قومندانانو يوه غونډه را وبلله او د جهاد د بيا پيل لپاره يې دغو قومندانانو ته څه پيسې او مصارف هم ورکړل او وخت يې هم ورته وښود. په دې قومندانانو کې اکثره اوس په دنيا کې نه شته. لکه ملاعبدالرزاق نافذ، ملا روزي خان، ملا

محمدګل نیازی، جهادیار او یو شمېر نور... له هغه وروسته ملا محمد عمر له خپلې یوې مختصرې ډلې سره په زابل ولایت کې په خپله د وسله‌وال جهاد اراده لرله او ویل کیږي چې په ځینو نښتو کې یې هم برخه واخیسته، خو بالاخره ملګرو ورته وویل چې ستا وجود او بقاء د ټول تحریک لپاره حیاتي موضوع ده. ستا پوځي عملیات دومره مهم نه دي، لکه رهبریت، همغه و چې ملا محمد عمر د ملګرو په تاکید او مشوره ځان ګوښه کړ او د یو څو مخلصینو په ملتیا یې په یوه غرنۍ سیمه کې استوګنه غوره کړه. هغه لومړی د خپلو خاصو مخلصانو یو کور انتخاب کړ، بیا یې له څه مودې وروسته بل کور انتخاب کړ چې بالاخره یې په همدې کور کې یوه وړه ساده خونه د ده د استوګنې لپاره برابره کړه ، په دې خونه کې یې د اوداسه ځای او یو ساده تشناب هم ورته جوړ کړل. ملا محمد عمر مجاهد تر وروستۍ سلګۍ په همدې کور کې مېشت و.

د دوه زره دریېیم میلادي کال په لومړیو کې ملا محمد عمر یو کیسټ خپلو مجاهدینو او مشرانو ته راواستوله چې په هغه کې یې د نوي جهادي بهیر او مقاومت لپاره ملا برادر اخوند لومړی مشر، ملا عبید الله دوهم مشر نوموليي وو، دغه کیسټ ما واوریده ،ملا صیب په دې کیسټ کې ملا برادر او ملا عبید الله په نوبت سره د تحریک مشران او خپل نایبان نومولي او په یوه بله وینا کې یې د شورا لپاره لس نومونه یاد کړي وو.

ما د مشر دوهم کیسټ په ۲۰۰۷میلادي کال کې هغه وخت واورېده چې د ملا داد الله ورور ملا بخت ته یې (چې ځان یې په منصور داد الله نوموليی و) په کې توندې جملې کارولې وې. ملا بخت چې بیا په منصور داد الله مشهور شو، په هلمند کې د امریکایي بمبارۍ په ترڅ کې د ملا داد الله د شهادت په اړه د ملا داد الله دوه نږدې ملګري ملا نسیم او ملا عبدالباري د خپل ورور په وژنه کې

په لاس لرلو تورن کړل او د څو ورځو شکنجو وروسته یې د هغو په خوله یو لیست اعلاناوه چې تقریبا د طالبانو ټول لوړ رتبه غړي یې یادول چې دوی د دې قتل امر راته کړی و. په داسي حال کې چې په دې کې یې د داسې خلکو نومونه هم یادول چې هغه د داد الله د شهادت پر وخت لا له تحریک سره دوهم ځل نه و یو ځای شوی اونه ورسره تحریک په تماس کې و. د هغه پر دغه عمل چې ملا محمد عمر خبر شو، نو هغه فکر وکړ چې دا باندنۍ دسیسه ده چې غواړي د امارت ټول مهم کسان له همدې لارې له مینځه یوسي. ملا محمد عمر په دې اړه دوه برخې پیغام راواستاوه، په یوه کیسټ کې یې د ملا داد الله ملګرو ته ویلي وو چې ملا داد الله په خپله یو ربښتینی مجاهد و او په همدې لار کې شهید شو، خو دا ورور یې زه نه پېژنم او نه یې په تحریک کې پرېږدم. هغه د منصور داد الله په اړه په ساده الفاظو کې ویلي: "چې ما تر اوسه دومره بې حیا او بي شرم انسان په طالبانو کې نه دی لیدلی، نو زه هیڅ وخت دا سړی په تحریک کې نه پرېږدم، تاسو د ملا داد الله اخوند ملګري سره کښېنئ او په خپل مینځ کې یو کس مشر کړئ".

دوهم پیغام یې په وزیرستان کې بیت الله مسعود ته ثبت کړی و، هغه هم ما واورېد. په هغه کې یې ویلي وو چې دغه وحشي انسان دوه طالبان نیولي او په زور یې له خولې رنګا رنګ خبرې باسي. تاسو دغه دوه کسان ورنه خلاص کړئ او ازاد تحقیق ورنه وکړئ، که واقعا مجرمان وو، نو شرعي حد ورباندې جاري کړئ، که نه خوشې یې کړئ. له هغه وروسته بیت الله مسعود کوشش کاوه چې دا کسان ورنه خلاص کړي، خو کله چې ملا بخت (داد الله منصور) پر ځان پوه شو، نو له دواړو کسانو نه یې سرونه پرې کړل او په خپله له وزیرستانه وتښتېد.

د ملا داد الله ملګرو ځان ته مشر وټاکه، خو منصور داد الله د قومیت پر بنسټ د کاکړو د قوم ځینې ځوانان له ځانه سره کړل. د پاکستان د بلوچستان ایالت د ژوب او قلعه سیف الله په ځینو برخو کې به له څو موټرونو او ګڼو وسلهوالو کسانو سره ګرځېده، ویل کیږي چې د کاکړو ځینې قومي مشرانو یې هم ملاتړ کاوه او حکومت ته یې هم د ده په اړه ډاډ ورکړی و. د هغه پلویانو د ژوب پرمولانا محمد خان شېراني ناکامه برید هم کړی و، چې د دوی په لاس د سیمهییزو خانانو دسیسه ګڼل کېده. بلاخره منصور داد الله د ۲۰۰۸ د فبرورۍ پر یوولسمه د لورلایي او قلعه سیف الله ترمینځ پر یو چیک پوسټ د پاکستان له امنیتي ځواکونو سره خبره واړوله او یو پر بل یې ډزې وکړې چې د ډزو په پایله کې پاکستاني ملیشې منصور دادالله په زخمي حالت کې بندي کړ او بیا یې په دوه زره څوارلسم میلادي کال فبرورۍ کې په پاکستان کې د یو شمېر بندي طالبانو په لړ کې بېرته خوشی کړ. د ۲۰۱۵ په اتلسمه منصور دادالله له بلوچستانه د هېواد د زابل ولایت خاک افغان ته کډه شو او د فبرورۍ پر لومړۍ نېټه یې رسنیو ته د خپل تګ خبر او علت په ډاګه کړ. د ۲۰۱۵ د نومبر په یوولسمه (چې د ۱۳۹۴ لړم شلمې سره سمون خوري) زابل خاک افغان ولسوالۍ کې له څلور تنو ملګرو سره یو ځای طالبانو سره په یوه نښته کې ووژل شو چې جنازه یې د طالبانو د ځانګړې قطعې مشر پیر اغا په خپله وکړه.

وروستی ځل مې د مشر درېیمه کیسټه د ۲۰۰۹ په وروستیو کې اورېدلې وه چې اواز یې ډېر زهیر او له غبره یې ناروغۍ ښکارېدله. په ډېر مشکل یې اواز راووت. دا کیسټ د معتصم اغاجان د لېږې کولو په اړه وه. ملا محمد عمر په شفاهي پیغام کې ملا برادر ته ویلي وو چې ملا اغاجان او ملا عبد الجلیل نور په تحریک کې باید دندې ونه لري. ملا محمد عمر اغاجان ته د افغانستان بانک نه د را ویستل شویو پیسو په نه سپارلو او د نورو مالي مراجعو په

شخصي تصرف په غوسه و او ملا عبد الجلیل ته له ګاونډي هېواد سره د خفیه اړیکو او همکاریو پر سرغوسه و.

ملا برادر او مرستیال یې ملا اخترمحمد منصور د مصلحت له مخې اغاجان له مالي چارو له ګوښه کېدو وروسته د سیاسي کمېسون مشر غوره کړ، ځکه چې دا کمیسون دغه وخت کاري جنبه او خاص ارزښت نه درلود، خو اغاجان د همدې کمېسیون له ادرسه بېرته مالي مراجعو ته د لاس رسي هڅې پیل کړې. دا وخت طیب اغا له مشره د خلیجي هېوادونو د مالي مرستو د را ټولو اختیار او اجازه اخیستې وه، خو اغاجان یې مخه نیوله. له دې سره د طیب اغا او معتصم اغاجان لانجه اوږده او درنه شوه، چې دا وخت ملا برادر مشر ته بیا شکایت واستاوه او په دې اړه یې وروستی فرمان وغوښت.

اغاجان معتصم چې اصلي  نوم یې عبدالواسع و د طالبانو د واکمنۍ پرمهال د ملا محمد عمر د جهادي ملګري ملا ګل اغا له خوا ملا محمد عمر ته معرفي شوی و، لومړی د ملا محمد عمر باډی ګارډ و، خو وروسته پرې ملا محمد عمر ډېر باور وکړ. هغه له هغه وخته ظاهرا ملا محمد عمر ته  مطیع و، چې له امله یې په کلیدي پوستونو مقرر شو .که څه هم زه  شخصا له معتصم صیب سره نږدې نه یم پاتې شوی اونه مې ورسره کاري تعلق پیداشوی، خو په عامه توګه چې ما هغه مطالعه کړی نو هغه نالوستی، د مرفع ژوند او مشري شوقي طالب چارواکی و  او له بده مرغه  هغه د ملګرو تر منځ  په دولتي کارونوکې انحصار طلبه او دیکتاتور سړی و، خو د طالبانو ترمېنځ د هغه تر ټولو ستر عیب د تحریک له مالي بودیجې سره نامسئوله چلند او د امانت داري ضعف ګڼل کیږي، چې لامله یې د طالب مشرتابه حوصله او زغم هم ورته صفر شول، خو له دې سره سره  هغه یو پورکاره،هڅاند او پر اقتصادي سرچینو برلاسی طالب

هم و ، چې دا د ښاغلي معتصم یو ښکاره مثبت اړخ ګڼل کیدای شي. مګر له بده مرغه په شخصي ژوندکې یې ځینې ځورونکې اړخونه هم لیدل کېږي.

د هغه نږدې ملګري یې ځینې عجیبې کیسې بیانوي. ډېری ملګري یې وایي چې خپل والد به یې ډباوه، بیا به یې دلیل دا وایه چې زما خبرې نه مني! همدا راز د هغه خاص ملګری ملا بخت الرحمن ذاکري وایي یو ځل په هیئتی کې د فاریاب اندخوي ولسوالۍ ته لاړو. هلته معتصم صیب امنیه قوماندان ته فاحشه کنځل وکړل. قومندان او ملګرو یې معتصم سخت وډباوه. همداراز ذاکري وایي چې له مزاره په ترانسپورتي الوتکه کې له معتصم سره ملګری وم. معتصم د الوتکې کیبین ته لاړو. هلته د نقشې کتلو د انجینر پر څوکۍ کېناست. انجېنر په معذورانه لهجه خواهش وکړ، چې دا څوکۍ زما لپاره ده، خو معتصم ورته غوسه شو چې چېرې بل ځای کېنه! هغه ورته وویل چې ملا صیب! یواځې په همدې څوکۍ دا دنده سرته رسېدای شي. معتصم پیلوټ ته پر مخ سوک ورکړ او د هغه پر مخ وینې راتوي شوې.

د طیب اغا د دفتر ملګری ملا احمدجان احمدي وایي: له معتصم سره مې له کندهاره کابل ته ډرېوري کوله چې په ستره مخابره کې پرې ملا محمد عمر غږ کړل. د ملا صیب اواز له ډېرې پرېشانۍ لوېدلی و، له معتصم نه یې وپوښتل چې د خرقې شریفې هدیره کې د عصمت مسلم قبر چا کندلی؟ دا خو ډېر غیر اسلامي او سپک کار دی! معتصم بې تکلفه ورته وویل دا کار خو ما وکړ، ځکه چې ملا غازي راته وویل. ملا محمد عمر له غوسې مخابره آف کړه!

د مامورینو ډبول، تهدیدول او ښکنځل د معتصم یو ناوړه معمول و، چې له همدې امله به موږ ځینو خاصو ملګرو په کندهار کې په خپلو کې په ملا محمد عمرمجاهد یو اعتراض دا هم کاوه، چې معتصم او ملا خاکسار غوندې خلکو

ته يې ولې دومره مخه ورکړې! ځکه چې دوي دواړو به له خپلې دندې د باندې کله ناکله ځينې بوږنوونکې حرکات کول.

معتصم د طالبانو د واکمنۍ له نړېدلو څخه وروسته د طالبانو مالي بوديجه له کابله نقل کړه او بيا يې تر پايه مشرتابه ته تسليم نه کړه. د پيسو او مصارفو په بدل کې يې پر ځان يو شمېر خلک هم راجمع کړل. خاص مامورين يې هم لرل. د هغه د خصوصي مامورينو معاش به د تحريک له مامورينو درې چنده زيات و.

کله چې ملا برادر ملا محمد عمر ته حال استاوه نو مرستيال يې ملا اختر محمد منصور ورته وويل چې موږ به د دې خبرې څه ځواب مشر ته ورکوو، چې هغه راته ويلي وو، چې هيڅ دنده به نه ورکوئ خو موږ په خپل سر سياسي کمېسيون ورکړ. مجبور شول چې مشر ته د قاصد په خوله ټول جريان واستوي، مشر يې په ځواب کې کيسټ راواستوله.

ملا محمد عمر په دې اډيو کيسټ کې معتصم له هر ډول مالي چارو منع او منفک اعلان کړی او هغه يې په مالي برخه کې په شخصي لاسوهنه او بې اطاعتۍ تورن کړی. همغه و چې معتصم له هر ډول دندې گوښه کړای شو چې بيا د ۲۰۱۰ په اگست کې د کراچې ښار په يوه څنډه کې د نامعلومو وسله‌والو په يوه بريد کې له سخت ټپي کېدو څه موده وروسته لومړی کابل او بيا ترکيې ته ولاړ.

په دې وروستۍ کيسټ کې ملا محمد عمر د پرېشاني تر څنگ پوره غوسه هم ښکاري. ملا محمد عمر يو ځای وايي: دا به د کوم مشر لپاره د منلو وړ وي چې مالي مسئول يې ځان مالي متصرف کړی وي او بيت المال ورته شخصي ملکيت ښکاري...

خو يو شی چې په دې کيسټ کې ډېر واضح و، هغه د ملا محمد عمر په اواز کې د تنفسي يا سينې د ناروغۍ څرګندې نښې وې، دغه ټولې کيسټې اوس هم د مشر له ځينې نږدې ملګرو سره خوندي دي..

د ملا محمد عمر لپاره د قاصد طريقه دا وه چې هغه به لومړی يوې بلې ولسوالۍ ته تللو، بيا به يې هلته د ملا محمد عمر له لوري له ورغلي قاصد سره خبره شريکه کړه، بيا به يې له همدې لارې د ملا محمد عمر پيغام يا کيسټ ترلاسه کوله. دا کار به کله په دوه مياشتې کله له دې هم کم وخت کې ترسره کېده، خو ډېر وخت به له دې زيات ځنډ راته. کله به چې کومه ډېره نوې حادثه رامينځ ته شوه، نو بيا به قاصد ډېره هڅه کوله چې د يوې هفتې او لسو ورځو ترمينځ پيغام تبادله کړای شي.

د ۱۳۹۲م هجري کال د وري د مياشتې ورستيو ورځو کې د ملا محمد عمر ناروغي سخته شوې وه، کوربه لومړی هغه ته يو معتمد سيمه‌ييز ډاکټر راوستی و، خو ډاکټر د ناروغۍ مترقي حالت ته بې وسه و، او کوربه ته يې ويلي وو، چې دا ناروغ باريکو ټيسټونو او تفصيلي علاج ته اړتيا لري. قاصد په دې ورځو کې نه و ورغلی، کوربه اړ شو، چې له دې حالته کورنۍ او مشرتابه خبر کړي، کوربه سفر کوي او لومړی يې کورنۍ خبروي. د ملا محمد عمر زوي مولوي محمد يعقوب او نسبتي ورور مولوي عبدالمنان ته يې خبر ورکړ. کله چې هغوی د تللو تابيا ونيوله، مازيګر ناوخته روان شول، پر لار يې شپه شوه. پر سبا يې خبر راغی چې ملا صيب وفات شو. ملا محمد عمر مجاهد د ۱۳۹۲هجري د ثور د مياشتې په څلورمه نېټه چې د ۲۰۱۳ ميلادي کال د اپريل له ۲۴مې سره يې سمون خوړ، د چارشنبې ورځ پر مازيګر مهال سا ورکړه. د ملا محمد عمر مورنی ورور ملا عبد المنان او زوی يې ملا محمد يعقوب څو

ورځې وروسته ورغلل او خاورو ته یې وسپاره. دوی دواړه وایي چې د ملا محمد عمر وجود سالم و خو د سختې ناروغۍ اثار ورباندې ښکارېدل.

د ملا محمد عمر زوی او ورور وایي چې کال وړاندې لا د ملا محمد عمر له ناروغۍ خبر وو، خو دومره جدې یې نه ګڼله او کوربه وایي ملا محمد عمر له څو کالو راهیسې د سینې ناروغي لرله، د سیمه‌یزو ډاکټرانو له خوا ترلاسه کېدونکې درملو کار نه ورکاوه او په خپله ملا محمد عمر هم د تداوۍ کوښښ نه کاوه، بلکې عادي یې ګڼله او په وروستي کال چې تکلیف زیات شو، موږ ته یې د تداوي په نیت بل ځای ته د انتقال اجازه نه راکوله، چې بالاخره یې درد ټول وجود ته سرایت وکړ، چې دا د پرمختللې ټي بي ناروغۍ علامه وه، خو په بیمارۍ کې یې تر مرګه شکایت نه کاوه.

### د مشرتابه خبرېدل او د علماوو ناسته

د ملا محمد عمر زوي مولوي یعقوب او ناسکه  ورور ملا عبدالمنان د ملامحمد عمر له وفاته وروسته لومړی د اسلامي امارت د دارالافتا رییس مولوي عبد الحکیم او د قضاء رییس مولوي هبت الله اخندزاده خبر کړل، خو هغوی ورته وویل چې نور د امیر په نه  موجودیت کې هر ډول کار شرعي بڼه نه لري، باید زعامت وټاکل شي که په پټه وي، که ښکاره.

له دې وروسته شیخ عبدالحکیم، شیخ عبدالسلام او مولوي هبت الله اخندزاده، د ملا محمد عمر زوی مولوي محمد یعقوب، د ملا محمد عمر ورور ملا عبدالمنان، د  ملا محمد عمر د دفتر پخوانی مسئول عبدالسلام کاتب او د ملا محمد عمر قاصد سره راټول شول او د ملا محمد عمر نایب ملا اختر محمد منصور یې راوغوښت او د خپل مشر له وفاته یې خبر کړ. ملا اختر محمد منصور ته یې ټوله موضوع وړاندې کړه. ملا اختر محمد منصور ورته وویل چې د دې سترې پېښې په رامینځ ته کېدلو هر ډول تصمیم د څو کسانو اختیار نه

دی. باید د شورى ټول اعضاء په جریان کې وي، خو ملا عبد المنان او ناستو شیخانو ملا اختر محمد منصور ته وویل چې که داسې وشي، نو د ملاصیب د مرګ خبره پټه نه پاتې کیږي. دا وخت چې امریکایانو د وتلو اعلان کړی او نور هم حالات باریک دي، د ملا محمد عمر د مرګ اعلان ستونزې زیږولای شي، نو په کار ده چې یوه محدوده اهل الرایه ډله چې په راز ساتلو یې باور کېدای شي د نوي زعیم د ټاکنې کار ترسره کړي. کله چې حالات او وخت مساعد شول، د مشر وفات به اعلان شي او عامه بیعت به هم وشي، خو د منصور له ډېر ټینګاره وروسته ملا عبدالمنان په دې قانع شو، چې د شورى یو څو مهم اعضاء او د مرکزي ولایاتو یو تن مشهور عالم دې هم په جریان کې شي.

ملا اختر محمد منصور د ډېرو کسانو د خبرولو اراده لرله، خو د ملا منان له ډېر ټینګاره او د شیخانو له تایيده وروسته په دې فیصله وشوه چې د امارت پخواني قاضي القضات مولوی نور محمد ثاقب چې دا وخت د رهبري شورى غړی هم دی، د نظامي کمېسون مشر ملا عبد القیوم ذاکر، ورسره د هغه مرستیال امیر خان حقاني دي په جریان کې شي چې دواړه د رهبري شورا غړی هم دي او هغه کس دې هم راوستل شي چې د چا په کور کې ملا محمد عمر دولس کاله ژوند کړی او هلته یې سا ورکړې ده.

د دوهمې ناستې لپاره یوه هفته وروسته وخت وټاکل شو. هفته وروسته هغه کس هم راورسېد چې کور کې یې ملا محمد عمر وفات شوی و. دوهم مجلس ته دغه څلور کسه ورزیات شول. مولوي نور محمد ثاقب، ملا عبد القیوم ذاکر، د ملا محمد عمر کوربه (چې ملا محمد عمر یې ترمرګه په کور کې اوسېده) او ملا امیر خان حقاني چې ټول تقریبا لسو تنو ته رسېدل. په دغه ناسته کې لومړی د ملا محمد عمر کوربه وپوښتل شو چې ټول جریان ناستو کسانو ته ووایي. هغه ټول جریان ووایه او ویې ویل چې ملا صیب د زعامت په اړه هیڅ

ډول توصیه نه ده کړې، بلکې د ژوند تر وروستۍ سلګۍ یې د امارت موجوده تشکیل ته هدایات ورکول او د نوي کس په اړه یې کله هم کومه اشاره یا خبره نه ده کړې.

وروسته څلور واړه علماء، د طالبانو د دارالافتا رییس مولوي عبدالحکیم، د قضاء عمومي رییس مولوي هبت الله، د هغه مرستیال مولوي عبدالسلام او پخواني قاضي القضات مولوي نور محمد ثاقب له ټولو ناستو کسانو وکالت او اختیار واخیست. په خپلو کې سره کېناستل او نور ټول یې بهر بلې خونې ته وویستل. تقریبا تر دوه ساعته خپل مینځي بحث او مشورو وروسته یې بېرته ټول راوغوښتل. لومړی یې د امارت پر شرعی حثیت ترغیبي خبرې ورته وکړې. وروسته یې وویل چې موږ له مشورې او غور وروسته دا فیصله وکړه؛ لکه څنګه چې مشر په خپل ژوند کې ملا اختر محمد منصور خپل نایب پرېښی و او اوس هم بله داسې بدیله څېره نه ښکاري چې په دې وخت کې ټول پرې راجمع شي او که چېرې په دې وخت کې د بل چا نوم واخیستل شي، په خپله خلکو سره تشویش او شکوک پیدا کیږي او د مشر د وفات خبره هم بیا نه شي پټېدای، نو همدغه ملا اختر محمد منصور دې د ملا محمد عمر پر ځای مشر وي.

له دې وروسته شیخ عبدالحکیم د بیعت په نیت د ملا اختر محمد منصور لاس ور کش کړ، خو ملا اختر محمد منصور سخت خولې خولې او تر تاثیر لاندې و، لاس یې نه ورکاوه. شیخ یې په زوره لاس کش کړ او بیعت یې ورسره وکړ. بیا ورپسې درې واړو شیخانو بیعت وکړ. له هغه وروسته عبدالقیوم ذاکر د منصور لاس ونیو او له ډېرو احساساتو نه یې لاس ورښکل هم کړ او بیعت یې وکړ. بیا امیر خان حقاني بیعت وکړ، ورپسې د کور مالک او نورو حاضرینو بیعت وکړ، خو دا وخت ملا منان لاس ورنه کړ، چې کله شیخانو هغه ته د

بیعت وویل هغه وویل چې زموږ د کورنۍ حیثیت او د مشر نایب هم باید معلوم شي. په دې سره عبدالقیوم ذاکر هغه ته جدي شو چې ته کشر سړی یې، دې خبرو کې کار مه لره او بیعت وکړه. همغه و چې ملا عبد المنان هم بیعت وکړ.

د هغه له بیعته وروسته شیخانو عبد المنان ته وویل چې تا ته به مناسب خدمت در وسپاري، ستاسي کورنۍ به هیڅکله امارت شا ته نه پریږدي.

څنګه چې ملا محمد عمر د هغه د قاصدانو په وینا په خپل ژوند کې د خپل نسبتي ورور په اړه دا نظر درلود چې هغه باید یوازې زما کورنۍ سمبال کړي او په امارت کې کوم ستر مسئولیت ونه لري، له همدې امله د ملا محمد عمر تر مرګه پورې ملا عبد المنان کوم مسئولیت په طالبانو کې نه درلود، خو له دغې ورځې وروسته د نوي مشرتابه له خوا هغه د رهبري شورې غړی او د نظامي کمیسیون ناظر ونومول شو.

په دې مجلس کې په متفقه ډول ملا اختر محمد منصور د ملا محمد عمر پر ځای د طالبانو امیر منتخب شو او علماوو له ټول مجلسه عهد واخیست چې تر مناسبو حالاتو به د مشر د وفات خبر تش راز وي او له دې مجلسه به بهر نه وځي.

له دې کاره څو میاشتې تېرې شوې چې د جنوب د یو شمېر مهمو پوځي قومندانانو او عبد القیوم ذاکر ترمینځ یو لړ ستونزې پیدا شوې. ذاکر غوښتل چې یو شمېر نظامي ګروپونه او دلګۍ یو په بل کې مدغمې کړي او ځینې ختمې کړي او همداراز د ټول هېواد په کچه وسلې معلومې او نمره کړي چې دا یو ډېر ستونزمن کار و.

دغې پروسې د ذاکر او طالب قومندانانو ترمینځ شخړې وزیږولې. خبره شورا او ملا اختر محمد منصور ته ورسېده. ملا اختر محمد منصور د ډېرو قومندانانو د

شکایت په وجه د ذاکر له دغو اقدماتو سره مخالفت وکړ. ذاکر ته يې سپارښتنه وکړه چې دا ډول اقدامات ستونزې پیدا کوي. له دې نه صرف نظر شه. د منصور دغه موقف د شورى مهمو غړو هم تایید کړ چې له امله يې عبد القیوم ذاکر د استعفاء او کار پرېښودو ګواښ وکړ. ملا اختر محمد منصور ورته وویل چې استعفاء مه کوه. حالات نازک دي او زموږ تاسو ترمینځ د مشر د وفات موضوع هم پټه ده. هغه کسان چې د مشر د وفات په راز کې شریک ول لکه امیر خان حقاني، هغوی هم ورته عذر وکړ، خو د عبد القیوم ذاکر د زیات ټینګار له امله مشرتابه له نظامي کمیسیونه د هغه استعفاء منظوره کړه، خو د شورى د غړي په حیث يې د هغه د همکارۍ غوښتنه وکړه.

څو میاشتې عبد القیوم ذاکر پر کور کېناست. له څو میاشتو وروسته يې علماوو او هغه خلکو ته چې د خفیه تعین له رازه خبر وو، خبرداری ورکړ چې زه پر تحریک نیوکې لرم او له مشره ګیلې لرم، که دا ونه منل شي زه د د مشر ملاصیب د وفات موضوع د خلکو مخ ته ږدم. په جواب کې امیر خان حقاني ورته وویل چې دا خو ډېر ماشومانه حرکت دی چې که ستا خبره څوک نه مني نو ته دغه اسرار وایې، که نه، نه يې وایې!

بالاخره د علماوو په توسط عبد القیوم ذاکر او ملا اختر محمد منصور سره جرګه شول. ملا عبد القیوم ذاکر لس اعتراضونه او غوښتنې وړاندې کړې چې یوه هم په کې دا وه چې ما ته دې بېرته د نظامي کمیسیون مشري راوسپارل شي. منصور د هغه نهه غوښتنې ومنلې، خو له دې یوې غوښتنې يې انکار وکړ او ورته ویې ویل؛ که زما مشري منې نو هر کار چې زه درته سپارم هغه به کوې. څوک چې په خوله کومه رتبه غواړي، زه يې نه شم ورکولای.

درېیمانو علماوو ورته وویل چې نور ته ملامت يې ستا نهه خبرې ومنل شوې. له دې یوې ته تېر شه، خو عبد القیوم ذاکر قانع نه شو، همداسې خفه لاړ.

هغه د ۲۰۱۴ له نیمايي په ځينې خاصو حلقو کې د مشر د وفات موضوع ياده کړه چې له همدې امله به کله ناکله دا اوازه بهر ته هم راووتله. د ۲۰۱۵ له پیله هغه دا خبره په ډېرو محافلو کې ياده کړه چې داد الله منصور او ځينې نورو خلکو ته هم ورسېده.

د سيمې ځينې استخباراتي کړيو او ميډيا هم دا موضوع بيا بيا راپورته کړه، خو د طالبانو د رسمي موقف له امله ګونګه پاتې شوه. بالاخره چې د شعبان په مياشت کې عبد القيوم ذاکر د خپلو ملګرو او يو شمېر قومندانانو په حضور د ملا محمد عمر د فاتحې مراسم پيل کړل. خبره په طالبانوکې په قوت سره وښورېده. ملا اختر محمد منصور مجبور شو. د علماوو په مشوره يې د شورى يو شمېر له پېښې ناخبره خو با اعتماده اعضاء را وغوښتل او مشوره يې ورسره وکړه، چې په دې کې ملا محمد حسن اخوند ،مولوي حمدالله نانى،خليفه سراج الدين، اميرخان متقي، مولوي عبدالکبير، مولوي عبداللطيف منصور اونور وو...

هغوى مشوره ورکړه چې د روژې له مياشتې وروسته دې د مشر د وفات خبر اعلان شي او په ښکاره دې د امير انتخاب وشي. همدا و چې له کوچني اختره وروسته د ۱۳۹۴ د زمري په پينځمه په همدې موخه د شورا غونډه دايره شوه چې په کې د رهبري شورى لاندې غړي وو:

ملا محمدحسن، مولوي احمدالله نانى، مولوي عبدالکبير، مولوي عبدالطيف منصور، مولوي نورمحمدثاقب، ملا اميرخان حقاني، حافظ عبدالمجيد، ملاګل اغا، خليفه سراج الدين، مولوي اميرخان متقى او د علماوو له ډلې هبت الله اخندزاده، شيخ عبدالحکيم، مولوي فريدمحمود ګډون درلود. ملا عبدالمنان او عبد القيوم ذاکر هم غونډې ته راغلل خو د بيعت پر وخت له مجلسه ووتل. ملا عبد الرزاق او ملا حسن رحماني او ملا محمد رسول ته يوه ورځ انتظار وشو،

خو چې کله هغوی وویل چې دوی په غونډه کې ګډون نه غواړي او نه شي کولای چې دې غونډې ته حاضرشي، نور د مجلس ګډونوالو ځان مجبور وګاڼه، چې اقدام وکړي.

ملا اختر محمد منصور لومړی ورځ غونډې ته راغی او د شورى د غړو او علماوو په حضور يې د مشر د وفات ټوله کیسه وکړه او بیا یې د علماوو او د شورى د یو شمېر غړو له خوا د شوې پرېکړې په یایله کې د خفیه بیعت کیسه وکړه. اخير کې يې مجلس ته وویل: ما تر دغه ځایه دا امانت را ورساوه، نور تاسو پوهیږئ چې څه فیصله کوئ. زه هم خپل اختيار تاسو ته درکوم، هر څوک چې تاسو غوره کړ، هغه زما هم امیر دی.

نور له غونډې ووت. غونډه یوه ورځ او شپه روانه وه. عبد القيوم ذاكر وویل چې په کاندیدانو کې دې اختر محمد منصور نه وي. ټولو غړو ورته وویل چې یوازې ستا په غوښتنه دا نه شي کېدای چې د شورى اکثر یا ټول غړي پر چا لاس کېږدي باید بیعت ورسره وشي. کله چې نوره ټوله موجوده شورى له جر وبحثه وروسته په اختر محمد منصور متفقه شوه، ذاكر انکار وکړ. دې سره د شورى غړو او علماوو هغه ته عذر او زارى وکړې. هغه ظاهري دلیل نه درلود، خو له بیعته یې انکار کاوه.

دا وخت د ملامحمد عمر ناسکه ورور عبد المنان او ذاکر له غونډې ووتل. عبد المنان وویل وخت ته اړتیا لري. سمدستي بیعت نه شي کولای. شورى اختر محمد منصور راوغوښت او ورته ویې ویل چې د اکثرو غړو اتفاق پر تا راغی. بله لار نه شته. ملا اخترمحمد منصور وویل که پر ما رښتیا د ناستو خلکو اتفاق راځي، زه ستاسې خبره منم خو ټول به عهد راسره کوئ چې یواځې به مې نه پرېږدئ، بلکې په هر کار کې به راسره مرسته کوئ. ټولو ناستو د

همکارۍ وعده ورکړه او بیا ورسره بیعت وشو. په دې سره د شورا پاتې غړو له اختر محمد منصور سره بیعت وکړ.

په سبا د زمري د میاشتې په اتمه د ملا محمد عمر مجاهد د مورني ورور ملا عبد المنان او زوی ملا محمد یعقوب په مشوره د ملا محمد عمر د وفات په اړه رسمي اعلامیه خپره شوه او د والیانو او قومندانانو یوې غونډې ته چې په سلګونو کسان وو، ملا اختر محمد منصور وینا وکړه او د خپل غورځنګ راتلونکی مسیر یې تشریح کړ، چې ورپسې د غونډې ګډونوالو هم بیعت وکړ. د شورۍ په غایبو غړو کې مولوي سید شریف او عبدالسلام کاتب د خپل بیعت اختیار همدغو غړو ته رالیږلی و چې نوی مشر یې تعین کړ. له قطر نه هم له محمد طیب اغا او مولوي نېک محمده پرته، نورو ټولو غړو چې درې په کې د رهبرۍ شورۍ غړي هم ول، د زمري د میاشتې په یویشتمه د یوې غونډې په ترڅ کې له نوي امیر سر بیعت اعلان کړ، چې په دې سره نوی امیر د رهبري شورا له اتلسو غړو د پینځلسو او د تحریک د ټولو والیانو او د کمېسیونونو د مشرانو او پوځي قومندانانو په بیعت سره د امیر المومنین تر لقب لاندې غوره شو.

د ټولو مسئولینو، علماوو او والیانو، ولسوالانو بیعتونه مسلسل په غږ او ویډیو کې د طالبانو په رسمي ویب پاڼه کې تر څو هفتو خپرېدل.

د همدې کال د اګست په دولسمه د القاعده مشر ایمن الظواهري خپل بیعت په غږ کې د انټرنیټ له لارې اعلان کړ. له دې نه وروسته یو ځل بیا د ځینې چارواکو له خوا پر عبد القیوم ذاکر مسلسلې جرګې وشوې. فدایان یې ورته جرګه کړل، د ګوانتانامو بندیان یې ورته جرګه کړل. سپین ږیري او مشهور علماء یې ورته جرګه کړل، خو ذاکر ویل، نه مخالفت کوم او نه هم بیعت. د ملا محمد عمر مورني ورور بیا هم وویل چې دی وخت ته اړتیا لري او سمدستي

بیعت نه کوي. خو بل خوا بیا د ملا محمد عمر زوی مولوي محمد یعقوب په پټه له ملا احترمحمد منصور سره لیدل او هغه ته یې له خپله اړخه اطمنان ور کاوه.

څو ورځې وروسته د مرحوم ملا محمد عمر مجاهد د کورنۍ له خوا د فاتحې مختصر مراسم ترتیب شول. په دې مراسمو کې د ملا محمد عمر زوی مولوي محمد یعقوب لنډه وینا وکړه. هغه وویل ملا محمد عمر د هیچا په اړه او نه هم د کورنۍ د کوم غړي په اړه کومه توصیه کړې. ملا محمد عمر د تبرکلوز (تې بي) یا هم د تور زېړي د بیمارۍ له امله وفات شو. دغه وینا یې ثبت او پر فېسبوک پاڼو او د طالبانو په سایټ کې هم خپره شوه، چې په دې سره د منصور داد الله او منان نیازي ادعاوې هم د طالبانو مینځ کې تر ډېره بې اثره شوې.

د ملا محمد عمر د ناسکه ورور عبد المنان ځینې پلویانو ویل چې عبد المنان ته دې نیابت ورکول شی، بیا به بیعت کوي، خو د طالبانو نوي مشرتابه د هر چا د مشروط بیعت مخالفت کاوه. بالاخره تقریبا یوه میاشت وروسته، د مینځکړو طالبانو او علماوو د مسلسلو هڅو له امله د یوې غونډې په ترځ کې د ۱۳۹۴ لمریز کال د وږي د میاشتې په څلورویشتمه چې د ۲۰۱۵میلادي کال د ستمبر له پینځلسمې سره یې سمون درلود، ملا عبد المنان او د ملا محمد عمر زوی مولوي محمد یعقوب بې قید او شرطه له نوي مشر سره بیعت وکړ.

محمد رسول، ملا حسن رحماني او ملا عبد الرزاق نه د بیعت غونډې ته حاضر شول او نه یې بیعت وکړ، بلکې په هم هغه ورځ چې نوی مشر اعلان شو ملا محمد حسن او ملا محمد رسول د میډیا له لارې د پاکستان اسلام اباد ښار کې پاکستاني مقاماتو سره د یوې رسمي غونډې په ترځ کې نوي مشر سره خپل مخالفت اعلان کړ. څه موده وروسته د همدې کال د نومبر په درییمه

**محمد رسول د جلا ډلې اعلان وکړ، خو رحماني او عبد الرزاق يې ملاتړ ونه کړ او د ۲۰۱٦ د جنورۍ د مياشتې اخير کې حسن رحماني د سختې ناروغۍ په حالت کې خپل ليکلی بيعت رسنيو کې په خپله امضاء خپور کړ او له دې نه يوه هفته وروسته د وريښې ناروغۍ له امله د پاکستان کراچۍ ښار په يوه روغتون کې وفات شو.**

**د ملا محمد حسن رحماني د بيعت توري:**

زه محمدحسن رحماني د افغانستان د مسلمان او غيور ولس يو مجاهد چې د ژوند له پيله بيا تر اوسه پورې په افغانستان کې د سوچه شرعي نظام د پلي کېدو په ارمان وم او يم او د دې ارمان د پوره کېدو په لار کې مې تر خپل وس او توان پورې زيار ايستلی، همدارنګه د دې ارمان د پوره کېدو په منظور د اسلامي امارت نوي امير، امير المؤمنين ملا اخترمحمد منصور سره په ټولو شرعي امورو کې د مکمل اطاعت په موخه د زړه له کومي بيعت اعلانوم.

**له دې نه تقريبا يوه مياشت وړاندې د پاکستاني طالبانو د مشر مولانا فضل الله هغه ويډيو هم د طالبانو مشر ته ورسېده چې د خپلو سلګونو پلويانو د يوې غونډې په ترڅ کې يې ملا اختر محمد منصور سره په عربي او پښتو ژبو خپل بيعت اعلان کړی و.**

**ملا عبد القيوم ذاکر دا پاليسي غوره کړه چې نه بيعت کوم او نه مخالفت، خو د هغه د نږدې ملګرو د مسلسلو هڅو په پايله کې ملا عبد القيوم ذاکر د ۱۳۹۵ لمريز کال د ورې پر لسمه چې د ۲۰۱٦ ميلادي کال د مارچ له دېرشمي نيټې سره يې سمون خوړ، ملا اختر محمد منصور سره په لاندې الفاظو خپل بيعت اعلان کړ:**

بسم الله الرحمن الرحيم

**ملا محمد عمر، طالبان او افغانستان**

الحمدلله الذی امرالمسلمین بالاتحاد والاتفاق والصلواة والسلام علی قاید الانبیاء محمد صلی الله علیه وسلم وعلی اله واصحابه اجمعین عدد خلقه ورضا نفسه وزنة عرشه ومداد کلماته.

**د افغانستان د اسلامي امارت ټولو علماء کرامو او محترمو مجاهدینو مشرانو او کشرانو ته**

السلام علیکم ورحمة اللله وبرکاته

محترمو ګرانو ورونو تاسو ټول الحمدلله پوهېږئ چې د طالبانو اسلامي تحریک د عالیقدر امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد تر رهبری لاندې په افغانستان کې د یوه سوچه اسلامي نظام د قیام لپاره پیل او موږ او تاسې د دې نظام په خاطر د سلګونو زرو قربانیو ورکولو سره تر هر څه مادي او معنوي شتمنیو تېر او بالاخره د بریا پړاو ته ورسېدو چې د کفري نړۍ له ارادې خلاف په افغانستان کې اسلامي امارت قایم شو څرنګه چې صلیبي نړۍ او اشغالګرو داسې یو سپېڅلی نظام ونه زغملای شو، نو د اسلامي امارت لپاره د ازمون یو نوی پړاو پیل شو خو عالیقدر امیر المؤمنین رحمه الله د لوی خدای په نصرت د ټولې کفري نړۍ کرغېړن ارمانونه ورنیمه خوا کړل کله چې د عالیقدر امیر المومنین د وفات خبر خپور شو ما د ځینو عمده ټکو چې د اسلامي امارت د هر اړخیز بریالیتوب، استقلال، د نظام د ښه بهبود، د صف د متحد ساتلو ورسره د اوسنیو مشکلاتو د حل په خاطر څه شرعي ملحوظات درلودل لله الحمد د ملګرو په پوره سعیه او کوشش سره د هغو د شرعي ملحوظاتو پر جوړولو موافقه وشوه ملګرو ته دی الله تعالی اجر عظیم او نیکه بدله ورکړي.

محترم ملا اختر محمد منصور زموږ مشر دی زما ورسره د شریعت په چوکاټ کې بیعت دی ان شاء الله تعالی د خپل وس او توان مطابق به د شریعت په چوکاټ کې اطاعت کوم.

والی الله المشتکی حسبنا الله ونعم الوکیل نعم المولی ونعم النصیر ونفوض امورنا الی الله ان الله بصیر بالعباد.

اخوکم فی الله الحاج حافظ ملا عبد القیوم ذاکر

۱۴۳۷ هـق جمادالاخر۲۱ نیټه

۱۳۹۵/حمل / ۱۰ هـ ش

۲۰۱٦/ ۳ /۳۰ م

**قطر ته د طالب استازو تلل او دفتر پرانیستل**

**په ۲۰۰۵ کې مولوي شهاب الدين دلاور او يوبل د منځني کچ طالب چارواکې له يوه مرموز برطانوي سړي "مايکل سيمپل" سره د پيښور ښار په "تاکال" کې د قوماندان "ديدار" د موټرونو په بارګين کې ملاقاتونه وکړل، سيمپل انګريز دي چې د يوه متقاعد پاکستاني فوځي افسر له لور سره يې واده کړی، ميرمن يې نځاګره ده او د ده استخباراتي جال په پاکستان کې خور دی. له دې وروسته به په مجلسونو کې له مولوي دلاورنه دا خبره ډيره اوريدل کيده، چې موږته دې مشرتابه د بې طرفه طالبانو په توګه په دريم هيواد کې د اوسيدو او استازولۍ اجازه راکړي.خو د دې خبرې مطلب واضح نه و.مولوي شهاب الدين د کرزي له رژيم سره د سولې د خبرو پلوي هم کوله، خو کله چې د صبغت الله مجددي په مشرۍ د سولې سمبوليک کميسون جوړ شو نو د مجددي زوي پاکستان ته سفر وکړ، په پاکستان کې يو شمير زړو طالبانو ورسره وکتل، د مجددي زوي هغوي ته ويلي و چې امريکا سوله نه غواړي، خو که طالبان تسليميږي نو زموږ دکميسون له لاري دي ځانونه تسليم کړي، د مجددي د زوي دغه څرکندونو واضح پيغام لاره، خو په ۲۰۰۸ کې يوځل بيا سيمپل ناستي پيل کړې.**

له هغه وروسته د جرمني تابعیت لرونکي یوه افغان انجینر وحیدالله حلیمي پاکستان ته سفر وکړ. ښاغلي حلیمي چې د جرمني تابیعت لري او دجرمني له استخباراتو سره نږدې اړیکې هم لري، له دې سره سره هغه د قطر د شاهي کورنۍ سره له کلونو راهیسي نږدې پاتې شوي او په قطرکې د انجینرۍ فعال شرکت هم لري، ښاغلي حلیمي په لومړي ځل د طیب اغا او جرمني استخباراتو ترمینځ اړیکه جوړه کړه، طیب اغا د حلیمي په واسطه جرمني ته پټ سفر وکړ، له هغه وروسته چې طیب د جرمني له حکومت سره د حلیمي په منځګړتوب اړیکي نږدې کړې، عبدالسلام ضعیف د سي آی اي او طیب ترمینځ تماس برابر کړ، چې له دې وروسته د طالبانو په نوم د یوه دفتر پر خلاصیدو موافقه وشوه.خو ځای مشخص نه و، په ۲۰۱۱ کې زما له یوه ملګري نه مولوي دلاور جرمني ته د قاچاقي تللو په اړه معلومات غوښتي و، چې له دې نه داسي ښکاریده چې هغوی لومړي جرمني کې اوسیدل غوښتل، خو وروسته د جرمني، سي آی اي او قطر په درې طرفه توافق په قطرکې پر دفتر پرانیستلو موافقه وشوه، خو شورا او ملامحمد عمر لا دا وخت هم له ټوله جریانه ناخبره وو.

له دې وروسته په ۲۰۱۲ کې طیب اغا ملا محمد عمر ته حال واستاوه چې دی غواړي قطر ته څه ملګري له ځانه سره بوزي او د جرمنیانو په واسطه له امریکایانو سره د ګوانتانامو بندیان تبادله کړي. ملا صیب د بندیانو په برخه کې مزاجا ډېره جدي پاملرنه کوله. له همدې امله یې قاصد ته ویلي و؛ که له کیوبا نه زموږ د ټولو بندیانو تبادله له هرې لارې ممکنه وي زما له خوا درته اجازه ده، دا کار وکړه. پر دې سربېره په قطر کې د مستقل دفتر یا هم د سولې لپاره د مذاکراتو هیڅ کومه خبره ملا محمد عمر ورته نه وه کړې او نه دوی ړرنه اجازه اخیستې وه. د ۲۰۱۲ په ورستیو کې د سیاسي کمېسون مشر طیب اغا قطر ته له ځانه سره د خپلې خوښې څو ملګري بوتلل چې په دې کې د شورى

او ملا اختر محمد رایه او انتخاب ځای نه درلود. طیب دا دلیل وایه چې ما ته مشر مستقیمه اجازه کړې.

له بل لورې یوڅه شخصي ملګري عبدالسلام ضعیف ورسره ځای کړل، چې دفتر په مجموع کې د ضعیف او طیب د خپلې خوښې د ملګرو نه تشکیل شو.

د ۲۰۱۳ پیل کې ملا محمد عمر ناروغ شو او اکثره چارې ملا اختر محمد منصور ته پاتې شوې. منصور له طیب سره فقط همکاري کوله، نور یې په کارونو کې نه ورته کار درلود، نه هم طیب د هغه مداخله منله. طیب په دې ډاډه و چې زما پیغام به ملا محمد عمر ته اوس هم رسیږي، خو قاصد د هغه له ناروغۍ طیب نه خبراوه.

د اپریل په لومړیو کې غالبا مشر نور د خبرو کولو نه و. د اپریل په څلورویشتمه وفات شو او له دې نه څه کم دوه میاشتې وروسته د قطر دفتر پرانیستل شو. دفتر په پرانیستنه کې شورى موافقه وه خو د افغان چارواکو د فشار او نورو مداخلو له امله دفتر وتړل شو. د ملا محمد عمر قاصد او قاصد ته نږدې کسانو له دغه حالته چې منصور خاموشي اختیار کړې وه او طیب د مشر له مرګه خبر نه و، ناوړه استفاده کوله. قطر ته یې خپل خاص ملګري، خپلوان، ان تجارتي شریکان د استازو په ډله کې ورزیات کړل. طیب به نورو غړو ته ویل چې دا د مشر ملا صیب په اجازه او غوښتنه دلته راولو.

بل پلو طیب اغا هم له شورى مستغني و او ځان یې مستقیما له مشر سره په رابطه کې ګاڼه، نو ځکه هر هغه څوک چې د ده خوښ وو او په شخصي کارونو کې یې په کار وو، ټول یې د دفتر د استازو په نوم قطر ته بوتلل. که به کوم کس منصور یا هم شورى معرفي کړ، نو هغه ته به هلته داسې خنډونه برابریدل چې بېرته به راوګرځېد. منصور په سترو سیاسي مسئلو کې هدایات

وراستول خو په مالي مسایلو، د دفتر په اداري او عامو ديپلوماتيکو کارونو کې يې غرض نه درلود، چې له همدې امله يې په دغه ډله کې دوه پر درې غير ضروري، يواځې په تعلقانو او شخصي فرمايشونو ورغلي خلک ځای شول.

بله ستونزه دفتر کې دا وه چې مشرتابه او شورى پرې مسلطه نه وه. هغوی هلته داسې استازيتوب کاوه چې مشرتابه يې پوره په اعتماد کې نه و اخيستی، چې له همدې امله هغوی د نظامي حالاتو په اړه هيڅ واک او اختيار نه درلود. له دې سربېره پر هغوی د عامو طالبانو بې باوري او بدگوماني د دوی لپاره تر ټولو ستره ستونزه وه. په دوی پورې ډول ډول تورونه پورې کېدل. د بېلگې په توگه په عامو مجلسونو کې به ويل کېدل چې جان اغا احمدزی يو درجن داسې باردار موټرونه لري چې د پيسو په بدل کې له پاکستانه د ناټو مرکزونو ته لوجستکي مواد وړي. په داسې حال کې چې د ناټو اکمالوونکي موټرونه طالبانو سوځول،کله ناکله به يې موټروانانو ته هم درنه سزا ورکوله.

په مولوي شهاب الدين پسې دا خبره ډېره مشهوره وه چې هغه د پاريس ناسته کې له معصوم ستانکزي سره يارانه جوړه کړې، چې له امله يې خپلو دوو زامنو ته له دولته تعليمي سکالرشيپونه ترلاسه کړي وو. بل پلو د شهاب الدين دلاور له افغان او پاکستاني استخبارتي چارواکو سره په يوه وخت دوستانه اړيکې لرل د سوال وړ بلل کيدې. کله چې د ملا اختر محمد منصور له مشر ټاکل کيدو وروسته د مولوي عبد الکبير په مشرۍ د اداري او مالي چارو د تفتيش يو کمېسيون وټاکل شو نو دا وخت د قطر دفتر د مالي محاسبې لپاره ملا محمد يونس قطر ته واستول شو. هغه د مالي محاسبې له شفافيته ناراضه راستون شو. د دفتر د غړو له سترو کاروبارونو او په دوبۍ کې د هغوی د جايدادونو خبرې يې کولې.

بل پلو د کابل او قطر میشتو طالبانو ترمېنځ د پټې خواخوږۍ خبرو طالب مشرتابه له اوله لا اندیښمن کړی و، ځکه چې له یوې خوا له لویه سره د سولې پروسه افغان واکمنو او د هغوي ترشا ولاړ بهرنیانو استخباراتي کړې وه، بل پلو چې معصوم ستانکزي د سولې شورا له مشرتابه د ملي امنیت ته مشرتوب ته لاړ، نو طالب مشرتابه ته یې نور شکونه هم وزیږول، آن تردې چې د تحریک استخبارتي کارکوونکو ته په کابل کې یوه پخواني طالب چارواکې ویلي و چې له معصوم ستانکزي نه مې په یوه ناسته کې واوریدل چې هغه کس ته یې وویل چې قطرته یې لیږه، چې د قطر لپاره تعین شوې نقدي پیسې هم درسره ورسوه!

پخپله ملا اختر محمد منصور هم طیب اغا او عبدالسلام ضعیف ته په دې غوسه وو چې د طالب غورځنګ په استازیتوب له ځینو هیوادونو اولوریو نه پیسې ترلاسه کوي او په کابل کې یې خپلې پروژې پرې رواني کړې. منصورصیب یوه ورځ وویل که د نړۍ یو مسلمان دوي ته په دې نامه څه ورکړي چې د کوم بندي یاشهید طالب کورنۍ ته یې ورکړئ، نو دوي څنګه بیا دا پیسې کابل ته وړي.خو منصور صیب په دې اړه نور وضاحت ونکړ چې کومو او څه ډول پیسوته یې اشاره وه.

بله ستونزه په خپله د دفتر د غړو ترمینځ ناندرۍ وې. د دفتر یو شمېر غړو په طیب اغا تور پورې کاوه چې له امریکایي استخباراتو سره له موږه پټې اړیکې ساتي. هغوی به ویل طیب اغا تکې تنها زموږ له حضوره پرته له امریکایي استازو سره په بنده خونه کې ملاقاتونه کوي.

کله چې د ملا محمد عمر د وفات له اعلانه شپږ میاشتې وړاندې طیب اغا خبر شو، نو دا ویره ورسره پیدا شوه چې تېر دوه کاله یې د ملا محمد عمر په نامه خودسره حرکتونه کړي ښایي اوس ورسره محاسبه وشي او نړۍوالو چاینلونو

ته به هم ټيټ او بې اعتباره شي. هغه وار د مخه دې ته اماده‌ګي لرله چې ځان جدا اعلان کړي او د دې لپاره يې پر هغو خلکو پانګونه کوله چې ده سره يې د راتلونکې ملګرتيا وعده کړې وه.

پل لوري ته ملا اختر محمد منصور له ۲۰۱۴ نه له نړۍ سره د اساسي او پټو روابطو په برخه کې له قطر استازو مايوسه و. هغه به ښکاره ويل چې دوی روابط له سي آی اې نه شي پټولای. نه په اساسي او تلپاتې روابطو کې رول لوبولای شي. د ملا اختر محمد اشاره تر ډېره د امريکا مخالفو هېوادونو سره اړيکو ته وه. د دې لپاره هغه د يو مستقل خفيه چاينل هڅې پيل کړې چې تر يوه حده پر مخ ولاړ خو په ۲۰۱٦ کې د امريکايي ډرون له لوري د هغه پر شهادت دغه چاينلونه اکثره بېرته د قطر د استازو له خوا خنثی شول.

د رښتينې سولې او تفاهم پر وړاندې درانه خنډونه

له کومه وخته چې د سولې په نامه خوځښتونه پيل شوي نو اساسي ستونزه د سولې او مثبت تفاهم په مبهم تعريف کې ښکاري. د سولې او روغې کلمه د امريکا او د هغوی د افغان ملګرو او چارواکو له لوري تر ډېره تاکتيکي، تبليغاتي او يو طرفه کارول شوې. بل لوری طالبان د يوې سوچه مذهبې تګلارې پيرو دي. هغوی ته د سولې تر سرليک لاندې هر ډول تفاهم لومړی په جواز او نه جواز تلل کيږي او د مقاومت د پيلولو ستر هدفونه په نظر کې نيول کيږي. له هغه وروسته بيا له مقابل لوري سره د مذاکراتو مېز ته ځي. په دې کې د فکري او عقيدوي دلايلو ترڅنګ د نومول شوي اشغال وجود د مقاومت اساسي دليل دی، نو هر هغه جريان چې د اشغال پای ته رسېدل او د يرغلګرو وتل يې په اجنډا کې نه وي، طالب سره پرې نتيجې ته رسېدل ناشونی ښکاري.

بل پلو د کابل د سولې کمېسیونونه او شوراګانې تر دې مهاله په بشپړ ډول د خپلو مخالفینو په وړاندې چې دا وخت یو سیاسي او پوځي قوت دی، تش تبلیغاتي او استخباراتي فعالیتونه کوي. له کومه وخته چې د مجددي په مشرۍ په لومړي ځل دا کمېسون جوړ شو، تنها د ولس او نړۍوالو د ذهنیت د بدلون لپاره یې د سولې نارې وهلې خو عملي کار یې د طالبانو د افرادو تسلیمۍ ته هڅول وو. هغوی به په تبلیغاتي ډګر کې د افرادو د تسلمېدو فرضي اعلانونه هم کول.

د نمونې په ډول د دې شورۍ یوه مرستیال ته خپلو خپلوانو وړاندیز کړی و چې موږ ته په دولت کې کار او روزګار وګوره. ده ورته ځواب کې ویلي وو چې څو زاړه توپک په پیسو رانیسئ، موږ به ویډیو درنه وکړو او د تسلیم شویو طالبانو په نامه به مو اعلان کړو. تاسو ته به پیسې درکړو زموږ به تبلیغاتي کمپاین وشي! چې ښایي همدې ته ورته به هغوی سلګونه نور جعلي اعلانات او فعالیتونه هم برابر کړي وي چې له دې نه د سولې رښتینې اراده او پلان مبهم او مجهول ښکارېده.

په دې کې شک نه شته چې دغه روان مقاومت د تېر جهاد په څېر د وسایلو او مال له اړخه غني نه دی، بلکې ډېر له ستونزو او سختیو ډک دی، نو مقاومت کوونکي یې په مادي وسایلو اتکا نه لري، بلکې اصلي انګېزه یې فکري او اعتقادي ده، نو ځکه خو د دې تصور هم نه شي کېدای؛ چې کوم طالب چې یو ځل یې دغه کار د جهاد او فکر پر بنیاد پیل کړی وي، بیا دې تش د پیسو او مادیاتو بدل کې دې تسلیم شي.

که طالب سره پر اساسي مسایلو د توافق څرک ولګي نو هغه ورځ د رښتیني سولې امکانات وده کوي چې په دې کې عمده خبرې د نظام د سستم ډول او د بهرني واک او اشغال فعلي یا تدریجي صفر کېدل دي.

البته د سولې له عملي کېدو وړاندې چې کوم لومړی ستېيج دی نو هغه مطلق تفاهم او دوطرفه ناسته ده چې دا له سولې پرته هم دواړو طرفونو ته يو ضرورت دی چې ښه بېلګه يې د بنديانو تبادله ده چې له تفاهم او تماسه پرته ناشونې ده. له همدې امله خو طالبانو د قطر پر د فتر امريکا سره توافق وکړ. که څه هم دغه دفتر په مکمل ډول فعال نه شو، خو طالب استازي په معلوم ادرس په دې وتوانېدل چې خپل مهم بنديان له امريکانو سره تبادله کړي چې لا يې هم لړۍ روانه ده.

کومه غلط فهمي چې ډېره واضحه ده هغه د قطر د دفتر پر دنده ده. د قطر دفتر طالب چارواکو د سولې د خامخا عملي کېدو په نيت نه دی خلاص کړی، بلکې مطلق تفاهم د دې دفتر دنده ده. د سولې په اړه خبرې د دې دفتر لپاره اختياري عمل دی، نه اساسي کار.

کومه سوله چې رښتينې او ممکنه سوله ده، هغې ته د طالبانو مشر ملا اختر محمد منصور په رښتيني ډول چمتو و، خو کومه سوله چې امريکا او کابل مېشتي پلويان يې تر دې دمه تعريفوي هغې ته ښايي هيڅ طالب مشر تر مرګه غاړه کېنږدي.

داعش او د افغانستان سرحدي سيمه

په عراق کې د داعش يا دولة الاسلام د ډلې جوړېدل او پراخېدل زما د بحث موضوع نه ده. نه غواړم د عراق او سوريې د داعش تفصيلاتو ته لاړ شم. البته دومره بايد ووايم؛ لومړی چې عراق کې دغې ډلې سر راپورته کړ نو د عراق د سني نشينه سيمو د مظلوميت داستانونه دلته هم اورېدل شوي وو، نو د هغوی بروز ته طالبانو هم خوشحالي کوله او دا يې په سيمه کې د لويديزو پاليسيو په وړاندې مثبت غبرګون نوماوه. وروسته له دې سره سره چې په عراق او سوريه کې د القاعده د اساسي شتون په وړاندې د دغې ډلې وجود

ستره ضربه وه، ورسره د هغوی له خوا له القاعدې او عام ولس سره بوږنوونکی او نه توجیه کېدونکی بې رحمه چلند عام محضر ته راووت. دلته هم د خلکو زړونه ورنه ماتېدل، خو د هغوی د خلافت اعلان او په ټوله نړۍ یې جبري منل یوه بله څپه وه چې لومړی تش لېونتوب او وروسته دسیسه بلل کېده.

هغوی یواځې د عراق څو ښارونه لاندې کړي وو. د هېواد مرکز بغداد یې هم په لاس کې نه و، خو څو زره میله لرې یې په نورو هېوادونو کې پر مسلمانانو خپل اطاعت په جبري توګه لازم ګاڼه.

داعش چې په رښتیني ډول یې په افغانستان کې چندان ځای نه درلود، خو په میډیایي میدان کې ورته په خپله حکومتي حلقو او لویدیزو رسنیو کې زیات تبلیغ وشو.

طالبانو د افغانستان په شرقي سرحدونو کې د دې ډلې اعلانات مهم ونه ګڼل او له دې وېرې چې دښمن له دې لویه موضوع جوړه نه کړي، خاموشي یې اختیار کړه، خو ورو ورو هغوی دې ته اړ شول چې په عراق کې د داعش له مشرتابه سره مفاهمت وکړي او د وضعیت په نزاکت یې وپوهوي. ملا اختر محمد منصور د داعش موسس بغدادي ته له درنښت او خواخوږۍ ډک لیک واستاوه چې د افغانستان له داخلي وضعیته علاوه ورکې د افغانانو او عربو مجاهدینو مشترکې قربانۍ او د دښمن دسیسې یادې شوې وې.

له بغدادي هیله شوې وه چې دیارلس کلن مقاومت په ډېرو سختو شرایطو کې وده کړې او دښمن یې د داخلي تفرقې په تمه ناست دی. دلته چې اسلامي امارت وي، تاسو مستقل تشکیلات مه اعلانوئ. دا یو ډول شرعي حق او غاړې خلاصول ګڼل کېدل. خو له هغه لورې د بغدادي د ویاند عدناني له خولې په ډېرو غلیظو او سپکو سپورو بنا غبرګون راغی چې د طالبانو روحاني او معنوي

بنسټ ګر ملا محمد عمر ته (چې دا وخت يې د وفات کېدو کال پوره و) په کې له حده زياتې سپکې سپورې ويل شوې وې. له هغه وروسته مشرتابه د علماوو په پرېکړه دا يوه فتنه ونوموله چې ګنې يواځې د ديارلس کلن مقاومت د خنثى کولو دسيسه ده. له همدې امله طالبانو د هغوى پر ضد په پوځي اقدام لاس پورې کړ.

دا وخت د پاکستان په سرحدي سيمو کې پاکستاني طالبان خپلو کې سره ډله ډله وو او د ځينو ترمينځ خونړۍ نښتې هم شوې وې. هغه اشخاص او ګروپونه چې د پاکستاني طالبانو ترمينځ يې لوړ مقام او حثيت نه شواى ترلاسه کولاى او په مادي لحاظ هم کمزوري وو، دوى له دغه نوي جريان سره ملاتړ اعلان کړ او د رسنيو پام يې ځان ته واړاوه. په باجوړ کې مېشت د ننګرهار د کوټ مولوي مسلم دوست هم له داعش سره پيوستون اعلان کړ چې له همدې امله ننګرهار ته داعش لاره وکړه. داعش هم د انټرنيټ له لارې د دوى بيعتونه اعلان کړل او د خراسان په نامه يې د اورکزو ايجنسۍ حافظ سعيد خان امير اعلان کړ.

سعيد خان له دې وړاندې په سرې تښتولو او نورو مافيايي کارونو کې هم بدنام و. سعيد خان د مسلک له اړخه پنځپيرى و (د حنفيانو يوه ډله چې د عقايدو په برخه کې سخت تعبير لري) او د ده بل ملګرى د پاکستاني طالبانو پخوانى وياند شاهد الله شاهد غيرمقلد و (هغه چې د اهل سنت د څلورو فقهي امامانو پيروي نه مني) له دې نه علاوه په هغوى کې د مسلک او عقيدې موضوع مهمه نه وه. هر چا چې د دوى په پيروۍ بې رحمه کړنې کولاى شواى هغه ته يې غېږه خلاصوله.

بل پلو د طالبانو په نظامي ليکو کې ځينې داسې اشخاص چې په بې مسئوليته کړنو له مجازات سره مخ يا يې د مخ کېدلو وېره لرله، هغوى ته يو ښه نوم

ورپیدا شو او همدا ناره یې پورته کړه. په دې کې یو شمېر خلک له مشرقي پرته په لوګر، زابل او شمال کې هم وو خو وروسته بیا هغوی کمزوري شول او یو لوی شمېر یې له مینځه لاړل.

د سعید خان اورکزي او افغان پیروانو لومړی تجمع د ننګرهار په سپین غر ولسوالۍ کې وشوه. د سپین غر د مامندرې سیمه د هغوی لومړی مرکز و. همدلته لومړی جګړه له دوی سره هغه وخت ونښته چې د طالبانو له خوا هغوی ته له سیمې د وتلو وخت ورکول شو. د وخت له پوره کېدو سره جګړه وشوه، وروسته هغوی په ده‌بالا، اچین، کوټ او چپرهار کې متحرک وو. له دوی سره افغانانو کې د کوټ مولوي مسلم دوست، د چپرهار مولوي عزیز، ډاکټر سباګل، مولوي اسماعیل، مولوي اسلام الدین لومړني ملګري وو او د پولې له ها غاړې د سعید خان او شاهد الله نه علاوه د باجوړ ابوبکر ورسره و. وروسته هغوي د ننګرهار په نورو ولسوالیو کې هم ګرځېدل. حکومت پرې کار نه درلود، بیا د طالبانو یوه مستقله قطعه ورپسې راغله د سیمې د خلکو په همکارۍ یې هغوی یوې وړې سیمې ته ورټول کړل.

لومړی د مشرتابه هدایت دا و چې د نیولو په صورت کې توبه ورباندې و ویستل شي او خوشې کړای شي او په جګړه کې هم تر ډېره هوایي ډزې پرې وشي، چې فقط له سیمې وتښتي، خو وروسته بیا د هغوی له لوري د سختو مظالمو په وجه د طالبانو رویه ورسره سخته شوه. دا وخت چې به طالبانو هغوی له کومې سیمې شړل نو هلته به بیا حکومت پر طالبانو برید کاوه، بیا داسې وخت راغي چې کله به طالبانو پر داعش بریدونه پیل کړل نو امریکایي چورلکو به دواړه خواوې بمبار کړې او جګړه به یې ودروله. دا وخت طالبان له ډېر عجیب پیچیده حالت سره مخ وه. پر اسمان امریکایي الوتکې، پر ځمکه د دولت استخبارات او پوځي قطعات ول. په کلیو او غرونو کې داعش و. له دې ټولو

سره په یوه وخت مخ کېدل یو نوی امتحان و. داعشیانو کې ډېر قوماندانان چې به مغلوب شول نو د امن له ورکولو سره سره طالبانو ته نه تسلیمېدل، بلکې یا به په اربکیانو ننوتل او یا به د دولت استخباراتو ته تسلیم شول. همداراز د هغوي ډير زخميان به د ننگرهار په صحت عامه کې تداوي کيدل، حتی د دوي يو مهم قوماندان عمر عبد الخالق له زخمي کيدلو وروسته د ننگرهار په صحت عامه تداوي شو.

دا وخت په لوگر کې د سعد امارتي په نامه له طالبانو اوښتی قوماندان هم د داعش بيرغ اوچت کړی و او همداراز په زابل کې د داد الله منصور په مشرۍ ځينو خارجي ازبکانو هم د داعش ملاتړ او د طالبانو پر ضد جگړه اعلان کړې وه، خو کله چې هغه د کابل - کندهار پر لويه لاره د مسافرو هزاره هېوادوالو تورسرې له موټرونو کوزې کړې او له ځانه سره يې زابل ارغنداب ته يوړې، دې کار يو دروند توکميز ناورين رامېنځ ته کړ. له هزاروو سره پر سرحدي سيمو پرتو پښتنو ته هم د هزارو له خوا ورته مشکل پېښېدوونکی و. طالبان مجبور شول چې دغه نادوده او ناوړه عمل خنثی کړي چې له امله يې د دغو مېرمنو پر ازادولو چې يرغمل کوونکو د وينزو نيت ورته کړی و، جگړه ونښته، يو شمېر مېرمني ترې ازادې او يو څه نورې يې ووژلې.

دغه جگړه بل پړاو ته هم لاړه او داد الله منصور هم په کې ووژل شو او د هغه ملگري ازبکان ځوک تسليم شول ځوک په جگړه کې ووژل شول او ځوک اسيران شول.

د داعشيانو ترمېنځ چې کله ستونزې پيدا شوې نو هغه خلک چې له داعش نه يې لاس واخيست، طالبانو هم نور د مخالف په سترگه نه ورته کتل ،که څه هم د دوي د لاسه طالبانو ته درونډ زيان اوښتی و. له داعش د جلا شويو په په ډله کې مولوي مسلم دوست هم و، چې د داعش لومړی مبلغ او مفتي و، خو

د داعش له خوا دهغه د وریرونو له وژلو وروسته هغه له داعشه بیلتون اعلان کړ چې د ده په وینا داعش یې د وژلو هڅه کوي. په دې اړه د مسلم دوست له خوا د خپرې کړې اعلامیې څه تورې په دې ډول و:

"...ما څه کم دوه کاله وړاندې هغه وخت له داعشیانو نه د برائت اعلان وکړ، چې داعشیانو د ننگرهار د کوټ او شینوارو څه بندیان ونیول ما یې د خلاصولو کوشش وکړ، خو داعشیانو ونه مانه او زما د وژلو گواښ یې هم وکړ، داعشیانو هغه بندیان په وحشت ووژل. له هغه وروسته داعشیانو زما دوه ویرونه هم ووژل چې یو یې طارق نومیده د جلال اباد د خالص فامیلیو کې یې وواژه. دوهم یې اسماعیل نومیده، سوریې ته تللی و، د خراسان د داعشیانو په شیطانۍ د سوریې او عراق داعشیانو په دې بهانه وواژه چې ته ولې د سعید خان له اجازې پرته سوریې ته راغلی یې..."

د طالبانو لخوا که څه هم د داعش په وړاندې مبارزه په لومړیو کې ډیره محتاطه پیل شوه، خو اوس له داعش سره د مبارزې په تگلاروکې ځینې ناوړه طرز العملونه تر سترگو کیږي، لکه د داعش پیژندنه گونگ تعریفونه، د طالبانو تحریک یو دیني تحریک دی، د وي نشي کولای چې د یوې خاصې مدرسي په ډول په فرغي مسایلو کې دیوه خاص تعریف پیروي ته خلگ اړباسي، له داعش سره په جگړه کې ځینې کشران او کم علمه سرگروپان هغه څوک هم د داعش په پلوي تورنوي چې په د یني چاروکې د بدعاتو، خرافاتو مخالفت کوي او یا د عقایدو په برخه د توحید د مشروع تعریف او احتیاط تعلیم ورکوي، چې دا په دیني لحاظ هم غیر موجه چلند دی او په عملي توگه هم د طالبانو فوځي صفونو ته زیان اړوي. بل پلو طالب مشرتابه هم په اصولي چوکاټ کې د دې ډول چلند مخالفه پالیسي لري.

بل لور ته لکه څنګه چې امریکا په عراق کې داعش ته یواځې په دې خوشحاله وه چې د القاعده د پاخه او پیچیده بنیاد ستنې پرې ونړوي، همداسي په افغانستان کې دغه نامه ته امریکا، افغان حکومت او ځینې نور هېوادونه په دې خوشحاله وو چې دا به د طالبانو دیارلس کلن مضبوط او متحد مقاومت ته اندروني ضربه ورکړي. د همدې لپاره دغې نوې پروژې ته پراخ تبلیغات وشول، کومې سپکې سپورې چې به عراقي داعشیانو د طالبانو په مشرانو او ملا محمد عمر پسې ویلې هغه به د افغان دولت پلویانو په پراخه پیمانه بدرګه کولې.

بل پلو د حکمتیار د ځینې پلویانو لخوا د داعش مرموز ملاتړ تر سترګو کیده او لاهم روان دی. په پیښبورکې د حکمتیار په شمشتو کیمپ کې د لوګر د ازرې پخواني حزبي قوماندان حاجي حیات به داعش ته ځوانان جلبول، اکمالول او افغانستان ته به یې د طالبانو پرضد جګړې ته را استول.

بل لوري ته دا خبره ګرمه وه چې د ملي امنیت له رئیس معصوم ستانکزي سره چې د حزب په یو وفد کې حاجي حیات( د حزب پخوانی قوماندان) شرافت او د حزب د استخباراتو پخوانی رئیس حاجي مالک قرار لیدلي و، نو معصوم ستانکزي حاجي مالک ته ویلي و، چې ته ولي پخواني کار بیرته نه شروع کوې! چې اشاره یې په پیښبورکې د خلګو ترور کولو ته وه.

له د ې وروسته د پیښبور شمشتو په کیمپ او نورو برخوکې یو درجن د طالبانو پلویان په رڼا ورځ ترور کړای شول، خو دا جوته نشوه چې د حزبې قوماندانانو دغه عمل د حکمتیار په مستقیمه لاربنونه کیده که نه، یاهم کوم بل جهت ورته امر کاوه! البته د داعش او طالبانو د لومړیو جګړو پرمهال د حزب د شهادت ورځپاڼې یو مضمون خپور کړی و، چې لیکلي و: که د افغان دولت او

طالبانو جنګ و، موږ (حزب)به د طالبانو ملاتړ کوو او که د طالبانو او داعش جنګ و، نو موږبه د داعش ملاتړ کوو!

خو وروسته د سیمې د خلکو د فریاد او سیمه‌ییزو دولتي چارواکو د احتجاج ، همداراز د سیمي د ځینو هېوادونو د مطمئن کولو لپاره افغان دولت او امریکایانو هم د دوي پر ضد عملیات اعلان کړل او ځینې جګړې یې هم ورسره وکړې.

یو باریک جریان چې تر اوسه لا هم ډېر محسوسیږي هغه د دولت د استخباراتو، د سیمې د ځینو نورو هېوادونو او د ځینو لویدیځو کړیو له خوا د طالب پر ضد د داعش د جریان مرموزه تقویه ده، چې طالبانو یې ګڼ اسناد ترلاسه کړي، خو ښکاره وربانديې خبري کول نه غواړي. کله ناکله دغه ډله په یو ناڅاپي ډول د وسلي، مهماتو او پیسو په برخه اکمالیږي او په لوی لاس د هېواد شمال ته د سرایت لپاره غیر مستقیم تشویقیږي. له دې سره دا شکونه زیات پیاوړي کیږي چې ښایي د پخواني شوروي سیمو او چین ته دغه خلک له یو مبهم اړخ نه په یو ګوابښ د بدلولو لپاره هڅې رواني دي.

د روسیې لخوا د افغانستان په اړه په مسکوکې له کېدونکې غونډې وړاندې د ۲۰۱۷ کال د اپریل په میاشت کې د امریکا له لورې د ننګرهار په اچین کې د یوه ستر بم د کارولو ا علان هم د شننکو له نظره یوه سمبولیکه تبلیغاتي هڅه وه!

ځکه چې په ۱٦ کاله امریکایي یرغل کې امریکا کله هم د خپلو بمونو نوعیت او ځواک نه دی په ډاګه کړی او نه داسې څوک شته چې له امریکا نه په افغانستان کې د بمونو د روزمره کاروني په اړه پوښتنه وکړي، هغوي تل د خپلو بمباریو او بمونو جزیات پټ کړي، نو اوس کومه اړتیا پیښه شوه چې خپل بمونه وښیي! بل پل تراوسه د همدې بم ستروالی او اغیز هم نه دي څرګند.

طالب مشرتابه د هغوی د داخلي لانجې ترڅنګ د هغوی سیمه‌ییزو ارادو ته زیات اندېښمن دی، ځکه طالبان غواړي په افغان جغرافیه کې د خپل مقاومت په پایله کې یو مثبت پړاو ته ځان ورسوي. هغوی وېره لري چې هسې نه یو ځل بیا په افغانستان کې یوه بله سیالي د روان مقاومت او فغان ولس راتلونکی له یوه اوږده او بې پایه ناورین سره مخ کړي.

## د طالبانو فوځي او سیاسي راتلونکی او سیستماتیکې ستونزې

له دې سره سره چې طالبان له درنو بحرانونو په راوتلو د یوستر مقاومت پر دوام اوتنظیم بریالي شول، خو په دوامداره توګه طالب مقاومت درنې عملي او تخنیکي ستونځې په مخ کې لري، طالب جنګیالي او قوماندانان یې په زړورتیا او بې سارې فداکاري جګړه کولای شي خو د ژور تاکتیک او پلان په جوړولو او د مقابل لوري د تاکتیکونو او پلانونو په شنډولو کې لا هم ډېر دقیق او ځیرک نه دي.

طالبان خپلو جنګیالیو ته د ایډیالوژیکې روزنې په برخه کې د اسلام او جهاد له عامو احکامو ور هاخوا د جګړې په ډګر کې له مخالف لورې؛ عامو خلګو او خپلو ملګرو سره د تعامل او اړینو چارو په اړه ډېر کم څه  ور زده کوي، ډېر ځله د طالب وسلوالو د خپلې بې پروایي او یا بې ځایه شدت له امله، د ولس عام وګړي د طالب دښمنان و ګرځي.

د کشفي تیکنالوجي په برخه کې طالب وسلوال اکثره د متعددو پېښو له لیدلو سره سره بیاهم ډېر زیات بې غوره دي، د تلیفون، انترنیت او کامرې استعمال په هر حالت او خطر کې نه پرېږدي، چې دا مخالف لوري ته د طالب وسلوالو او مشرانو په کشفولو، نیولو او وژلو کې ډېره اساني را مېنځ ته کوي!

بل لورته نن په نړۍ کې هر هغه جګړه چې ځواکمنه میډیا تر شا ونلري، د هغې ګټل ډېر ګران دي. طالبان تر اوسه لا داسې مو ثره میډیا نلري چې یوازې خپل عام ولس ته د دوي اواز ورسوي، طالبان خپل عام ولس ته د خپل غږ د رسولو هېڅ موثره وسیله نه لري او له ولس سره د طالبانو هغه ځوا ن جنګيالي مخ کيږي چې ټو پک یې پر اوږه وي او له جګړې پرته له بل څه سره کار نلري.

د طالبانو ستر او عمومي مشران اکثره د هرځای او دلګي د طالبانو له حرکاتو او عامه چلنده نه خبریږي، چې له امله یې په ځینو سیموکې ځیني طالب وسلوال خپل مزاج چلوي؛ په غیر ضروري کارونو کې بوخت وي، له خلګو سره نامناسب چلند کوي او کله ناکله په ظلم او زیاتي کې لتاړ وي.

په سیاسي او دیپلو ماتیکو چاروکې طالبان موزون او سستماتیک پلانونه لاهم نلري، د بیلګې په توګه یو سړی چې کوم ارتباطي لاین جوړ کړي بیا ورباندي شورا او مشرتابه منظم نظارت نلري او هغه کس بیا ټوله سیاسي پالیسي او تشکیلات هم خپله برابروي او د کار لپاره یې معیار هم شخصي شناخت اوباور وي، چې له امله یې د وړ، مسلکي او عام کس توپیر ته پاملرنه نه وي.

په سیاسي روابطو کې تر ډېره طالب ار تباطیان لنډ مهاله ګټو او روزمره عوایدو ته ګوري، اوږده پلانونه او بنسټیزو اړیکو جوړولو ته چندان اهمیت نه ورکوي، چې په دې سره د اوږدو روابطو په پایله کې بیاهم هغوي له چاسره په یوه تلپاتې استراتیژیکه او باوري دوستي نه بریالي کیږي. د بېلګې په توګه یوه هیواد ته د سفر پر مهال چې کله هغه هېواد ورته د ۵۰ مسلکي کدرونو د روزنې لپاره تعلیمي سکالرشیفونه مني، خو دوي یې په بدل کې د څو لکو ډالرو مرستې ته ترجیح ورکوي! خو بیا خپلو بچیانوته همدغه طالب ارتباطیان په شخصي توګه په سکالرشیفونو پسې ګرځي.

طالبان خپل عام پیروان په یوویشتمه پیړۍ کې بیاهم د عصري تعلیم په ارزښت نه پوهوي اونه یې قانع کولای شي، چې له امله یې د دې ویره شته چې طالبان د تل لپاره تشه یوه جنګي ډله پاتې شي او د یوه منظم نظام د رامېنځ ته کېدو وړتیا ونلري.

ځکه چې په تېر ځل واکمني کې ولس او نړۍ طالبان په دې ګرم نه ګڼل، چې هغوي حکومت ته یو ناڅاپه له مدرسو راغلل او ځکه خو په مسلکي اداروکې زاړه کمونستانو ته اړ ول، خو له ۲۵ کالو وروسته که بیا هم طالب کوم مسلکي انجینر، ډاکټر او یا اقتصاد پوه نه وي روزلې، نو د دې معنا به دا وي چې طالب د یویشتمې پیړۍ د حکومت داري لپاره خپل چېړاسي هم نلري او یا دومره خپل ځوک هم نلري چې د دښمن په اقتصادي او ژورو تخنیکي پلانونو پوی شي.

دا وخت هم لا په طالب مشرانو کې داسي کسان شته چې د نړۍ له تعلیمه او ماډرن تخنیکه خبریدل اړین نه ګڼي!

که طالب چارواکې له نړیوالو دښمنانو سره د فوځي ډغرې ترځنګ د یوه حکومت، سستم او نظام په فکر کې وي، نو یواځنۍ لاره یې د مسلکي کدرونو روزل او خپلو خلکو او نویو ځوانانو ته لوړ عالي تحصلات ورکول دي.

دا تحصیلات د کمپیوټر او انګلیسي کوروسونو ته نه ویل کیږي، دغه کوروسونه خو عام سوداګر، د لوړ عمر بې سوادان او حتی معذورین هم کولای شي، بلکې په معیاري توګه د پوهنتونونو لوستل او په عصري علومو کې په خپل لاس روزل شوی ځوان علمي کهول را ټوکول د وخت یو اشد ضرورت دی.نن چې کوم ملت هم په دې برخه کې پاتې دی نو هغه په هرڅه کې پاتې دی!

**په طالبانو کې ملا اختر محمد منصور هغه رهبر و، چې د امریکا ضد مبارزې تر څنګ یې د طالب غورځنګ د سیستماتیک کولو او ماډرنایز کولو شوق او اراده لرله او څه نا څه عملي ګامونه یې هم اخیستي وو.**

**د غه ځیرک او دور اندیش طالب رهبر دا هڅه هم وکړه چې طالب مشرتابه د څو خاصو سیمو پر ځای افغان شموله کړي، چې د خلیفه سراج الدین حقاني مرستیالي هم د دې هڅو یوه برخه وه.**

پای